د لوړو زده کړو وزارت
ننګرهار پوهنتون
د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځی
د نړیوالو اړیکو دیپارټمنټ

# د نړۍ سیاسي تاریخ

(د لومړي سمستر لکچرنوټ)



پوهنیار بلال بدلون

۱۳۹۶

ننګرهار پوهنتون
د حقوقو او سیاسي علومو پوهنځی
د نړیوالو اړیکو ډیپارټمنټ

# د نړۍ سیاسي تاریخ

## (د لومړي سمستر لکچرنوټ)

پوهنیار بلال بدلون

بسم الله الرحمن الرحيم

# د نړۍ سیاسي تاریخ (لکچرنوټ)

لیکنه او ترتیب: پوهنیار بلال بدلون

خپرندوی: یار خپرندویه ټولنه

ډیزاین چارې: رحمن الله بهیر

چاپ شمېر: ۱۰۰۰

چاپ کال: ۱۳۹٦ل

چاپ وار: دویم

خپرنیز لړ: (۵۲)

د کتاب اخیستلو ځای

یار کتاب پلورځی، اسحاق زی مارکیټ لاندینی پوړ، جلال آباد ښار

۰۷۹۷۱۳۱٦۱۷-۰۷۸۵۵۰۰۷۳۱

Khanbaheer2@gmial.com

# لړلیک

| سرلیک | مخ |
|---|---|



## لومړی فصل

## عمومیات

## دویم څپرکی

## په اوولسمه زیږدیزه پیړۍ کې د نړۍ وضعیت

## درېیم څپرکی

## د انقلابونو دوران(عصر)

## څلورم څپرکی

## د ناپلیون قدرت ته رسېدل او د هغې دوره



## پنځم څپرکی

## اروپا د ناپیلیون بناپارت په وخت کې



## شپږم فصل

## د ۱۸۳۰ او ۱۸۴۸ ز کلونو انقلابونه او د کنګرو نظام

## اووم فصل

## د آزادۍ رشد او د یو ملت د نظریې پربنسټ د لویو هېوادونو رامنځته کېدل

**سریزه**

د تاريخ د مطالعې له لارې د تېرو وختونو حالات، پيښې او د افرادو کړنې تر مونږ رارسېدلي دي، چې زمونږ د عصر حالات، پيښې او کړنې ورسره يوځای کېږي او راتلونکو نسلونو ته ورپاتې کېږي.

د تاريخ فکتور افراد دي، چې د طريقو او لارو په غوره کولو کې رول لري، مهاجرتونه کوي، په زراعت مشغولېږي، صنعت ته مخه کوي او د دې سيارې زياتې برخې په ځانگړې شکل اړوي. ځينې افراد مذهب ته توجه وکړي او مذهبي رهبرانو ته مخ يوسي، ځينې له سياسي رهبرانو راچاپېر شي او د تاريخ پاڼې د هغوی په کارنامو ډکې شي او ځينې بيا داسې ډلې شي چې په تاريخ کې هېڅ ونډه او رول نه لري، تاريخ يې نه يادوي. د مثال په توگه چين چې د انسانانو يو لوی جمعيت (نفوس) يې تر قلمرو لاندې دی په داسې حال کې چې د اوږدې مودې لپاره يې د نړۍ په نورو برخو باندې هېڅ ډول اغېز نه درلوده، همدارنگه ښځې چې د نړۍ د نفوس نيمه برخه جوړوي او په ځينو چارو کې پراخه ونډه لري اما په زياترو ټولنو کې د ښځو ونډه د سرېو په پرتله په هېڅ شمېرل کېږي. کولای شو ووايو چې تاريخ عادلانه نه دی او د ښځو په وړاندې يې بې عدالتي کړې ده، خو په واقعيت کې داسې نه ده په تاريخ کې دا مهمه ده چې ووايي څه؟ د چا له لورې؟ کله او چېرته واقع شوي دي؟ نه دا چې د افرادو په کړنو بحث وکړي.

د تاريخي پېښو ټاکونکي عوامل له هغه څخه عبارت دي چې په پايله کې وښايي چې د دغې پېښې له امله څومره خلک، په کومو ساحو کې اغېزمن شوي دي. لکه د عقايدو په برخه کې، په جغرافيوي شرايطو کې، کشفياتو کې ،... او په دې توگه د ټولنې سلگونو او زرگونو ميليونونو انسانانو ژوند ته يې تغير ورکړی وي او دا بيانوي چې کومې پيښې د انساني ټولنې لپاره گټورې او کومې يې ضرر لرونکي دي. همدغه وضعيت د دې باعث کېږي چې ځينو اشخاصو نومونه پاتې کېږي کوم چې انسانانو ته يې د ښه ژوند برابرولو په لار کې هلې ځلې

کړې دي، دا په دې معنی نه ده چې د هغو میلیونونو انسانانو نومونه چې نه اخستل کېږي او یا نا پېژندلي پاتې شوي دي په ساده ګۍ سره پاتې شوي دي او یا د مطالعې ارزښت نه لري، بلکې په تاریخ کې هر څه ارزښت لرونکي دي د ځمکې پر مخ په میلیونونو او میلیاردونو انسانانو ډول، ډول ژوند کړی دې او تاریخ یې داسې کوم یادښت نه دی کړی، نو ویلی شو چې تاریخ د لنډ لیکنې یو ډول دی او هغه عواملو او پېښو ته ځای ورکوي چې د بشر په ژوندانه کې د اهمیت وړ وي او یا یې ستونزې ایجاد کړې وي.

کله چې د نړۍ تاریخ څخه یادونه کوو، نو فوراً انسان ته د نړۍ تیرې شوې واقعې په ذهن کې ورګرځي. اما موږ دلته په ټول او عمومي تاریخ باندې بحث نه کوو. بلکې زموږ د بحث موضوع بیا یوازې د نړۍ سیاسي تاریخ مطالعه کول دي، یعنې موږ د نړۍ د تېرو دورو پر ځینو مهمو سیاستونو باندې په تاریخي ډول بحث کوو. ښکاره خبره ده چې د سیاستونو لپاره تاریخ د خامو موادو حېثیت لري، کله چې موږ خام موادو ته لاسرسی ولرو، تحلیل او پروسس یې کړو، نو پر مټ یې د راتلونکي لپاره وړ او بریالي سیاستونه جوړولی شو او هم یې د پلي کولو لارې تشخیص او پیشبیني کولی شو. چې د نړۍ د سیاسي تاریخ له مطالعې څخه پرته په نړیوالو سیاستونو پوهېدل او په نړیوال سیاسي ډګر کې بازي کول سخت او حتی ناشوني ښکاري.

زمونږ بحث د لومړنیو تمدنونو د رامنځته کېدو او د انسانانو د ابتدایې ژوند څخه پیلېږي، او په مسلسل او لنډ ډول د نړۍ د ځېنو مشهورو تمدنونو (د رامنځته کېدو څرنګوالی، علل او عوامل او همدارنګه د دغه تمدنونو د له منځه تللو علتونو)، د نړۍ په مختلو سیمو او مختلفو وختونو کې د امپراطوریو او حکومتونو جوړېدل او له منځه تلل، له شپاړسمې پیړۍ وروسته د اروپا د لویو قدرتونو د سیاستونو څرنګوالی، دوه نړیوالې جګړې، سړه جګړه، ځینې نورې مهمې وروستۍ پیښې او همدارنګه ټولې هغه پیښې چې د بشر په ژوندانه کې یې ډول ډول تغییرات او تحولات رامنځته کړي، تر بحث لاندې نیسو.

د نړۍ سیاسي تاریخ مضمون د حقوقو او سیاسي علومو په پوهنځي کې د دوو سمسترونو په جریان کې لوستل کېږي، کله چې د نوموړي مضمون د تدریس چاره ماته وسپارل شوه. ما د

کریکولم مطابق، ټول اړوند موضوعات په ډېر دقت سره د معتبرو مأخذونو څخه راټول کړل. خدای جل جلاله دې وکړي چې ګرانو محصلینو وروڼو او خویندو لپاره ګټور تمام شي او د خپلې علمي پانګې په زیاتولو کې ورڅخه تر اعظمي حده استفاده وکړي.

**په درنښت**

**پوهنیار بلال بدلون**

**د ننګرهار پوهنتون، د نړیوالو اړیکو ډیپارټمنټ د علمي کادر غړی او آمر**

# لومړی فصل

## عمومیات

مخکې له دې چې په اصلي موضوع بحث پیل کړو، لومړی ځینې مفاهیم تعریفوو.

تعریف (پیژندګلوي): تاریخ له هغه علم څخه عبارت دی، چې له تېرو کړنو، پېښو او مسایلو (هغه مسایل چې د پرمختګ او د فکر د بدلون په څانګه کې اثر ولري) څخه په دقیقه توګه بحث کوي.

تاریخ یعنې د هغه څه ثبت چې موجود و او هغه عوامل چې د هغو پیښو د پیدایښت لامل شوي.

د تاریخ یوه دنده دا ده چې د فرهنګونو د منځته راتلو، له منځه تللو او د هغو د بریالیتوب، ماتې، پرمختګ او شاته تګ څخه هم بحث وکړي.

د تاریخ کلیمه په نسبي ډول دوه معنی ګانې لري، لومړی دا چې څه پیښ شوي دي، دویم دا چې د پیښې شوې پیښې په سم او درست ډول څیړنه او بررسي کول دي.

په تاریخ کې داسې پیښې څېړل کېږي چې پخوا واقع شوي وي، د نړۍ تاریخ هم همداسې دې کېدای شي ډېر داسې څه چې تېر شوي وي نالیدلي راواخلي. د دې ضرورت نشته چې پخوا وختونو ته وګرځو او ټول هغه لویې پیښې وڅېړو، چې د نننی نړۍ د منځته راتللو باعث ګرځېدلي او په دې ځان پوه کړو چې مونږ چېرته قرار لرو. تاریخ د اشخاصو د ژوند له داستان څخه عبارت دی او څه چې مونږ پورې اړه پیدا کوي هغه د انسان تېر وختونه دي او هغه څه چې د انسان په تېر ژوند یې اغېز غورځولې. لکه جغرافیوي وضعیت، اوبه، هوا، مریضي ـ ګانې او نورې طبیعي پیښې چې د هغې په اساس یو شمېر انسانان ژوندي پاتې شوي او یا مړه شوي

دي. همدارنګه د بله نظره تاریخ عبارت دی له هغه پیښو څخه چې انسانانو سرته رسولي او یا په انسانانو راغلي دي.

په دې ترتیب تېر وختونو ته باید په ځانګړي نظر وکتل شي، ځکه هغه پیښې چې پخوا واقع شوي که یې غواړو او یا یې نه غواړو باید یادونه یې وشي، چې له دې پرته به د انسان د تېر وخت داستان په سم ډول بیان نه شي.

په هر حال د انسان د پیدایښت او د داستان د پیل په اړه په قرانکریم کې پوره تفصیلات شتون لري چې انسان څرنګه پیدا او ځمکې ته راولېږل شو. خو په دې اړه د الهي اخبارو پرته داسي کوم لیکلي اسناد شتون نه لري؛ خو د وروسته وختونو په اړه ځینې وړاندوینې کېږي چې انسان مختلف مراحل او دورې تېرې کړې دي او خپل ژوند یې منسجم کړی، اور یې کشف کړ، ښکار، کښن او هنر یې پیل کړ، صنعتي تحولات، له فلزاتو څخه استفاده او کورونو جوړولو ته یې مخه کړه او اجتماعي ژوند یې پیل کړ، چې دغه ټولې چارې له میلاد څخه میلیونونه کلونه وړاندې ترسره شوي دي او له تاریخ څخه وړاندې وختونو ته منسوبېږي، چې مونږ وربادنې په جزئیاتو بحث نه کوو؛ بلکې همدومره یادونه یې کافي بولو.

## د سیاست پېژندګلوي(تعریف)

سیاست له هغه علم څخه عبارت دی چې د ټولنیزو پدېدو (څرک) سیاسي څانګې او برخې تحلیل او څېړي. سیاسي څېړنه له انسان سره مرسته کوي ترڅو هغه نړۍ چې پکې ژوند کوي په ښه توګه وپېژني او له بېلابېلو لارو او د ځواک(قدرت) له ځانګړتیاوو څخه په ګټه اخیستنه د ځان لپاره لاره غوره کړي.

یو شمېر د سیاست د څېړلو (تحلیل) مرکز دولت بولي، خو یو شمېر په دې آند دي چې د سیاست علم له حکومت (اجرائیه ځواک)سره سروکار لري، خو درېیمه ډله روڼ آندي بیا دا دواړه نظرونه سره یوځای کوي.

پل ژانت چې یو فرانسوی عالم دی: بیا له سیاست څخه بېله پېژندګلوي (تعریف) بیانوي او وايي، سیاست د ټولنیزو علومو له ډلې څخه یو علم دی چې د دولت له بنسټونو (بنیادونو) او حکومت له اصولو څخه بحث کوي.

نور روڼ آندي لکه (هارولدلاسکي، هانس مورګنتا، مونتسکېو او براترانراسل) په دې عقیده دي او وايي چې په سیاست کې قدرت د جوهر زېرمه ده او همدارنګه زیاتوي چې قدرت د دولت اساس او د مفهوم په معنی ده او د سیاست د علم (پوهې) ټول خاښونه سره نښلوي.

خو له دې سره د سیاست د اجراء کولو او منلو مهم عنصر قدرت دی او د قدرت پېژندګلوي، د سیاست اصلی دنده ده.

په ټولیزه توګه کولی شو له سیاست څخه داسې پېژندګلوي(تعریف)ولرو. د سیاست علم د ټولنیز پوهاوي یوه ریښه ده چې دنده یې د یو هېواد په دننه کې د ټولنیزو ځواکونو ترمنځ په سیاسي اړیکو د حاکمو اصولو او منظمو قواعدو پېژندګلوي او په نړېواله کچه د هېوادونو ترمنځ له اړیکو څخه عبارت دی.

له سیاست څخه یوه بله پېژندګلوي(تعریف) هم وړاندې شوی: چې دا تعریف هارولدلاسکي کړی، دی وايي سیاست یعنې په دې پوهېدل چې څه شي وړي، څه مهال یې وړي، څه ډول یې وړي او ولې یې وړي.

سیاست په ټولنه کې د انسان د کړنو مهمه خانګه (حوزه) ده او ډېر ژر د هرې ټولنې د وګړو د فکر، دود (کلتور) د ډله یېزې او ځاني وړاندیزونو او ټولنیزو او اقتصادي لاملونو تر اغېزې لاندې راځي.

## د سیاسي علم د څېړلو لارې

د سیاست د علم د څېړلو مختلفې لارې چارې لري لکه: تاریخي ډول، ازمایښتي ډول، (مشاهده) د لیدلو ډول او تطبیقي ډول، چې مونږ دلته یوازې سیاست په تاریخي ډول څېړو.

جوته خبره ده چې د ډېرو رامنځته شويو پېښو، برياليتوبونو او ستونزو ريښه له پخوا څخه ده. له دې امله د سياسي څرک (پدېدو) او سياسي کړنو څېړلو ته اړتيا ده څو سياسي علم په تاريخي ډول وڅېړو.

يادونه: د سياسي علم تاريخي ډول څېړنه، نه يوازې مونږ ته تېر حالت ښانوي؛ بلکې مونږ اړ باسي څو راتلونکي بدلونونو ته اساسي اصول او قواعد چمتو کړو.

په معاصره پېړۍ کې يو شمېر پوهانو لکه فرانسوي باتيست ويکو، جان سيلي او فريمن په تاريخي ډول څېړلو څخه ډېر کار اخيستی دی. انسانان د پخوانيو ازمايښتونو نسل او ټولنيز ميراث ساتي. (تاريخ پخواني ازمايښتونه بيانوي) او دا به هم بې ګټې وي که ووايو چې د تېرو کړنو له څېړلو پرته دې اوسنيو واقيعتونو ته لاس رسی پيدا کولی شو. د دې ډول څېړنو په اړه مارکس او ارسطو په دې عقيده دي، چې د هر شي د پېژندلو لپاره بايد د هغه د پيل او څواکمن کېدو وختونه (مراحل) ومومندل شي. همدارنګه دغه دوه پوهان تاريخي ډول څېړنه د سياسي څانګو د پېژندګلوۍ بنسټ بولي. له تاريخي ډول څخه په کار اخيستنه بايد د نېک نيت او بدنيت د ظرافتونو د پوهېدلو په اساس باندې ډېر فکر وشي. ځکه تاريخ کولی شي تګلارې وښيي، خو د دې وړتيا نه لري څو د پاېلې ارزښت وټاکي.

همدارنګه ضروري ده، چې يادونه يې وکړو چې تاريخ د دې وړتيا نه لري څو ووايي څه به وشي، اما يوازې د پخوانيو پېښو او واقعو د منځته راتلو او له منځه تللو دلايل وړاندې کوي.

## تمدنونه

تمدن: د تمدن کليمه په عربي ريښه کې له مديني او مدنيت څخه راغلې، چې د ښاري ژوند معنی او مفهوم ترې اخيستل کېږي. همدا مفهوم (معنی) په عربي ژبه کې خپله واقعي معنی پيدا کوي؛ ځکه تمدن هغه مهال خپله واقعي معنی پيدا کوي،کله چې انسانان د ځمکې پرمخ ژوند کوي او يو له بل سره راکړې ورکړې او همدارنګه له کورنيو ستونزونه د خپل ځان د ژغورلو په خاطر ګډ وضع شوي قوانين مني او د يو کورني چاپېريال په جوړولو پيل کوي. نن په دري ژبه کې د تمدن د کلېمې د پوهېدو لپاره په قاموس کې د (فرهنګ)له کلېمې څخه کار

اخیستل کېږي. په داسې حال کې چې فرهنګ د تمدن یوه برخه ده. چې د تمدن (مختنګ) د پیاوړي توب او سرلوړۍ لامل ګرځي. په لاتین ژبه کې د تمدن کلیمه له (Civil is) چې د بربریت (جهالت )په وړاندې کارېدله، اخیستل شوې ده.

د تمدن تعریف: د کوښښونو او چمتو والي له هغې ټولګې څخه عبارت دی چې یوه ډله انسانان یې د خپلو ستونزو له منځه وړو لپاره کاروي.(څه مادي وي یا هم معنوي) او یا هم په بل عبارت، تمدن له هغه پړاو څخه عبارت دی چې یوه ډله انسانان د علماوو د پوهې د لاسته راوړلو پر مهال ورته لاس رسی پیدا کوي.

تمدن د ټولنیزو او سیاسي سازمانونو له مادي او معنوي لاسته راوړنو څخه عبارت دی او همدارنګه ښاغلی ویل دورانت وايي چې د تمدن تاریخي بهیر له ختیزو ځمکو څخه سرچینه اخیستې ده. لکه څنګه چې څرګنده ده تاریخ د ټولو خیزونو ثبت دی، خام او لومړني مواد مونږ ته د څېړلو لپاره د تېرو پېښو څخه بیانوي او د تاریخي څېړلو په ډول هم ټول واقیعات ښايي او هم له هغو څخه په ګټه اخیستنه راتلونکې تفسیر بیانوي.

## د تمدن د پرمختګ تاریخي بهیر

د روایاتو په بنا په اروپايي تاریخ کې د تمدن کلیمه د لومړي ځل لپاره په ۱۷۵۶م کال د فرانسوي عالم بلانژه لخوا وړاندې شوه او په ۱۷۹۸ م کال رسما د فرانسې هېواد د ادبي بیان د اصطلاحاتو یوه اصطلاح شوه. په دې اړه چې د تمدن مفهوم له کومو عناصرو څخه جوړ شوی دی بېلابېل لیدلوري وړاندې شوي؛ خو امریکايي پوه جېمز دورانت بیا د تمدن متشکله عناصرڅلور بولي.[1] لکه:

۱) اخلاق ۲) دنده یا شغل ۳) دولت ۴) دین

تمدن ته په ټولېز ډول ټولنیز نظم ویلی شو، چې په شتون سره یې فرهنګي خلاقیت په ساده ډول بهیر موندلی شي او دندي معنی یې له دغه تعریف څخه ترانسپورټ د سړکونو جوړول او نور خیزونه او یا د خلکو د ژوند ډول، پېشه، کسب او نورې بوختیاوې دي، دا په

[1]. محمد علي طالب زاده، تاریخ مختصر جهان.

پخواني مصر پورې اړوند بولي. ښاغلی جېمز دورانت چې د تمدن درېیم عنصر دولت بولي د هغو ښکارې دا د هند او سومر په پخوانیو ټولنو پورې اړوند وبولي؛ خو د اخلاقو په برخه کې بیا وايي چې دا ډول تمدن د مصر، بین النهرین او چین له پخوانیو درباریانو سره رېښه لري.

ښاغلی ویل دورانت په دې باور دی او وايي چې کولی شو په تمدن کې څلور رکنه تشخیص کړو، چې هغه عبارت دي له، په اقتصادي چارو کې د وړاندوېنې په اړه احتیاط، اقتصادي سازمانونه، د اخلاقو احترام، دود او دستور ، د هنر او پوهې په لاره کې کوښښ. د تمدن څرګندېدل او پرمختګ هغه مهال شوني دي چې په ټولنه کې سوله شتون ولري.

د پورتنیو دلایلو پر بنسټ ویلی شو، چې تمدن لکه هره بله پدېده(څرک) یو تاریخ لري، او درې روڼ اندو بشري تمدن د تاریخي ډول څېړلو لپاره په درېیو پړاونو وېشلی دی.

**لومړی) د خط له پیداېښت څخه وړاندې پړاو**

که څه هم دغه پړاو باندې اړوند بهیر د تاریخي اثارو د پېژندګلوی په علم پورې اړه لري، خو بیا هم د پاتې شونو اثارو څخه بحث کوي.

**دویم) د خط له پیداېښت څخه وروسته پړاو**

دا هغه پړاو دی، چې انسانانو وکولی شول د خپل ژوند بهیر له دوی څخه وروسته کسانو ته انتقال کړي. د خط له پیداېښت څخه وروسته و، چې د انسانانو په ژوند کې لوی او پیاوړی بدلون رامنځته شو او بشري تمدن د ودې په حال کې شو.

**درېیم) صنعتي او علمي تمدن**

د دې تمدن بنسټ په اتلسمه او نوولسمه پېړۍ کې کېښودل شو او تر اوسه پورې دوام لري. دا هغه پړاو دی چې بشري ټولنې ډېرو پرمختللو او پیاوړو څیزونو ته لاس رسی پیدا کړ. او تکنالوژي دې حد ته ورسېده چې شلمه پېړۍ په اټومي پېړۍ او یوویشتمه پېړۍ د انټرنټ په پېړۍ ونومول شي.

نن ورځ د ټولنیزو اړیکو په برخه کې له داسې یو حالت سره مخامخ یو، چې د اطلاعاتو د چاودنې په نامه یادېږي، چې په حقیقت کې اوسني نسل دا هیله نه درلوده. نو په دې اساس

ويلی شو چې تمدن د کلتور عالي او تاکنيز پړاو دی (کله چې کلتور خپل عالي پړاو ته ورسېږي هغه ته تمدن وايي).

کلتور: د يوه ملت يا امپراطورۍ له رسومو، عنعناتو، فعاليتونو او مفکوره وي ټولګې څخه عبارت دی. (په ټاکلي وخت، خو د کلتور، فرهنګ او تمدن مفهوم په نظر کې نيولو سره).

د تمدن د سرچينو په اړه يوه ډله تاريخ پوهان په دې عقيده دي کومې چارې چې په لومړنيو وختونو کې انسانانو د خپل ژوند د بهبود په خاطر سرته رسولې هغې ته د تاريخ نوم نه شو ورکولی، اما کله چې غواړو د انسانانو د تېر وخت په اړه خبرې وکړو؛ نو بايد د هغوی د افکارو او عقايدو په اړه پوره معلومات ولرو او په دې هم بايد وپوهېږو، چې په کومه ژبه يې خبرې کولې او هم د هغوی افکار او عقايد بايد په ليکلي بڼه تر مونږ رارسېدلي وي.

چې دغه خصوصيات له ميلاد څخه ۵۵۰۰ کاله وړاندې په چېنايانو کې شتون درلود، په داسې حال کې چې د چېنايانو د لومړني ليکل شوي خط نسبت له ميلاد څخه وړاندې د ۳۰۰۰- ۳۵۰۰ کلونو وخت پخوا ته کېږي. دغه ليکنې څو سوه کاله په ډبرينو لوحو او يا د ختې ثبت شوې وې او غټ حجمونه يې درلودل چې وروسته يې بيا بڼه بدله شوه.[1]

په تيرو ۵۰۰۰ کلونو کې د انسان ژوند ډېر تحولات او تغييرات کړي دي او دا هغه دوره ده چې څېړونکي يې له تاريخ څخه وړاندې دورې په نوم پېژني، چې دغه دوره د ليکنې د شروع، ثبت او ساتنې دوره وه. په عمومي ډول هغه څه چې د خط د پيدا کېدو څخه مخکې واقع شوي هغه له تاريخ څخه وړاندې دورې پورې اړه لري. کوم اسناد او شواهد چې هم د هغې د حقيقيت په اړه شتون لري، ليکلي نه دي او مؤرخينو هم په دغه دوره کې د تحقيق کار نورو ته سپارلی و. له تاريخ څخه مخکې دوران کې کوم کارونه چې واقع شوي او بشر چې د ژوندانه کوم مراحل طی کړي، انسان په دې وتوانيد چې خط کشف کړي، صنايع ايجاد کړي، يا بنايي او د ژوند نورې چارې سرته ورسوي، په کوم وخت کې چې خط شتون درلود يعنې ۵۰۰۰ کاله

[1]. محمد علي طالب زاده، تاريخ مختصر جهان.

وړاندې ټولې پدېدې له میلاد څخه مخکې وخت نه ریښې لري او څه چې په انسان تېر شوي زیاتره یې په دغې دورې پورې اړه لري.

که چېرته د متمدن انسان لومړني ژوند ته توجه وکړو؛ نو مجبوراً به له تاریخ څخه مخکې دوران ته مراجعه کوو او د ټولو پدېدو ریښې به هم په همدغه دورې کې پلټو او پیدا کوو، چې په همدې دلیل مونږ هم خپلې خبرې له همدې ځایه پیلوو، زمونږ نیکونو د ښه او بهتر ژوند د شرایطو د برابرولو لپاره چې مونږ یې تمدن نوموو، ډېر زیات څه مونږ ته په مېراث پرېښي دي، که چېرې د لباس په جوړولو نه پوهېدی، نو په دې هم نه توانیده چې مختلف ډوله جامې انتخاب او وټاکي. لکه څرنګه چې مونږ او تاسې ګورو د لباس او هغه څه چې زمونږ تر سترګو کېږي د ټولو د ایجاد او اختراع لپاره لوازمو ته اړتیا لیدل کېږي، چې په نومونړې دوره کې رامنځته شوي دي او په دې توګه له محیط سره د انسان تطابق رابښيي، چې د انسان د ژوند د بقاء لپاره ضرور او اړین دي.

ویلی شو چې د پخوانیو دورو د لاسته راوړنو او اختراعاتو څخه د استفادې پرته نشو کولای چې په خپلو پښو ولاړه ابتدایي ټولنه تشکېل کړو.

په نږدې ختیځ کې له میلاد څخه ۵۰۰۰ کاله وړاندې په حدودو کې کلیو او باندېو شتون درلود او ویې کولای شو، چې د زراعت په تولیداتو کې زیاتوالی راولي، چې د دغې ټولنو ځینې د پیچلو آدابو او مذهب لرونکي وه، همدارنګه دوی به نقاشي هم کوله چې د نئیولتیک دورې په نوم سره یادېږي.

## لومړني تمدنونه

لومړني تمدنونه له میلاد څخه ۳۵۰۰ - ۵۰۰۰ کاله پخوا رامنځ ته شوي دي، چې د دغه تمدنونو د هلو ځلو په نتیجه کې د بشر- په ژوندانه کې ژور تغییرات منځ ته راغلل. په دې اساس د اوسني ژوند ریښې د هماغه ځای څخه سرچېنه اخیستې ده، ځکه چې نن ورځ هم د نړۍ د فرهنګي مسایلو زیاته برخه د همدغو تمدنونو پر بنسټ تعینیږي، چې دغه تمدنونه د ځانګړو انساني مهارتونو او طبیعي واقعیتونو د اختلاط په نتیجه کې منځته راغلي دي، چې زرګونه کلونه یې په برکې نیولي دي او ټول موفق هم نه دي؛ بلکې ځینو یې د تمدن په وړاندې

ستونزې هم ایجاد کړي دي تر دې چې ځينې يې د تمدن د منځه تللو باعث هم ګرځېدلي دي.

له میلاد څخه ۳۵۰۰ کاله وړاندې کلونو په شاوخوا کې لومړنی تمدن چې پېژندل شوی دی په بین النهرین کې رامنځ ته شوی و، د ۳۱۰۰ ق م په شاوخوا کې په مصر کې تمدن منځ ته راغلی، په کرت (crete) کې د تمدن نښې ۲۰۰۰ ق م کې کشف شوي دي. په دغه وختونو کې د تمدن نښې په مدیترانه او نزدې ختیځ کې لیدل شوي نه دي؛ بلکې د تمدنونو تداخل او یوځای والی تر سترګو کېږي چې اوس په ځېنو مشهورو تمدنونو لنډ بحث وکړو.[1]

## سومر

د بین النهرین جنوبي سیمه چې نن ورځ د عراق په نوم یادېږي، له میلاد څخه ۴۰۰۰ کاله وړاندې د سومر په نوم یو قوم ظهور وکړ، چې په سومري ژبه يې خبرې کولې، دغه قوم د دجلې او فرات سیندونو په څنډو کې ژوند کاوه چې پراخې حاصلخيزه ځمکې يې درلودلې، چې تل يې د تاریخ په اوږدو کې د بشر توجه ځانته راجلب کړې.

دا چې دا ځمکې د دجلې او فرات د سیند پر څنډو پرتې وې نوموړو سیندونو د دغې سیمې په حاصلخیز والي پوره اغېز درلود، په دې توګه حاصلات به يې د کلني لګښت څخه ډېرېدل او همدارنګه د ماهیګیرۍ څخه يې هم عواید ترلاسه کول، چې د لګښت څخه زیات حاصلات به يې د ښارونو پر ابادۍ مصرفولې.

د بین النهرین طبیعي وضعیت همیشه یو ډول نه و، بلکې د دجلې او فرات د سیندونو د فوایدو سره سره يې یو لړ ستونزې هم رامنځ ته کولې، چې د بارانونو د وریدو په صورت کې به سیلابونه پر ځمکو راختل او په دې ډول به يې ستونزې ایجادولې. نو د دې اړتیا وه چې په ځمکو کې د اوبو د وتلو لپاره لارې جوړې کړي، بندونه او د اوبو د ذخیره کولو لپاره کانالونه جوړ کړي، چې نن ورځ هم په هماغه پخوانۍ بڼه تر سترګو کېږي.

---

[1]. محمد علي طالب زاده، تاریخ مختصر جهان.

د سیلابونو پواسطه د دغو حاصلخیزو ځمکو سره نورې وړې ټوټې ځمکې په یوځاې کېدو سره د ځمکو لویې ټوټې منځ ته راغلې، چې د اوبه کولو پر مهال د یووالي څخه برخمنې شوې. چې په دې توګه کارونه په یوځای ډول سرته رسېدل او په حاصلاتو کې د پام وړ زیاتوالی راغی او په نتیجه کې په تدریجې ډول قانوني بنسټونه تشکېل او منځ ته راغلل.

په دې ډول د دغه ځمکو ابیاري د یووالي او همغږۍ باعث جوړ شو، چې خلکو لاسونه سره ورکړل قوي ډلې یې جوړې کړې، په اتحاد او یووالي سره یې د خپلو ځانونو او ځمکو څخه حفاظت کولو او په مدیریت کې یو له بله سره مرسته او ملګرتیا کوله، چې په نتیجه کې یې ښار رامنځته او څرګند شول.

سومریانو په لومړي قدم کې د دښمنانو د هجوم د خطر د مخنیوي لپاره د ښار چارچاپېره د خټو دیوال وکړ او دغه ساحه د دوی د عبادت ساحه ګڼل کېده، چې روحانینو به له دغه ځاې څخه د خپل نفوذ په حوزه حکمراني چلوله.[1]

**خط**

د روایاتو پر بنسټ د سومریانو تمدن د ۳۳۰۰ ق م څخه تر ۲۰۰۰ ق م پورې ادامه درلوده، دوی به د خټو پرمخ استوانه یې شکله مهرې رسمولې او د خټېنو لوحو په وسیله یې نقاشي رامنځ ته کړه، چې دا خپله د خط په لور یو ګام حسابېږي. دغه ډول لیکل شوي پیغام رسول په تدریج سره په میخي لیک تبدیل شو.

په میخي لیک کې د پیغام لېږلو او ساتنې لپاره د یو ډول خاصو علایمو څخه استفاده کېدله، د دغې لیک په کشف سره د انسانانو ترمنځ په ارتباطاتو کې یو لوی تحول منځ ته راغې، چې د ژوند په ټولو برخو بې اغېزې نه و. همدارنګه اثار یې تر شا پرېښوده چې تر ټول مهم اثر یې د ګلیګمش دی چې له میلاد څخه ۲۰۰۰ کاله وړاندې لیکل شوي او د یو سیلاب یادونه کوي، چې په هغه وخت کې یې هر څه تباه کړل فقط یوه صالحه کورنۍ ورڅخه د

---

[1]. محمد علي طالب زاده، تاریخ مختصر جهان.

کشتۍ په ذریعه پاتې شوه. چې دغه کېسه بیا قران کریم را اخلي او د نوح علیه السلام کېسه یې ګڼلې شو.

## د سومریانو دین

د سومریانو ادبیات، رسم او آداب د عقایدو بیانونکي دي، لکه مخکې مو چې د ګلیګمش د داستان څخه یادونه وکړه، چې مذهب په اړه هم پکې ذکر راغلی دی، سومري ژبه کې ډېر داسې اثار پاتې شوي چې مذهبي بڼه لري.

د میلاد څخه ۲۲۵۰ کاله وړاندې په دې سیمه کې د ګڼ شمېر خدایانو عبادت کېده، چې زرګونه کلونه سابقه لري، هر ښار ځانګړی خدای درلود، دغې وضعیت د خلکو ترمنځ په تدریجي ډول طبقې رامنځ ته کړې، همدارنګه دوی د هر خدای لپاره کارونه ځانګړي کړي ول. لکه د اوبو خدای، د هوا خدای، د زراعت خدای، د عشق خدای، د تولد او تناسل خدای، د جګړې خدای او داسې نور... چې د هر درزیو خدایانو په رأس کې یو خدای شتون درلود. دوئ عقیده درلوده چې د پلار خدای او د هوا خدای پرته هېڅ کار امکان نه لري او د هرې پېښې تر شا خدایان شتون لري، چې په دغه کچه مذهبي رسوم پالنه او آدب په هغه وخت کې په یوه ټولنه کې هم شتون نه درلود.

په سیاسي لحاظ د سومر په مذهب کې ټولې ځمکې د خدایانو پورې اړه لري او پادشاه چې زیاته روحاني بڼه یې درلوده، هغه څوک نه و چې په جګړه کې به یې برې تر لاسه کړی و بلکې د خدای نماینده او استازې ګڼل کېده، په شاه به هغه خلک راټول شوي ول، چې د علومو او فنونو خاوندان به ول، همدغو خلکو به دولت تشکیلاوه، ځکه دوی د علم او ادب څښتنان او سیاستمداران ګڼل کېدل، چې په دې ترتیب لومړنۍ فرهنګې ټولګه منځ ته راغله چې د علم او آدب تدوین او ساتنه یې په غاړه درلوده.[1]

---

[1]. محمد علي طالب زاده، تاریخ مختصر جهان.

# د سومريانو د ژوند ډول

د سومريانو مذهبي افکار د دې لامل شو چې د دوی ترمنځ يووالی او همغږي رامنځ ته کړي، ډلې- ډلې خلک به په دسته جمعي ډول د مذهبي وظايفو د سرته رسولو په خاطر تلل، تصويران به رسمول او نقاشي به يې کوله.

همدارنګه د سومريانو په هنري اثارو کې حيواناتو او جګړې عمده اغېزې درلودلې. بل څه چې سومريانو به خپل هنر کې ارأيه کول هغه د تمدن په لورې تدريجي حرکت و، چې دغه حرکت يې په چټکۍ سره سرته ورساوه. بايد يادونه وکړو چې د هنر له لارې نه شو کولی چې د سومريانو د ژوند ټوله بڼه کشف کړو.

د دغه وخت مجسمې، تصاوير او نقاشي مونږ ته دا نتيجه په لاس کې راکوي، چې په دغه وخت کې خلکو د پسه او يا د وزې د پوستکي لمن اغوستلې او ښځو د همدې جنس څخه په غاړه اچول، سربازانو هم همدغه لباس اغوسته، چرمي خولۍ به يې په سرکولې، سلاح ګانې به د ځان سره لېږدولې. اکثره خلکو به ږيرې خريلې، په کورنيو چارو کې رفاهيت تر سترګو کېده، د زيوراتو څخه به د زينت لپاره استفاده کېده، مېړه د کورنۍ رئيس و او د ښځې غوښتنه به هم د سړي له خوا صورت نيوه. سړي به د کور د ټولو چارو د سرپرستي په غاړه درلوده. په لنډه توګه ويلی شو چې د سومريانو په تمدن کې هم د نزدي ختيځ او د نړۍ د نورو هېوادونو په څير ښځو د نارينه څخه په کم موقف قرار درلوده. ښځو ته به طلاق هم ورکول کېده، که چېرې کومې ښځې به خپل مېړه سره بې وفايي وکړه؛ نو د مرګ جزا به ورکول کېده، په داسې حال کې چې د نارينه و په اړه دغې جزا شتون نه درلود، خو د دې سره بيا هم د ښځې او مېړه ترمنځ د ښېنې او احسان اړيکو شتون درلود. د حجاب او پردې قانون بيا ډېره موده وروسته منځ ته راغی.

د سومريانو کورونه له خټو څخه جوړول؛ خو په بين النهرين کې د تېرو کورونه کاميابه ول او له خټو څخه به يې د خښتو په څير استفاده کوله کله به چې خښتې په لمر کې وچې شوې نو بيا به يې کور پرې جوړاوه، په وروستيو وختونو کې د دوی ترمنځ اجوره ورکول هم دود شو،

چې د اجوري په مقابل کې به یې لوی تعمیرونه جوړول، تر ټولو لوی برج د زیګورات (Ziggurat) برج و، چې د اور په ښار کې جوړ شوی وو.

همدارنګه سومریانو په خپل وخت کې څرخ او شیشه کشف کړه، چې له څرخ څخه به یې په حمل او نقل کې استفاده کوله. د شیشې خام مواد به یې د بین النهرین له جنوب څخه واردول، چې په دې توګه سومریانو خارجي روابط او تجارت هم درلوده. لکه د فارس خلیج د څنډو له اوسېدونکو سره، ترکیې او سوریې سره او همدارنګه له میلاد څخه ۲۰۰۰ کاله وړاندې د اندوس د رود د اوسېدونکو سره غیرمستقیمې اړیکې لرلې.

خو په مجموع کې د ټولنې ژوند د زراعت په تولیداتو ولاړ و، سره له دې چې په دې سیمه کې تجارت د اقتصادي استقلال څخه په یو ډول برخمن و.

## په سومریانو کې سیاسي تحولات

سومریانو درې مختلفې مرحلې تېرې کړې دي، لومړنۍ دوره چې د زړې دورې په نوم مشهوره ده ۳۳٦۰ ق م څخه شروع او په ۲۴۰۰ ق م پای ته رسېږي، په دغه دوره کې د ښاري دولتونو (City Stats) ترمنځ جګړو شتون درلود، چې کله کله به شدت ته هم ورسېده. د ښاري دولتونو قوت د هغوی د نظامي تجهیزاتو او د څارویو له څرخکونو څخه ښکارېږي.

د دغې دورې په ترڅ کې محلي حکومتونه جوړ شول، سومریانو به د خپل منځ څخه د حکومت کولو لپاره استازي لېږل، چې تر یوې اندازې یې انتخابي بڼه لرله چې همدغې محلي حکومتونو په تدریج سره رشد وکړ او د لویو حکومتونو بڼه یې خپله کړه.

دولت کوونکي جنګیالي ول، چې د بهرنیو حملو په وړاندې به د خپلو خلکو د دفاع په خاطر انتخابېدل، له دې وروسته پادشاه هم ظهور وکړ، چې شاه به هم په تدریج سره جګړه کې و، خپل نفوذ او قدرت ته به یې د جګړې له لارې پراختیا ورکوله، چې په نتیجه کې حکوت په فردي سلطنت او قوي مرکز تبدیل شو.

د ښاري دولتونو لومړنی پاچا سارګون واکد په نوم په علیا فرات کې پادشاهي کوله چې د دغې سیمې دقیق ځای په اوسنۍ بڼه معلوم نه دی، نوموړي ۲۴۰۰ ق م - ۲۳۵۰ ق م کلونو

ترمنځ په سومر غلبه حاصله کړه او د آکد قوم يې پرې مسلط کړ. د نوموړي پادشاه مجسمه کشف شوې چې ظاهر يې يو سر ښکاري. د نوموړي دولت لښکرې مصر او حبشې پورې ورانديې ولاړې ترڅو هلته فتوحات وکړي، خو د سارګون د حکومت سلطه په نورو ښارونو د ښاري سلطې په اساس نه وه؛ بلکې دغه سلطه يې د يو اتحاد په اساس منځ ته راوړې وه، چې هنري اثار يې پاتې شوي چې د نوموړي د پيروزۍ کېسې کوي، د اکد دولت د سومريانو د دورې پای نه ګڼل کېږي، بلکې د سومريانو دويمه دوره بلل کېږي چې د دولتي سازماندهي کولو مرحله ارائيه کوي. د سارګون د حکومت پرمهال حکومت واقعي معنی لرونکی و، د حکومت کولو او تشريفاتي مسؤليتونه چې د خدای د منشي په غاړه وي ده ته حاصل ول. سومري ښارونه د عبادت ځايونو په خوا کې جوړ کړل، چې په تدريج سره بيا قصرونه هم جوړ شول او داسې تصور موجود دی، چې خدايان د قصرونو او ماڼيو پښتي بانان او ساتونکي دي.

د سربازانو حرفه يې جوړښت او مهارت د دغه تحولاتو سره مرسته وکړه چې نظامي قدرت د سپر او نېزې په بڼه د اور په ښاري دولت کې ظهور وکړ.

ويل کېږي چې سارګون ۵۴۰۰ سربازان لرل چې د ده په حضور کې به يې د ده په ماڼۍ کې غذا خوړله چې له شک پرته دغه وضعيت د مبارزو او کاميابيو څخه منځ ته راغلی و، چې د سربازانو د شتون دليل هم سيمه ييزې مبارزې وې، په دغه زمانه کې د حاکمانو وظايف د سيلابونو کنترولول او د اوبو د جريان تنظيمول ول، چې د دې د تأمين لپاره د سربازانو د شتون اړتيا برېښېده.

بايد يادونه وکړو چې له سارګون څخه يوه نيمه پيړۍ وروسته د آکد حکمراني او اقتدار له منځه لاړ او کوچي کېدل شروع شو چې د ګات (Gutians) په نوم يادېږي، د سومري دورې درېيمه دوره بلل کېږي چې څېړونکي يې د نوي سومر په نوم هم يادوي.

د ميلاد څخه ۲۰۰۰ کاله وړاندې د سومريانو ښه والی او بهتري يو ځل بيا راوګرځېدله چې دا ځل يې پايتخت د اور ښار و، د سومريانو د درېيمې دورې لومړي پاچا خپل ځان د سومر او اکد د شاه په نوم باندې نوماوه. هغه کوشش کاوه چې خپل عبادت ځايونه او زايګوراتونه ښايسته او مجلل کړي، دا دوره د سومري شهزاده ګانو د نفوذ او قدرت ښکارندوی ده او د

سلطنت وسعت او پراختیا د دې باعث شوه چې قوانین وضع کړي ترڅو وتوانېږي چې خپل قدرت او سلطنت ته ادامه ورکړي.

د دې دورې د اور د قدرتمندو پاچاهانو پای په ایلام او د دجلې د رود په لاندې برخه کې د بغاوت او شورش څخه شروع کېږي او د جُبیل او لبنان د سواحلو پورې ادامه پیدا کوي، چې په نتیجه کې لومړني تمدن ته د پای ټکی ږدي او د سومریانو تمدن له منځه ځي، سومریان په خپلو سیمو کې له خپلو دښمنانو سره مخامخ کېږي او په ۲۰۰۰ ق م کې اور د ایلامیانو په لاس کې لوېږي.

د زرګونو کلونو کشمکش او داخلي مبارزو وروسته د تماس لار د ایران هغه معدنونو ته وربرابرېږي چې بین النهرین ورته اړتیا لري، په دغه وخت کې د اور اقتدار او د سومریانو متداومه حکمراني پای ته رسیږي.

په پای کې ویلای شو چې نړۍ مخ پر وړاندې روانه ده او اوس په مخکې داسې یو تمدن لري چې خط، ادبیات، داستان، تعمیرونه او ودانۍ، د عدالت فکر، قانون، اداب او رواج یې په ځان پسې پرېښې او د نورو هڅو لپاره یې زمینه برابره کړې، او د دغه ځای څخه تمدن وغوړیده په داسې حال کې چې سومریان له منځه تللې ؤو.[1]

## بابل

بابل د بین النهرین له ځمکو څخه دی، چې د نوي حکومت درلودونکی و، چې د هغې له جملې څخه یو هم حمورابي و، چې له یو قانون څخه پرته چې د حمورابي د قانون په نوم یادیږي، پرته بل څه ورڅخه پاتې شوي نه دي. هغه مشهوره ماده هم په همدې قانون کې راغلې چې (د سترګې په مقابل کې سترګه). نوموړی لومړنی شخص و، چې بین النهرین یې یو او متحد کړ. مګر د نوموړي حکومت ډېر دوام ونه کړ.

---

[1]. محمد علي طالب زاده، تاریخ مختصر جهان.

حمورابي کېدای شي د میلاد څخه ۱۷۹۲ کاله وړاندې د بابل په ښار یې حکومت کاوه، چې د هغه وخت د سامي د جنوبي ښاري حکومتونو یوه نمونه وه، د ده ځای ناستی(جانشین) د ۱۶۰۰ ق م پورې خپل حکومت ته ادامه ورکړه؛ مګر د حمورابي د ځای ناستي د حکومت په پای ته رسیدو سره بین النهرین یو ځل بیا تجزیه شو.

بابل د خپل قدرت اوج ته په رسېدو سره د سومر او فارس خلیج څخه د آشور پورې چې د شمالي بین النهرین تر ټولو اخري ساحه ده پراختیا وکړه، حمورابي د دجلې په ساحه کې د نېنوا، نمرود او په علیا فرات کې په ماري(Mari) حکمراني کوله او دغه رود یې د حلب پورې په خپل اختیار کې درلود، چې د حکومت حدود یې ۷۰۰ میله اوږدوالی او ۱۰۰ میله عرض درلوده، چې تر دې وخته پورې په دې ساحه کې په دومره مساحت حکومت منځ ته نه و راغلی.

حمورابي پراخ حکومتي سازمان درلود او په عدل سره مشهور وو، د حمورابي قانون د اوږدو کلونو په تېرېدو سره په تېرو ولیکل شو او په عام عبادت ځایونو کې د خلکو په اختیار کې ورکړل شو چې د قانون جوړونې او قضاوت بنسټ یې جوړاوه، دغه قانون ۲۸۲ بندونه لرل چې د تجارت، طلاق، اجورت، مزد، او نورو موضوعاتو په اړه یې بحث کاوه چې ځینې نقطې یې اوس هم په ډېر لږ تغییر سره په خپل قوت سره پاتې دي.

په نوموړي قانون کې هم د نورو پخوانیو تمدنونو په څېر غلامانو شتون درلود، چا به چې په جګړه کې ماته وخوړه نو ماته خوړلی به د کورنیو په شمول د بریالي لوري غلامان جوړېدل، همدارنګه د غلامانو پلورل او پیرودل د بابل په ښار کې عام رواج درلود او مختلف قیمتونه یې درلودل، د ځینو سیمو اوسېدونکو غلامانو په د خپلو خصوصیاتو له له مخې زیات قیمتونه لرل.

د دې ترڅنګ په دغه وخت کې ځینې غلامان د مالي استقلال څخه هم برخمن ول، چې خپله شتمني به یې لرله او په معاملاتو کې د برخه اخیستو حق ورته حاصل و.

## بابلي افکار

د بابل تمدن یوه لویه افسانه ښکاري، د علیافرات په سیمه کې د ماري ماڼۍ چې په ځینې ځایونو کې یې ډېر پلن او عریض دیوالونه درلودل، نوموړي ماڼۍ ۳۰۰ خونې لرلې. همدارنګه بابلیانو د ستورو پېژندنې څخه د طبیعي وضعیت د کشف لپاره استفاده کوله او د هغې له نتایجو څخه به یې د انسانانو د ژوند په منظمولو کې کار اخیسته، له دې جهته یې د ستورو پېژندنه جدي نیولې وه او تر ۱۰۰۰ ق م پورې یې د خسوف پیش بیني ممکنه کړې وه.

بابلیانو د سومریانو په نسبت په ریاضیاتو او مثلثاتو کې پرمختګ کړی و، چې دایره یې په ۳۶۰ درجو او یو ساعت یې په ۶۰ دقیقو ویشلې وه، د ریاضیاتو جدولونه یې ایجاد کړې وه، همدارنګه ستورو پېژندنې په بابلیانو کې ډېر رشد کړی و، څکه دوی غوښتل چې د جشنونو وختونه وپېژني.

د مذهب په برخه کې د بابلیانو افکار د سومریانو سره نزدیوالې لري، د بابل ښار هم د پخوانیو تمدنونو په څیر یو خدای درلود، چې مردوک نومېده خو د دې ترڅنګ یې نور خدایان هم درلودل چې د سومریانو د خدایانو په څیر نومونه یې لرل. حمورابي ویل چې د سومریانو خدایانو د بین النهرین ریاست مردوک ته انتقال کړی او د اشخاصو او اموالو مسؤلیت یې هم ورسپارلی دی، چې په دې توګه نوموړي خدای ته په ډېر عظمت قایل و.[1]

## مصر

د مصر کلمه په حقیقت کې سامي ده او د دوو برخو معنی ورکوي (ویشل په شمال او جنوب) خو د مصر مفهوم بیا په خپل ذات کې د تمدن، کرښې او ځمکې معنی بیانوي.

مصر د افریقا، د سینا شبه جزیرې او اسیا قارې په شمال ختیزه سیمه کې پروت دی او څلور خوا سیمې یې په لاندې ډول دي. د شمال خوا ته یې د مدیترانې دریا، جنوبي خوا ته یې سوډان دی، ختیځې خواته یې سره بحیره ده او لوېدیځ خواته یې د لیبیا هېواد پروت دی.

---

[1]. محمد علي طالب زاده، تاریخ مختصر جهان.

په مصر کې د ځمکو خړوبول د نیل رود له لیارې ترسره کېږي، د اسوان بند چې د نړۍ له لویو بندونو څخه شمېرل کېږي د نیل په رود جوړ شوی دی. د سویز کانال چې په ۱۸۶۹ م کال کې جوړ شو۱۹۰کېلومتره اوږدوالی لري او سره بحیره له مدیترانې سره نښلوي، د اسیا، اروپا او افریقا لویو وچو ترمنځ د اړیکو نښه ده، چې په بحري اړیکو کې د مصر له نورو هېوادو سره ټاکلې دنده ترسره کوي. د مصر اسلامي هېواد د اسرائیلو هېواد له پیدایښت نه په ۱۹۴۸ ز کال کې له دغه هېواد سره څلور ځله جګړې په ۱۹۴۸،۱۹۵۶، ۱۹۶۷ او ۱۹۷۳کلونو کې کړي دي. لنډه دا چې په ۱۹۷۹ ز کال د محمد انور سادات د جمهوري ریاست په دوران کې د ډېوېډکمپ د تړون پر بنسټ دغو دواړو هېوادنو یو بل په رسمیت وپېژندل.

## د مصر تاریخي بهیر

مصر یو د نړۍ د لومړنیو او پخوانیو تمدنونو څخه یو تمدن دی، چې د نیل رود په څنګ کې واقع شوی دی، تاریخ پېژندونکو پخواني مصر مخته د سلسلو دورې باندې وېشلی او د دغو دو دورو ترمنځ یې توپیر منځته راوړی. له سلسلو څخه مخته پېژندل شوې دوره له ۳۱۰۰ق م تر۵۰۰۰ق م پورې رسېږي. په دغه دوره کې د لیک لوست او خط استولو لپاره له انځوریزو (تصویري) حروفونو څخه کار اخیستل کېده. په دغه دوره کې د مصر وګړو د مکتوب ژبه (خط) نه درلوده او له انځورګرو او نورو انځوریزو ډولو څخه به یې ګټه اخیسته. که څه هم له یوې سلسلې څخه تر بلې سلسلې پېړۍ او ګڼ کلونه تېرېده خو بیا هم د مصري وګړي له سلسلو مخته له فعالیت څخه پاتې نه ول. د هغوی ژوند او نوښتونه د دې لامل شول څو راتلونکې ته زمینې برابرې کړي. ښاغلی هوفمن د هغې دورې د صفت په اړه وایي. له سلسلو څخه مخته دوره د راتلونکي مصر د فرهنګ د پیداښت لپاره ټاکونکې دوره وه.

د همکارۍ روحیه په مصر کې دومره اوچته وه چې وګړي په دې وتوانېدل خپلې ټولې هغه اړتیاوې چې لري یې په همغږۍ د یو بل سره حل کړي. په داسې یوه سیمه کې چې جګړه نه وي او د همغږۍ عمل ډېر وي په ډېره اسانۍ سره هغه سیمه د تمدن مرکز جوړېدای شي. دا هم باید هېر نه شي، چې مصر هېواد د نړۍ په کچه لومړنی لوی متمدن هېواد دی.

د مصر د تمدن په پرتله هېڅ یوه تمدن ونه شوای کړای چې د ۳۰۰۰ کالو تاریخ په درلودلو سره د ژبې، هنر، جګړې او ادبیاتو په برخه کې لاسته راوړنې ولري. پرته له دې هېڅ یو تمدن به په مصر کې له نیل رود څخه پرته دومره دوام نه وو پیدا کړی. د مصر طبیعت یو دښتي طبیعت دی. اغراق د مصر د وګړو د ژوند او مرګ منبع وه. د مصر ۵۰۰۰ کلن تاریخ دا بیانوي چې هلته د انسانانو ژوند څومره متمدنه و، چې د یو شمېر بېلګو څخه یې په لاندې ډول یادونه کوو:

د لومړي ځل لپاره ښارونه مصریانو جوړ کړل، مصریان د طبابت له علم سره بلد ول، د مصر وګړو له ریاضیاتو او هندسې څخه استفاده کوله، مصري وګړو د کتابت پاڼې اختراع کړې، د لیک لوست ډولونه یې بشپړ کړل، مصري وګړو لوی جوماتونه او ماڼۍ جوړې کړې. د مړو د مومیايي کولو بنسټ د مصر هېواد ویاړ دی، لمریزه کلیزه یې د ۳۶۵ ورځو په اساس جوړه کړه او همدارنګه د اوبو ساعت یې جوړ کړ.

## د نیل رود د مصر د تمدن وینه

د مصر شتون د نیل رود پر غاړه د دې لامل شو څو دغه ځمکه د تمدن څوکو ته ورسېږي، دا یو حقیقت دی چې د نړۍ لوی تمدونونه تل د لویو رودونو ترڅنګ منځته راغلي، لکه د بین النهرین تمدن د دجلې او فرات رود ترڅنګ، د سند تمدن د سند د رود ترڅنګ، د چین تمدن د هونګ هو رود ترڅنګ او د مصر لرغونی تمدن هم څو زره کاله وړاندې د نیل رود ترڅنګ ځای ونیوه او له ځان څخه یې پیاوړې نښانې پرځای پرېښودې. د نیل رود مصریانو ته ژوند وروبانښه، د مصر تمدن د نیل رود ترڅنګ وده وکړه، د مصریانو په حق کې د پرمختګ نسبت د نیل رود ته ورکول کېږي. دغه لوی رود چې اوږدوالی یې ۴۰۰۰ میله دی، د مصر په تمدن کې پیاوړې دنده سرته رسولې. ټول مصر چې دښته وو او د دغه رود له اوبو څخه د ځمکو د خړوب لپاره ګټه اخیستل کېده. کله چې به د نیل رود طغیان کولو (اوبه به له ټاکلې کچې ډېرې شوې) او د رود شاوخوا سیمې به د اوبو لاندې شوې؛ نو د مصر وګړو دا هنر زده کړی و، چې د اوبو لپاره بندونه جوړ کړي څو د ډېرو زیانونو مخه ونیسي او د مصر وګړو په

دومره اندازه د نیل رود ته احترام درلود، چې کله به یې د بېلابېلو کلېمو په ترخ کې ځینې ستانیه کوله. د مثال په ډول(په تا دې درود وي ای نیله، چې له ځمکې څخه د باندې راوځې او مصر دې ژوندی ساتلی، ای ډوډۍ راوړنکیه د ټولو ښېګڼو پیداکوړنکیه ته یې چې انسانانو او حیواناتو ته ژوند ببښې).

مصري وګړو له نیل سره مقابله کوله او له داسې هنر څخه یې کار اخیسته څو د نیل رود اداره کړي او د نیل رود د ناکرارۍ (طغیان) په مهال پوهېدل. داسې ویالې یې جوړې کړې ترڅو اوبه د هغو له لارې کرهنیزو ځمکو ته لاړې شي. د مصري وګړو لپاره جغرافیه ډېره مهمه وه او نیل د هېواد په یو موټي توب کې هم دنده لرله او تګ راتګ یې اسانه کړی و. لکه پخوا مو چې هم وویل د مصر لویې دښتې دغه هېواد د یرغلګرو له یرغل څخه په امن کې ساتلې وې او د ډېرې مودې لپاره مصري وګړو د امن په لمن کې ژوند وکړ، چې دغه حالت د مصریانو په متمدنیت کې د دې لامل شو څو مصر یو له پرمختللو تمدنونو له ډلې څخه وګڼل شي.

د مصر حکمرانانو خپل ځان په ټولنه کې فرعون بللو او مصري وګړو ته فرعونیانو له سلطان څخه ډېر ارزښت درلوده او د هغو بنده ګي یې کوله.

مصري وګړي له مرګ څخه وروسته ژوند ته په دې ډول عقیده درلوده، چې په دې نړۍ کې ښه کول بیا په بله نړۍ کې اجر لري او د مصر عصري او مختله تللې طبقې راتلونکي ژوند ته ځان چمتو کولو، د مړي ځان به یې مومیایي کړ دا کار یې په دې خاطر کاوه، څو له فساد څخه په امن کې وي.

## د مصر سیاسي اوضاع او لرغونی سلطنت

ډېری هغه خلک چې د مصر په اړه فکر کوي؛ نو سمدلاسه یې د اهرامونو څېره یې په ذهن کې ورګرځي، چې له څو پېړیو راپدېخوا د مصر په دښتو کې ولاړ دي، چې په حقیقت کې دا بناوې د مصر له لرغونتوب څخه ښکارندوېنه هم کوي. د مصر اهرامونه په پخوانی پادشاهي ۲۱۸۱-۲٦۸٦ق م په دوره کې جوړ شوي دي. دا دوره په حقیقت کې د طلایي دورې په نامه یادېږي. د پخواني سلطنت دوره چې په هېواد کې یې یووالی هم پیدا شو؛ خو په مصر کې په

دغه اندازه ماڼۍ نه وې. د روڼ اندو په نظر لرغونی سلطنت د پخواني مصر د لوړوالي ښکارندوینه کوي. د مایکل رایز په وینا د مصر په لرغوني سلطنت کې د انسانانو د ازمایښت لوی تمدن په مصر کې موندل شوی دی. لکه څنګه چې مصر په دوو برخو یعنې سفلي مصر او علیا مصر ویشل شوی و؛ نو په هر یوه مصر کې دوه حکومته پرځای پاتې شول؛ خو دا به هم نه هېروو چې په پخواني مصر کې حکومتونه موجود ول او د نیل رود شاوخوا وګړي په څو برخو ویشل شوي ول، چې هره برخه د یو شمېر مشرانو له خوا کنټرولېده او هرې سیمې له ځانګړو خدایانو څخه په خاص دیني ډول عبادت کولو. د سفلي مصر په ۴۵۰۰ق م کال کې د یوه واحده حکومت درلودونکی شو او په ۴۲۵۰ق م کال یې په علیا مصر یرغل وکړ او هغه یې ونیوه؛ خو دغه حاکمیت د ډېر وخت لپاره دوام ونه کړ او په۴۰۰۰ق م کال کې پای ته ورسېده، چې په ترڅ کې یې دواړه سیمې (شمال او جنوب) له یو بل څخه بېل شول او د بېل بېل حاکمیتونو تر قانون لاندې یې خپلواک ژوند کولو. دغه ډول حالت تر ۳۳۰۰ق م پورې دوام وکړ او د ۷۰۰ کالو په ترڅ کې د مصر د تمدن بنسټ کېښودل شو.

له میلاده۳۳۰۰ کاله وړاندې لومړي مینس د مصر دواړې برخې(شمال او جنوب) سره یوځای کړلې او په هغه وخت کې تینس پلازمېنه و. که څه هم په دغو سیمو کې یووالی رامنځته شو؛ خو بیا هم له دغو سیمو څخه هره یوه یې ځانګړې جغرافیه او هره یوه پادشاه ځانته ځانګړې نښې درلودې او ځانګړي رنګونه یې هم درلودل، چې د پادشاهانو تاج یې ښه مثال دی. د یادونې وړ ده چې د تاریخ په اوږدو کې د جنوب او شمال ترمنځ اختلاف موجود ول او د هر یوه مصري وګړي ځانګړي خاصیتونه درلودل. لکه د علیا مصر اوسېدونکي جګړه مار، سرسخته ول او کاري ظرافت یې درلود او د سفلي مصر اوسېدونکي بیا زیرکه، سرشوخه او ډېر ښاد ول.کله چې د علیا مصر پادشاه لومړی مینس په سفلي مصر هم حاکمه شو، نو ظاهراً یې دوې پادشاهي سره یوځای کړې؛ خو د دغو دوو سیمو د یووالي په خاطر یې لازم کار ونه کړ او غوښتل یې چې په بېلابېلو نومونو په دغه سیمو حکومت وکړي. له ۳۴۰۰ق م څخه تر ۲۳۰۰ق م پورې ټول ټال ٦ کورنیو په مصر حکومت وکړ. په لومړۍ او دویمه دوره کې پلازمېنه تینس وو او په درېیمه او څلورمه دوره کې پلازمېنه بیا ممفس شو او په همدې خاطر

درېیمه، څلورمه او پنځمه دوره د ممفایت کورنۍ په نامه یادېږي. یعنې هغه کورنۍ چې په ممفس کې یې حکومت کولو. د دغو شپږو کورنیو حکومت د لرغوني سلطنت په نامه یادېږي، چې په ۲۳۰۰ق م کال یې ځانګې وشلېدلې او په مصر کې دوه پېړۍ انارشي حاکمه شوه او د یوولسمې کورنۍ په راتګ سره دغه انارشي له منځه لاړه. په لرغوني سلطنت کې حکومتي سیستم Theocracy وو (پادشاه دواړه یعنې مذهبي او سیاسي واک درلود). عقیده دا وه چې د پادشاه قدرت د ده نه بلکې خدايي ځواک دی. په دغه دوره کې د فرعون مقام له پلار څخه زوی ته په میراث پاتې کېدو. د لرغوني سلطنت په دوره کې د فرعاني ځواک د پخوانیو قوانینو په وسیله محدود کېده او داسې فکر کېده چې خدايي الهام یا امر دی.

د لرغوني سلطنت په دوره کې نظامي ځواک ملي نه وو، هره یوه ولایت ځانته عسکري قوا درلوده، خو د اړتیا پر مهال بیا ټول تر یوې قوماندې لاندې ول. د یوولسمې کورنۍ په حاکمېدو سره د دوو پېړیو انارشۍ ته د پای ټکې کېښودل شو او فرعونیانو لرغونی سلطنت له لاسه ورکړ.

## د مصر د لرغونې سلطنت ځانګړتیاوې

لومړی) سیاسي نظام توکراسي ډوله و.

دویم) نظامي ځواک له یوه منظمه یووالي نه برخمن نه و.

درېیم) د سلطنت په مهال پادشاهانو به خپلې لوښې او زامن خپل ځای ناستي ټاکل څو د هېواد له کار سره بلد شي.

د لرغونې دورې سلطنت له ۲۷۰۰ ق م تر ۲۲۰۰ ق م پورې دوام وکړ او نوموړې دوره د مصر له روښانه دورو څخه شمېرل کېږي.

## په مصر کې منځنی سلطنت

کله چې یوولسمې کورنۍ د قدرت واګې په لاس کې ونیولې؛ نو تر دیارلسمې سلسلې پورې یعنې له ۲۰۰۰ق م تر ۱۶۰۰ق م پورې یې دوام وموند او ۴۰۰ کاله یې حکومت وکړ. د دغې دورې د حکومت او سلطنت پلازمېنه د طبس ښار و، چې د یوولسمې کورنۍ تر واک لاندې و.

په دغه دوره کې مصر نوی ژوند پیدا کړ. د دغې کورنۍ په واکمنۍ کې یواځې د معمارۍ په برخه کې مخته تګ ونه شو، خو نور په ټولو برخو کې د پرمختګ شاهدان یو او په همدې خاطر دې دورې ته د مصر طلایي او د پرمختګ دوره وايي.

د یوولسمې او دولسمې کورنۍ په منځته راتلو سره منځنۍ سلطنت پیل او لرغوني سلطنت ته د پای ټکی کېښودل شو او د یوولسمې او دولسمې کورنۍ مشرتوب د امنمهت په غاړه وو. په دغه دوره کې ټولنیز عدالت او دیموکراسي پلې شوه. امنمهت لومړی کار چه وکړ هغه د اداري دستګاه بیارغونه وه چې څه د پاسه ۵۰۰ کاله وخت یې ونیوه او په نوموړې دوره کې د ملوک الطوایفي ریښه له منځه لاړه. کله چې د لرغوني پادشاهۍ دوره ختمه شوه، نو مصر له بېلابېلو بدلونونو سره مخامخ شو، چې د هغې له جملې څخه ویلی شو (د هوا او اوبو وضع هم بدله شوه) داسې ځمکه شوه چې وړاندوینه یې سخته وه. دغه بدلون د دې سبب شو چې مصر د ناخوالو په لمن کې ډوب کړي. د دغې دورې په وخت کې ډېرو کسانو د قدرت واګې په لاس کې ونیولې، چې هره یوه د لږې مودې لپاره حاکمیت وکړ او په حقیقت کې دغه ډول حالت د دې لامل شو څو هغه مصر چې یو وخت د پرمختګ او تمدن پلازمېنه و د ناخوالو په ترخ کې په څو هېوادو وویشل شي. وړاندې له دې دورې د یوه جګپوړي کس ارزښت په دې کې و، چې د هغه مجسمه یعنې انځور به یې په ډېره کې جوړلو او دا عمل د دې ښکارندوی و، چې یوازې پادشاهان او جګپوړي کسان کولی شي له مرګه وروسته بل ژوند ته لاره پیدا کړي؛ خو د منځنۍ دورې پادشاهۍ کې بیا د نورو مصري وګړو هنري څېرې هم جوړې شوې او دا عمل د دې ښکارندوی کوي، چې نور وګړي هم کولی شي وروسته له مرګه مخکښه وه اوسي. ښاغلي رایز زیاتوي(د منځنۍ پادشاهۍ په دوره کې یو شمېر کړیو کوښښ کولو څو خپل ځانته هویت ترلاسه کړي، ټيټو رتبو ماموران، سرتېري او نورې خدمې د اشرافو په نامه ونومول شوې) د منځنۍ دورې په سلطنت کې هنر او فني مهارت نوې بڼه ځانته غوره کړه. د منځنۍ دورې په ختم کې یو شمېر ناکامه پادشاهانو سلطنت ته زیان ورساوه. په همدې توګه د دغه سلطنت د پای شېبې راورسېدې او لنډه دا چې د نوي سلطنت په نامه دوره منځته راغله.

## په مصر کې نوی سلطنت

د منځني سلطنت دورې له ختمېدو وروسته (د يوولسمې او دولسمې دورې حاکميت) له ۲۰۰۰ق م څخه تر ۱۶۰۰ ق م پورې ۴۰۰ کاله وخت په بر کې نيسي.

دقيق دوه پېړۍ وروسته په مصر کې انارشي حاکمه کېږي او د همدې انارشۍ په ترځ کې مصر ته يو نابلونکی قوم د هيکسوس په نامه راځي، دوی په مصر کې له ناخوالو څخه په ګټه اخيستو په مصر حمله وکړه او مصر يې پرته له کومې جګړې ترخپل واک لاندې راوست او څه د پاسه دوه سوه کاله يې په مصر حکومت وکړ. د هيکسوس قوم د مصر ښار لوټ کړ او د مصر عظمت يې له منځه يوړ او د مصر هنري اثار يې وسوځول، پايله دا چې په ۱۵۴۶ق م کال کې د اهموس په نامه د مصر هېواد يوه جګړه مار دغه ډار او وحشت اچونکې کورنۍ له مصر څخه وه ايستله او مصر ته يې يووالی ور وباښه.

د هيکسوس حکومت د مصر وګړي د جګړې له نوي بڼې سره اشنا کړل، څکه چې د هيکسوس کورنۍ د جګړې له وسايلو څخه کار اخيسته او وړاندې له دې چې د هيکسوس کورنۍ مصر ته راشي، مصري وګړي د جګړې کولو وسايل نه پېژندل او د دې کورنۍ ظلم د دې لامل شو، څو مصري وګړي سره يو شي.کله چې د هيکسوس کورنۍ له مصر څخه ووته؛ نو اتلسمې کورنۍ پر مصر باندې حکومت پيل کړ، چې د مصر د امپراطورۍ دوره هم شمېرل کېږي. اهموس د نوې دورې لومړنی پادشاه دی او فرمان يې صادر کړ چې تر دې وروسته دې د نوموړې کړنې ثبت شي. ښاغلي اهموس کوم کارونه چې وکړل په لاندې ډول دي.

لومړی) د هغه څيزونو بيارغاونه چې لمنځه تللي ول.

دويم) د هغه څيزونو جوړول چې بشپړ شوې نه ول.

درېيم) د نويو پروګرامونو پلي کول هغه پروګرامونه چې په تېره دوره کې ورته پاملرنه نه وه شوې.

څلورم) او د هغه څيزونو له منځه وړل چې د هيکسوس دورې پر مهال جوړ شوي ول.

د دغې دورې بله ځانګړنه دا وه چې د لومړي ځل لپاره نظامي شو. (مصر ځانته نظامي بڼه غوره کړه) اداري سيستم (ديوان سالاري) چې يو وخت يې د دولت کار کړنه ښکاره کوله له

منځه تللی و او دغې دورې نوې هڅې پيل کړې څو پخوانيو ناخوالو ته د پای ټکی کېښودل شي (د اهموس او له ده نه وروسته چې کومه پادشاهان راغلي کوښښ يې دا وو څو مصر بيا په خپلو پښو ودرېږي، چې د دې کوښښونو په ترڅ کې مصر بيا د ارامه نفس په اخيستلو پيل وکړ او د نوې دورې پادشاهی په ترڅ کې هېواد د لومړي ځل لپاره نظامي شو. په دغه دوره کې مونږ د دې پرځای چې پادشاه لکه پخوانۍ دورې د سلطنت په مقام کې وينو د جګړه مار اتل پرځای يې وينو. کله چې به يې له هېواد څخه بهر حمله کوله اردو د پادشاهانو لخوا ترکنترول او قوماندې لاندې وه. د جګړې په ډګر کې د اهموس بريالیتوب د فرعون په نظرکې يوه بله مفکوره پيدا کړه. (له دې څخه وروسته فرعون د يوه ملي اتل او نظامي چارو د مشرپه توګه په ټولنه کې نوم و ايست). او له نومونړي څخه يې د جګړې د خدای په نامه يادونه کوله. د نوي سلطنت څخه مخته دوره کې ثابتې اردو شتون نه درلود، که څه هم اړتيا ورته نه ليدل کېده. په دغه دوره کې اردو په دوو لويو برخو وېشل شوې وه. يوه په عليا مصر کې او بله په سفلي مصر کې. نظامي ځواک يې هم په دوو لويو برخو وېشلی و، چې هره يوه ته يې د وياړ په خاطر د يوه خدای نوم ورکړی و، (لکه آمون، رع، پتا، ست) او هغه مصر چې يو وخت يې واحده اداره درلوده په وړو او د رئيسانو تر قوماندې لاندې ډلو وېشل شوی و. په داسې حال کې چې پردې اردو يا سرتېرو هم شتون درلود د نظامي توب ځانګړتيا دا وه چې کسان به د روپيو په وړاندې نظامي اردو ته شامل کېدل. په دغه دوره کې پرمخ تللې نظامي اسلحې هم موجودې وې. د نوې پادشاهی په دوره کې د طبابت علم په برخه کې هم ډېر پرمختګ شوی و او د کالبد پېژندنې په اړه هم لاسته راوړنې موجودې وې. د ايمهوتپ په نامه يوکس چې په حقيقت کې د شاه د وخت مشهوره حرم جوړونکی انجينر و د طب په برخه کې هم ډېر کار کړی و، چې وروسته يې بيا يونانيانو د طب د خدای په نامه عبادت کولو. د نوې پادشاهی په دوره او مخته له هغې نه هېڅ يوې دورې دومره بريالیتوب نه درلوده لکه اتلسمې دورې چې درلود. دغه سلسله د نوې پادشاهی د دورې بنسټ اېښودنکې سلسله وه. چې په ۱۵۷۰ق م کال کې پيل شوه او تراوسه هم د تاريخ د ډېرو روڼ اندو په نظر د هغه وخت د مصر د لوی تمدن په نامه يادېږي او نومونړې دوره د مصر په تاريخ کې نه هېرېدونکې دوره بولي. دغه واقيعت هغه مهال

پېژندل یا څرګندېږي چې یو په بل پسې پادشاهان واک ته ورسېدل او ټولې ناخوالې یې له منځه تللې ولیدې.

څه د پاسه ۱۰۰۰ کالو په موده کې ټولې هغه لاسته راوړنې چې د مصر د احرام له جوړولو سره سمون خوري په دغه دوره کې ښکاره شوې. د اتلسمې دورې په سلسله کې مصر ډېر شتمن شو او د لومړي ځل لپاره عادې کارکونکو یوه مخته تللي ژوندانه ته لاس رسی پیداکړ(هم یې پیسې درلودې او هم یې وخت).

## د مصر د له منځه تللو دوره

که څه هم د پادشاهی نوې دورې څخه د یوې پرمختللې دورې انتظار نه کېده چې پرمختللی مصر دې خپل د پای یا اخرینی ساه ګانې وباسي او دا هم ممکنه نه وه څو دا لوی تمدن دې په یوه وار لمنځه لاړ شي.

د مصر په لمنځه تلو کې درېیو پېښو ډېر اغېز درلود.

لومړی) کله چې مذهبي کسانو د قدرت واګې په لاس کې ونیولې.

دویم) د بهرنیانو یرغلونو.

درېیم) د لوی پادشاه Ahmos مړینه.

په مصر کې مذهبي جګړو دغه هېواد ورو- ورو له ناخوالو سره مخامخ کړ او دغو جګړو مصر- دننه څخه بې وزله کړ او لومړنی ډاډ چې د تمدن یا پرمختګ، نه د یوه بهرني دښمن په توګه بلکې د شاه یا پادشاه له نوم یا ادرس څخه اغېز درلود هغه د آخناتن لخوا د قدرت نیول ول. چې په ۱۳۷۹ق م کې یې د قدرت واګې په لاس کې ونیولې او خلکو هیله درلوده چې دغه کس به وتوانېږي څو اوسنیو ناخوالو ته د پای ټکی کېږدي.

ځکه چې نوموړی د یوې باسابقه کورنی څخه و او د یوه پیاوړي کس په توګه راڅرګند شو. خو د دغو امیدونو برخلاف، نوموړي د مصر خدایان ونه منل او ویل یې چې باید یواځنی خدای ته عبادت وکړي او نوموړی لومړنی کس و چې له یوه ذات څخه یې عبادت پیل کړ. د نوموړي دا اعلان د دې لامل شو څو مصر یو ځل بیا د ناخوالو په لمن کې پرېوځي. نوموړي نه یواځې

مذهبي عقیدو ته بدلون ورکړ؛ بلکې اعلان یې وکړ چې نور طبس د مصر د پلازمېنې په توګه نه پېژني او د هغه پرځای یې بل ځای د تل العمارې په نامه د نوې پلازمېنې په توګه اعلان کړ او دا یې هم وویل چې وروسته له دې اتن د امر عالي ځای دی او ټول مصریان یا مصري وګړي باید اتن ته عبادت وکړي. که څه هم چې شاه اخناتن د معابدو له ټړلو څخه خلک منع نه کړل خو ورو ورو یې د معابدو په تړلو پیل وکړ او د مصري وګړو پخواني اعتقاداتو ته یې د پای ټکی کېښووده او اتن د عبادت د لوړ مقام په توګه اعلان شو. د دغه پادشاه د سلطنت دوره لس کاله وه او کله چې نوموړی ومړ؛ نو مصري وګړو بېرته خپلو پخوانیو عقایدو ته مخه وکړه خو لکه د پخوا په څیر نه. د جادوګرانو او کاهنانو واک پکې کم شوی و او په ناهیلې توګه یې خپل ژوند ته دوام ورکاوه. د اخناتن پادشاه له سلطنت څخه وروسته مصر د جګړې ډګر و. پایله دا چې د لومړي رامسس زوی اول سیتي په ۱۳۰۴ او ۱۳۱۸ ز کال کې وتوانېد څو بهرنیو یرغلګرو ته ماتې ورکړي او مصر بیا ټولنیزې ارامۍ ته راوګرځوي. د لومړي سیتي کړنې د لرغوني مصر د ساتلو لپاره اخرینی پیل و. نوموړي وکړای شول څو د قدرت یو شمېر واګې تر خپل کنټرول لاندې راولي او زمینه یې خپل زوی دویم رامسس ته برابره کړه. څو یو پیاوړی پادشاه شي. دویم رامسس او پلار یې دواړه د مصر له پېژندل شویو جګړه مارانو څخه شمېرل کېدل، چې بهرنیو هېوادو باندې د یرغل پر مهال د مصري ځواکونو قوماندانان ول. دویم رامسس د قدرت واګې ونیولې د مصر وګړو داسې احساس کولو چې نوموړی پادشاه برحقه پادشاه دی، رامسس له هره یوه پاشاه نه د مصر په تاریخ کې ډېرې مجسمې او ماڼۍ د نښان په خاطر جوړې کړې چې دې کار دوه ځانګړتیاوې درلودې.

لومړی) د ده په اړه د خلکو نیک نظر.

دویم) پر الوهیت باندې د نوموړي بشپړه ایمان.

کله چې نوموړی په واک کې و؛ نو د مصر قدرت یې د دې لپاره ډېر کړ څو په نورو هېوادو د یرغل لپاره چمتو واوسي. نوموړي وکړای شول څو شاوخوا (ګاونډي)هېوادونه ونیسي؛ خو کله چې د نیول شویو هېوادو د پادشاهانو له لورانو سره واده کولو نو د مصر هېواد نقش یې د نړۍ په کچه وځلوه.

د دویم رامسس د مړینې پرمهال داسې فکر موجود و، چې مصر بیا هم د نړۍ په کچه پیاوړی تمدن دی او مصري وګړي له ارامه ژوند څخه برخمن ول، ښکلې ماڼۍ جوړې شوې وې. خو د مصر د ویجاړېدو زمینه هغه مهال برابره شوه کله چې د نوموړي زامنو لنډ سلطنتونه درلودل او دا کړنې د دې ښکارندوی ولې، چې دننه سیاسي مبارزو د دولت بنسټ ته ماتې ورکوله- کله چې د نوې پادشاهۍ دوره ختمه شوه سیاسي فساد د دولت په ټولو برخو اغېز وکړ، جګړه ماران د حکومت په دننه کې د یو بل په ورکولو بوخت ول او مذهبیان هم د دې غوښتونکي ول څو قدرت ته ورسېږي؛ خو ونه شول او لرغونی مصر یې سقوط ته چمتو کړ.

د دویم رامسس د مړینې سره سم مصر هېواد بیا د له منځه تلو په حال کې شو چې ژغورنه یې خورا ګرانه و. په همدې مهال مصري جګړه مارانو د بهرنیو یرغلګرو سره سیاسي موخو ته د رسېدو لپاره یو تړون لاسلیک کړ او دا هم یو له هغو لاملونو څخه ګڼل کېږي چې د مصر اصلي څېره بدله شوه.

په ۵۲۵ ق م کال کې مصر- وروسته له ډېرو ستونزو او د هر ډول حاکمیتونو له تېرولو د هخامنشیانو د شاهنشاهۍ یوه برخه شوه. خو وروسته بیا د مصر پادشاهانو د ۲۰۰ کالو لپاره کوښښ وکړ، ترڅو مصر له ایرانیانو څخه بېرته ونیسي خو ونه شو. دا ځکه چې د هخامنشیانو پادشاهانو پر مصر باندې بشپړ حاکمیت درلود او دغه هېواد یې د خپل هېواد یو ایالت جوړ کړ.کله چې مصر د سقوط په حال کې و؛ نو په ۳۳۲ق م کال کې د مقدونیې پادشاه اسکندر مصر ته ورسېد او ایرانیانو مصر پرته له کومې شخړې ورته وسپاره او سکندر هلته په سیمه کې په لاندې کارونو لاس پورې کړ:

لومړی) سیمه ییز حاکمان یې وټاکل.

دویم) د سکندریې ښار یې نوی جوړ کړ.

درېیم) اردو یې د بطلموس تر واک لاندې راوسته او له دې وروسته د مصر- له خاورې څخه ووت.

د سکندر له مړینې وروسته د ده پادشاهي وویشل شوه او بطلموس د مصر اداره په خپل واک کې ونیوله بطلموسیانو څو پېړۍ د ۱۵ دورو لپاره په مصر حکومت وکړ.

د بطلموسيانو دوره په مصر کې د علمي لاسته راوړنو دوره ده؛ خو د عامو وګړو لپاره بیا د حقارت دوره وه. دا په دې خاطر که چېرې اسکندریه د نړۍ د لوی علمي مرکز په توګه د نړۍ د عالمانو او پوهانو پام ځانته اړولی و او یو لوی مرکز شو، خو له بلې خوا بطلموسیانو د فرعون د الهي ځواک څخه په ګټه اخیستنه د مصر اصلي وګړي په استثمار نیولي ول. دا په حقیقت کې هغه کړنې وې چې د خپلې ژبې، فرهنګ، دود او دستور په خپرولو سره یې د مصریانو فرهنګ، سنت او اعتقادات له منځه وړل.

په ٦٩ ق م کال د بطلموسیانو ځواک د له منځه تلو په حال کې و او د رومیانو قدرت او پیاوړتیا پر مخ روانه وه او بطلموسیان له رومیانو سره یوځای شول او دغه یووالی د دې لامل شو څو د بطلموسیانو پرځای د رومیانو ځواک ډېر شي او رومیانو د دې قدرت څخه په ګټې اخیستو مصر ته په زور راغلل او بطلموسیانو د دې لپاره چې مصر څخه رومي سر تېري بېرته ووځي، رومیانو ته یې د بخښنې په ډول طلا ورکړه او په دې وخت کې کلؤ پارتراد دولسم بطلموس لور وه.

کله چې دیارلسم بطلموس یعنې د پاترا ورور د قدرت واګې تر لاسه کوي پاترا ۱۷ کلنه او دیارلسم بطلموس ۱۱ کلن وو او نوموړې د یوه شرط په بدل کې له خپل ورور سره واده وکړ او دواړه د مصر حاکمان شول.

کلؤ پاترا ډېر زر د خپل ورور نوم له اسنادو څخه پاک کړ او په خپل نوم یې سکه ووهله او غوښتل یې خپله د مصر یوازېنۍ حاکمه شي؛ خو ورور یې نوموړې له مصر څخه وشړله او د مهاجرت په مهال له سزار سره یوځای شوه او د خپل نوي متحد سره یې اوردو راټوله کړه او د مصرله نیولو څخه وروسته مصر ته راننوته. په ۴۷ ق م کال پاترا او سزار مصر ته ننوتل او بطلموس ته یې ماتې ورکړه او سزار په دې بریالی شو څو خپل ځان د یوه پیاوړې نظامي په توګه خلکو ته ور وپېژني. د سزار مخالفینو بیا نوموړي څخه په دې خاطر کرکه کېده، چې د پاترا سره اړیکې لري. کلؤپاترا د سزار له خوا د ملکې په توګه وټاکل شوه؛ خو دا خبر پر رومیانو باندې ښه ونه لګېده. پایله دا چې پاترا مړه شوه او د نوموړې له مرګ سره یې پادشاهي د روم په یوه ایالات باندې واوښته او مصر بیا هم یوه بډایه سیمه ده او رومیان د مصر لپاره ډېر

وځورېدل او مصر ورو - ورو د یوه غورځنګ په توګه د روم امپراطورۍ ته واوښت، چې په دې توګه یې باعظمته او بریالی تمدن یې له منځه لاړ.[1]

## پخوانی هند

د هند تمدن د چین له تمدن څخه پخوانی دی، مګر د هند د تاریخ د ځنځیر یوه کړۍ ورکه ده او ځینو ته یې لاس رسی لرو، د ۲۰ زیږدیزې پېړۍ په پیل کې ډېری هندیانو خپل خوراک او غذا د ښکار له لارې پوره کوله، د بوتانو عبادت به یې کولو چې دغه بوتانو مؤنث او مذکر درلوده. هندیان د زرګونو کلونو راهیسې ټولنیز ژوند لري.

د هند په جنوبي برخه کې یوه ډله خلک اوسېدل چې دراویدیان نومیدل، نوموړي ډله خلک د هغه کسانو څخه پاتې شوي چې له میلاد څخه ۵۰۰۰ کاله وړاندې په دغه سیمه کې اوسېدل، چې شاید همدغه اصلي هندیان وي، چې له پیل څخه په دغه سیمه کې اوسېدل، یو شمېر خلک د شمال لویدیځ د غرونو له لارې هم دغې سیمې(هند) ته راغلي دي، چې کېدای شي د ایندوس د جلګې په تمدن کې هم خپل اغېز لري.

د هند د تمدن په اړه دوه روایتونه شتون لري ځینې وایي، چې د هند تمدن په خپله د دې سیمو د خلکو د هڅو په نتیجه کې منځته راغلی، خو ځینې نور بیا وایي چې هند ته تمدن، د نژدې ختیځ څخه انتقال شوی دی.

د یوې نظریې پر بنسټ چې د پخوانیو پېژندونکو له خوا ارائیه شوی، د هند تمدن ۲۵۰۰ ق م رامنځته شوی، د دوی په وینا ځکه چې په دغه سیمه کې د ۴۰ - ۵۰ پورې ښارونو شتون درلود چې د هغې ډلې څخه د دوو ورانو شویو ښارونو چې موهن جودارو (Mohenio daro) او هارراپا (Harapa) نومونه اخلي چې د ایندوس سره نژدې د ۴۰۰ میلو په فاصله کشف شوي دي، چې دواړه ښارونه نسبتاً پراخه دي چې د ۳۰۰۰۰ پورې نفوس یې لرلو.

د هندیانو د وخت د کشفیاتو څخه یو هم د خښتو پخول دي چې د سیلابونو د مخنیوي لپاره ترې د بندونو په جوړولو کې استفاده کېدله او زراعت یې پنبه و.

---

[1]. انټرنټ.

د کانال په خير د اوبو د تللو لارې په لوتهال (Lothal) کې شتون درلود چې د يو ميل په اوږدوالي درياب ته وصل شوې وې او د دې تمدن د خارجي تجارت او د پنبې محصولات د لومړني اثر په توګه تر سترګو کېږي.

په دې توګه دغه خارجي تجارت ښارونه د شتمن کېدو لور ته بيايي، هر ښار يوه قلعه لرله، چې په چارچاپېره يې د سطرنج په شکل د اوسېدو سيمې جوړې شوې وې، فاصله اوبه يې په سر ترلي (سربسته) ډول درياب ته ويستلې وې، عمومي ځايونه کې د اوبو ذخيرو شتون درلود، چې يوازې د څکلو لپاره ترې استفاده نه کېدله، بلکې د مذهبي ادابو، مراسمو او د استحمام لپاره ترې هم استفاده کېدله.

هاراپا پرمختللې تمدن درلوده، چې زرګونه مهرونه يې لرل چې په صادراتي مالونو به يې لګول. د خط بڼه يې تقريباً تصويري معلومېږي او همدارنګه د ژبې لهجه يې راويديانو ته ورته وه.

د لوتهال د اوبو لار (کانال) د دې ښکارندوی دی، چې لوی کشتېو به په کې تګ راتګ کاوه او د مهر په واسطه بسته شوي مالونه به يې د فارس خليج تر لرو نقطو پورې رسول.

د هاراپا په تمدن کې تجارت ډېره پراختيا کړې وه، چې دغه صنعت او افکارو د ايندوس څخه د سند او پنجاب او د غربي ګجرات تر سواحلو پورې رواج درلوده.

د يادونې وړ ده چې پورته ذکر شوي مهم کارونه د څو پېړيو په طی کولو سره سرته رسېدلي، که څه هم دغه واقعيتونه بيانول د لرغون پېژندونکو لخوا په ډېرې سختۍ سره صورت نيولی دی.[1]

## اريايي هند

د ايندوس تمدن د ۲۰۰۰ ق م څخه دوه پېړۍ وروسته د نامعلومو عواملو په اساس پای ته ورسېده. په دغه دوره کې د دغه سيمې اوسېدونکو د ګڼ شمېر خدايانو عبادت کاوه چې دوه

---
[1]. محمد علي طالب زاده، تاريخ مختصر جهان.

مهم يې خدايان يې د وارونا چې د اسمانونو خداى يې باله او بل يې عادلي څخه عبارت و او همدارنګه د جګړه خداى يې د ايندار باله.

په ۱۷۵۰ ق م کې د هاراپا تمدن پاى ته ورسېده، چې د دې پيښې ترشا د هغه اروپايانو لاسونه بريښيدل چې په ۲۰۰۰ ق م کې د هندوکش له لارې دې سيمې ته مهاجر شوي ول.

اريايان هم د ګنګ (Ganges) سيند ته ورسېدل، لرغون پيژندونکي په دې عقيده دي، دا دريمه ډله خلک دي چې دغې سيمې ته راغلي او په خپل راتګ سره يې په دغه سيمه کې حادثات رامنځ ته کړي دي.

هغه څه چې دغې زمانه کې د هند په اړه درک شوي د ايندوس د غربي سواحلو څخه د ګنګ تر سيمو پورې مربوطېږي. په دغه پراخه سيمه کې اريايان د بوميانو سره څنګ په څنګ ژوند کاوه او يوه واحده ټولنه يې تشکېلوله.

د اريايانو يوه خاص ډله چې کاست نومېږي په تاريخ کې د ځانګړې اهميت درلودونکي دي، د هغوى د مذهب او ژبې په منځ کې چې سانسګريټ نومېږي او د هندي ژبې بنسټ دی چې اوس هم په همدغه ژبه خبرې کوي. د هند په وروستي تاريخ کې د کاست ډلې د مهمو يادګارونو څخه ګڼل کېږي، کاست د خلکو هغه ډلې ته ويل کېده چې يو کسب به يې ځانته انتخاباوه.

په کاست کې غړيتوب ميراثي و، دوى به يوازې په خپل منځو کې واده کاوه، په دندو او مذهبي چارو کې يو له بل سره شريک ول حتى کومه غذا به چې کاستيانو پخوله يوازې خپلو کاستيانو ته به يې ورکوله.

بله طبقه چې په ډېرې چټکۍ سره منځ ته راغله، هغه طبقه ده چې د پخوانيو هغو سيمو څخه دي چې اريايانو د ځان څخه بېل ګڼل، بېله ډله او بېل ځاى يې درلوده دغه څلورمه ډله خلک اريايان نه ول، چې د غبي ډلې په نوم مشهور و، دغې ډلې نه شواى کولاى چې د اريايانو په مذهبي مراسمو کې ګډون وکړي، دغه ډله چې د بومي رسم او ادابو په ساتنې سره د نجسې ډلې په نوم يادېدله، نن ورځ هم په هند کې کثافت دانۍ د پاکولو او دې ته ورته کارونه د دوى په واسطه سرته رسېږي. په ټولنه کې ورته په کمه او سپکه سترګه کتل کېږي،

تر دې چې که چېرې د نجس د ډلې پر لاره تېرېدونکي شخص سیورې به په پر یوه غذا باندې ولګېده؛ نو نومورې غذا به یې چټله ګڼله.

د اریایانو لومړنۍ ټولنه قبیلوي او د حکومت ډول یې پادشاهي و، چې ۶۰۰ ق م پورې یې د ۱۶ دورو په حدودو کې د ګنګ په سیمه حکومت وکړ په دې توګه د اریایانو فرهنګ رسم او رواج هلته رامنځ ته شو.[1]

## پخوانی چین

د ۲۵۰۰ کلونو په شاوخوا کې چینایي ملت د چینې ژبې سره په دغه سیمه کې شتون درلوده، چینایانو دوامداره تمدن درلوده چې د بهرنیانو لخوا د کوم مزاحمت سره مخامخ شوی نه دی. مګر کولای شو چې د مصر له تمدن سره چې په هغه وخت کې یې شتون درلوده مقایسه کړو، د چین حکومت د ډېرو اوږدو کلونو لپاره عادي حکومت درلوده سره د دې چې مشکلات یې هم لرل؛ خو ډېرې دورې یې تېرې کړې، اما د چېن د تاریخ لپاره یې سیاسي او فرهنګي ځانګړنه رامنځ ته کړې، د چېن د خلکو فرهنګ تل د چېن د حکومت کار اسانه کړی، په ډېرو لرو پخوانیو دورو کې چېن په دې توانیدلی و، چې د حکومت لپاره یو جوړښت او بنسټ بنیاد ګذاري کړي، چې د وخت له شرایطو سره برابر وي او د اوږدې مودې لپاره پرخپل ځای پاتې وي.

په شمالي چېن کې کوم ځایونه چې د ژېړې بحیرې د طغیانې سطحې څخه پورته پرتې دي، داسې اثار پاتې شوي چې د میلاد څخه د ۵۰۰۰ کاله وړاندې وخت د زراعت د جریان نښې نښانې ښیي.

په دغه سیمه کې زراعت شروع شو، چې د شمال له لورې منچوري او هم د جنوبي سیمو پورې مخکې ولاړ چې په تدریج سره د تمدن نورو سیمو ته هم وغځېده په دغه وخت کې

---

[1] محمد علي طالب زاده، تاریخ مختصر جهان. مخ

تیرې کندل کېدلې، د لرګیو څخه استفاده کېدله، کرم به یې کرلو او په مراسمو کې به یې د زینت لپاره ترې کار اخیسته.

که څه هم د پخواني چین د زراعت په اړه مستند اسناد په لاس کې نشته اما دغه جمله (چې هر چېرته چې د اسمان لاندې ځمکه ده د حکمران پورې اړه لري) د دې ثبوت دی چې د ځمکې مالکیت عمومي و او د ټولنې پورې یې اړه لرله. د دې دورې د تمدن او فرهنګ په رشد او انکشاف کې زراعت پوره ونډه لرله، چې تر ډېرې مودې پورې یوازې په شمالي سیمو پورې منحصره وه، د دې تمدن لومړني شاهان د شانګ په نوم سره پېژندل شوي.

څومره معلومات چې د مصر په اړه لرو، دومره معلومات بیا د چین په اړه شتون نه لري، خو ویل کېږي چې ۱۷۰۰ ق م په شاوخوا کې د ځیرګ په نوم قبیلې چې د جنګي وسایلو سره یې اشنایي لرله په خپلو ګاونډیانو حمله وکړه او د زیړې بحیرې په اطرافو کې یې تقریباً د ۴۰۰۰۰ میله مربع په حدودو کې سیمې فتحه کړې.

## په چین کې د شانګ دوره

د شانګ پادشاهان د یو ځانګړي قدرت څخه برخوردار و، څکه دوی ته مرګ او ژوند ځانګړی شکل درلود، دوی به د خپلو قربانیو سره په ژورو ګورونو کې خاورو ته سپارل کېدل.

د شانګ پادشاهان ډېر جنګیالي ول، چې د اشرافو پر ډله به یې چې افسانوي القاب یې لرل حکومت کاوه، دوی حکومتي سازمان درلوده چې د حکومت د اداره کولو او د هېواد د ابادولو لپاره یې پراخه توان او قدرت درلوده، همدارنګه د ځیرګ دربار منشیان، د اسنادو او مدارکو کار پېژندونکي لرل چې یو با فرهنګه سلطنت یې درلوده چې په هغه وخت کې په بین النهرین کې تشکیل شوی و.

دوی به د حیواناتو د ورانه له هډوکو څخه خاص علایم او نښې جوړولې او د اسنادو په توګه به یې ساتل، چې د هغه وخت د خط بڼه یې ګڼلې شو. تقریباً د ۵۰۰۰ په شاوخوا کې نوموړي

علایم رسم شوي، د دې لیک لوستونکي د شیه (Shih) په نوم مشهور ول، چې دغه یوه لوستې طبقه وه.

## د چو دوران

د شانګ سلسله په ۱۰۲۷ ق م کې د بل قوم په واسطه چې د غرب څخه راغلې وه پای وموند، د چو د حکومت په دوران کې د حکومت سازمان محفوظ او اصلاح شو.

د تدفین، تشریفاتو، صنعت او هنرونو کې پراخه تحولات رامنځ ته شول، د چین قدرت د ګڼ شمیر ولایتونو څخه جوړ شوی و، چې هر ولایت د خپل سهم په اندازه په قدرت کې ونډه لرله او مشران یې هغه امرایي ول، چې د ضرورت په وخت کې یې کولای شول چې د سلطنت مقام ته هم ارتقاء وکړي.

د ۷۰۰ ق م په شاوخوا کې یوه قبیله چې د چو په خاندان حمله وکړه او هغه یې د خپل ځای څخه د ختیځ په لوري هونان ته وزغلول. دغه نوې سلسله هم په ۲۵٦ ق م کې له منځه لاړه او د ۴۰۳- ۲۲۱ ق م کې چې د جګړه د دوران په نوم شهرت لري، مهمې منازعې او جګړې وشولې چې په تاریخي لحاظ د یادولو وړ دی، بالاخره قوي ډله په ضعیفه ډلې غالبه شوه او په دې توګه د چین ځمکه د یو واحد حکومت لاندې راغله چې (چه این) (Ch'in) په نوم یو خاندان په واسطه چې د چین نوم هم د همدې نوم څخه اخستل شوی دغه سیمه اداره کېده.

یوه خبره د یادونې وړ ده چې د دې تاریخ څخه وروسته ۱۵ پیړۍ چین په ابهام کې پاتې شو او د تاریخي شواهدو او اثارو په نظر کې نیولو سره د جګړه او قدرت لپاره د وینو تویولو پرته بل څه یادګار نه دې پاتې شوی.

د ۵۰۰ ق م په شاوخوا کې ملوک الوایفي نظامونه د ژیړې بحیرې په شاوخوا کې رامنځ ته شوي وه ، په پای کې مختصره یادونه کوو چې چین د جګړې له دورې څخه وروسته د صنعت، زراعت، حکومتدارۍ او نورو ساحو کې پام وړ رشد او انکشاف وکړ.[1]

---

[1]. محمد علي طالب زاده، تاریخ مختصر جهان.

# د تمدنونو متقابلې اغېزې

له میلاد څخه زرګونه کلونه وړاندې په نږدې ختیځ او لویدیځه مدیترانه کې د تمدن ډېر ډولونه رامنځ ته شوي، ډول ډول تمدنونه لاړه او راغلل، لویو قدرتونو په خپلو منځو کې رسمي اړیکې پیدا کړې، هنرمندان او تجاران د خپلو ګټو پسې یو او بل خوا تګ راتګ کاوه، عقائد، هنري سبکونه او صنعتي فنون د وحدت په لور روان و او په یو ډول بدلیدل. څکه چې دغه ذکر شوي ارزښتونه به خلکو د ځانونو سره نورو ځایونو ته لېږدول. د قدرت هڅې یې جوړې کړې، چې تر حاضر وخته پورې په نړۍ سلطه او برتري لري، مهاجرتونو، تګ راتګ او د انساني قدرت ځای پرځای کېدل او هغه څه چې زمونږ تر مخ راځي په دغه سیمه کې صورت ونیوه. د میلاد څخه د ۱۰۰۰ کله وړاندې په هند، ایران، بین النهرین، ترکیه...او مصر هغه ځایونه دي چې اوسېدونکو یې په اروپایي او هندي ژبه خبرې کولې، یوه نظریه وایي چې د میلاد څخه ۲۰۰۰ کاله وړاندې نوموړي خلک د جنوبي روسیې څخه راغلي ول.

په مرکزي اسیا کې د آب او هوا تغییر د دې باعث شو چې خلک د ختیځ څخه لویدیځ لورې ته لاړ شي، په دې توګه هند او اروپایان مهاجرت ته اړ شول، د هند او اروپایانو د ډلو حرکت د بالکان په لوري او د هغه ځایه د یونان او تریس (Thrace) په طرف او د هغه ځایه د اناتولي په طرف دوام پیدا کړ.

د دوی بله ډله د قفقاز له لارې د ترکستان پورې حرکت وکړ او له هغه ځایه بلخ، ایران او هند ته لاړل او په عین وخت کې د هند او اروپایانو څخه پرته د جنوب ختیځې اروپا او د لویدیځ نورې سیمې یې ونیولې، المان او یا د فرانسې شمال او حتی د انګلیس تر جزایرو لاړل. چې دوی اوس دلته پرخپل ځای پرېږدو.

د میلاد څخه ۲۰۰۰ کاله وړاندې د رودونو څنډې او جلګې د تمدنونو لپاره ډېر مساعدې وې نو ځکه زیاتره تمدنونه هم په همدغه سیمو کې رامنځ ته شوي، میخي لیک چې د بین النهرین په ټولو سیمو کې رواج درلود چې دوه او یا څو ژبې په دغه لیک لیکا کېدلې، اما د

مصر لرغوني اثار کوم چې په لاس لیکل شوي او نن ورځ تر سترګو کېږي په هیروګلیف لیک لیکل شوي، چې دغه ډول لیک به د سیاسي لیکونو لپاره استعمالیده. مګر ۱۰۰۰ کاله وروسته په نږدې ختیځ کې سواد لرونکو خلکو په مختلفو ژبو لیکل کول تر دې چې د یونان خلک هم د پورتني حالت څخه بېل نه ول.

د میلا څخه ۱۵۰۰ کاله وړاندې په کرت کې داسې لیک منځ ته راغی، چې مونږ نوې نړۍ ته راهنمایي کوي او هغه ډلې معرفي کوي چې د لیک ډول یې یوناني دی، سامي ژبې الفباء درلودل، چې له فنیقیانو څخه پیروي کوله. لومړنی لیک چې د لویدیځ په ادبیاتو کې منځ ته راغلی په ۸۰۰ ق م کې ترې استفاده شوې ده.

همدارنګه د ټولو تمدنونو ترمنځ تجارت په یو ډول نه یو ډول شتون درلود چې د تمدن د پرمختګ لپاره اړین دی.[۱]

کولای چې په لنډ ډول ووایو چې په اولو وختونو کې د لاندې عوامل پر اساس د تمدنونو ترمنځ اړیکې ټینګې شوي:

- تجارت.
- د صنعت انتقال.
- د پراختیا غوښتنې هڅې.
- آب او هوا (د ژوند کولو لپاره وړ ځای او غوره شرایط لټول)

کولی شو پورته عوامل د نمونې او مثالونو په توګه په لاندې تمدنونو کې مطالعه کړو.

## جګړه او صنعت

بله موضوع چې د تمدن د پراختیا او انکشاف په بحث کې مخې ته راځي هغه د صنعت انتقال دی، چې تر شا خپل عوامل لري، همدارنګه بله موضوع چې د تمدن د پراختیا لپاره

[۱]. محمد علي طالب زاده، تاریخ مختصر جهان.

مطرح کېږي او زیاتره ورڅخه استفاده کېدله ، وسعت طلبي ده چې د جګړه په بڼه پلې کېدله لکه په مخکې تمدنونو کې مو چې ترې یادونه وکړه.

## د اژه تمدن

د میلاد څخه وړاندې په دویمه زریزه کې نږدې ختیځ او ختیځې مدیترانه کې د ټولنو اړیکو او مقابلو د پاملرنې وړ پراختیا وکړه او د تمدن مرکزونه د خاص اهمیت څخه برخمن ول، له دې ډلې څخه د کرت یادونه کولی شو کوم چې د یونان د لویو جزیرو څخه ګڼل کېږي او د بشر په لومړیو کې یعنې د میلاد څخه زرګونه کلونه وړاندې د نوي عصر حجر چې د میلاد څخه ۱۰۰۰۰ کلونه وړاندې وخت ګڼل کېږي، په دغه سیمه کې پرمختللو خلکو ژوند کاوه، کرت او اناتولي په خپلو منځونو کې اړیکې لرلې چې دقیق اثار یې شتون نه لري، کلي او ښارونه چې د ۲۵۰۰ ق م پورې اړه لري، د پښو خښتو تېږو څخه جوړ شوي دي، د کرت اوسېدونکي په فلز کارۍ مشغول ول.د کرت خلکو د یونان په فرهنګ او تمدن کې پوره برخه درلوده چې خپل اجناس به یې د نورو ټولنو سره تبادله کول. د ۲۰۰۰ ق م په حدودو کې د لویو ماڼیو په جوړولو شروع وکړه، چې د مینو تمدن د مهمو اثارو څخه ګڼل کېږي چې تر ټولو مهم اثر یې په ۱۹۰۰ ق م په کنوسوس کې جوړ شول، چې د هغه وخت د جزایرو په منځ کې تر ټولو زاړه راښکونکي او جالب اثار دي.[۱]

## د مینو تمدن

مینو د هغه تمدن نوم دی چې د کرت په سرزمین یې په پخوانیو وختونو کې شتون درلود چې یو خاص فرهنګ یې د اژه په سیمه کې رامنځ ته کړی و، د مینو نوم د مینوس پاچا د نوم څخه اخستل شوی کوم چې یونانیان د هغه په اړه عقیده لري چې یو قدرتمند پاچا و چې په کنوسوس کې یې ژوند کاوه او د دوی په عقیده د خدایانو سره یې نږدي عقیده لرله، د مینو

---

۱. محمد علي طالب زاده، تاریخ مختصر جهان.

تمدن ۶۰۰ کاله دوام کړی چې یوازې عمومي خطوط ترې پاتې شوي دي، د مینو تمدن کنوسوس نومېده، درې یا څلور پېړۍ د مینو، مصر او یونان ترمنځ تجارت شتون درلوده.

د مینو تمدن قدرت په ۱۶۰۰ ق م په حدودو کې اوج ته ورسېده، چې له دې تقریباً یو قرن شاوخوا وروسته نوموړی تمدن له منځه لاړه، د ځینو روایاتو له مخې چې د منځه تګ علت یې زلزله ده. د دوی دین بت پرستي وه، د لیک ډول یې تصویري و، چې د مصر څخه تقلید په کې تر سترګو کېږي.[۱]

## فنیقیان

لومړني مهم تجاران فنیقیان دي، چې د ترکیې په ځمکه اوسېدل، کوچې ډېر اوږد او عجیبه تاریخ لري، ویل کېږي چې د میلاد څخه ۲۷۰۰ کاله وړاندې د صور نه راغلي ول چې اوسني لبنان په څنډو کې اوسېدل او د میلاد څخه وړاندې په دویمه زریزه کې مصریانو د دوی سره راکړه ورکړه درلوده، دا چې دوی د زراعت لپاره وړ ځمکې نه لرلې او هم یې د وحدت او یووالي په ایجاد کې ستونزې درلودې، نو په همدې دلیل یې د داخل پرځای بهر ته توجه وکړه.

مصریانو ډېر ښه او مشهور رنګونه جوړول، خط یې د اوسني لویدیځ پایه او بنسټ ګڼل کېږي. د دوی تجارت په تدریج سره استعمار منځ ته راوړ چې په وروستیو وختونو کې یې په مدیترانه کې مختلفې مستعمره سیمې درلودې، چې د میلاد څخه ۷۰۰کاله وړاندې مستعمرې د لاسه ووتلې.

## هیتي قوم

د میلاد څخه وړاندې د دویمې زریزې په نیمایي کې د هیتي په نوم یوه ډله د کوچنۍ اسیا (اناتولي) د تمدن د اوج په وخت کې راغلل، دې قوم د اوږدې مودې راهیسې مجهز سامان الات درلودل، تر دې چې د یو څه وخت لپاره یې د اسیا اوسپنه په خپل انحصار کې راوستله، دوی د اوسپنې څخه د جګړه ییزو وسایلو په جوړولو کې مهارت درلوده چې همدغه مهارت د

---

[۱]. محمد علي طالب زاده، تاریخ مختصر جهان.

دې باعث شو چې د مصر او بین النهرین په حدودو کې په لوي قدرت بدل شو او د مدیترانې سواحل یې د فارس تر خلیج پورې د مصر په ګډون ټولې حاصلخیزې ځمکې تر خپلې ولکې لاندې راوستلې، خو د دوی د اشتباه او غلطیو په نتیجه کې دغه نظامونه په ۱۲۰۰ ق م کې له منځه لاړل چې په دې توګه یې د اوسپنې انحصار هم پای وموند، چې دغه سیمې بیا وروسته د فلسطین په نوم یادې شوې.

## عبرانیان

یوه ډله خلک د عبرانیانو په نوم د مصر څخه فلسطین ته راغلل چې وروسته بیا د یهودو په نوم مشهور شول، چې د راتګ دقیقه نیټه یې معلومه نه ده، دغه ډله تل لړه او ناپېژندلې شوې وه، چې وروسته یې بیا په تاریخ کې زیات تغییرات او تحولات رامنځ ته کړي دي، چې ګڼ شمېر پیغمبران هم د همدغه قوم څخه په پیغمبرۍ مبعوث شوي دي لکه یعقوب علیه السلام ، ابراهیم علیه السلام او اسحاق علیه السلام او داسې نور....د دغې ډله ریښه د سامي قوم څخه ده چې د عربستان څخه سرچینه اخلي.

دغه قوم نن ورځ په فلسطین کې په عامو خلکو په ډېره سپین سترګۍ وحشیانه ظلمونه کوي او د فلسطینیانو څخه یې حقه حقوق سلب کړي دي، چې تفصیلي ډول به یې ان شاء الله په راتلونکو درسونو کې ولولو.

## یونان

یونان د اژه په لویدیځ کې موقعیت لري، د یونان ښار تل په ترقۍ کې و، چې دغه ښارونه په پخوانیو وختونو کې په غالب ګمان د شاهانو له خوا اداره کېده، چې وروسته یې ورته د مدیرانو لقب ورکړ، د تاریخي شواهدو پر بنسټ ۷ ق م پېړۍ کې یونان د اشرافي حکومت لخوا اداره کېده چې په یوناني ژبه کې یې ارستوکرات معنی لرله، دغه ارستوکراتان د ځمکې او شتمنۍ په درلودلو سره په دې وتوانېدل، چې پرمختللي نظامي او جګړه ییز وسایل وپیري، چې دغه وضعیت نوموړي اشراف په نظامي حکمرانانو تبدیل کړل.

په ۶۰۰ ق م کې د یونان ساده ټولنې غوړېدل شروع شوه، د دوی په منځ کې نور بهرني خلک چې د حرفې، صنعت او تجارت لرونکي ول، لیدل کېدل چې د سیمه ییزو خلکو سره یې مساوي حقوق لرل. په دغه وخت کې د فلزاتو څخه پیسو په بڼه کار اخیستل کېده او د پیسو په څېر له اهمیت یې درلوده.

په دې توګه خلکو تجارت، صنعت او زراعت ته مخه کړه، د پورتني وضعیت په اساس په اوومه ق م پېړۍ کې د پیاده نظامیانو په نوم یوې جګړه ییزې ډلې ظهور وکړ چې منظمه وسله، تجهیزات او سپرې یې درلودې، چې د نظم او انضباط په زیاتوالي او تقویه کې یې پوره ونډه لرله. په دې ډول په تدریج سره د پخوانیو اشرافو څخه قدرت کم کړای شو، بالأخره اشراف د قدرت د صحنې څخه وویستل شوه. په نتیجه کې لاره سیاست پوهو خلکو لپاره خلاصه شوه چې د قدرت صحنې ته داخل شي چې دا یو نوي ابداع وه چې د یونانیانو په واسطه یې صورت ونیوه.

## آتن

آتن له میلاد څخه پنځه پېړۍ وړاندې بیا ورغول شو، چې یوه غني سیمه ګڼل کېږي دغه ښار د ۴۸۰ م څخه په یو تجارتي ښار بدل شو. دلته تصمیمونه د هغه شورا له خوا نیول کېدل چې د انتخاباتو له لارې به ټاکل کېدل. ټول خلک په انتخاباتو کې په ګډون کولو مکلف ول، دلته فرهنګ او هنر وده وکړه، چې مختلف علماء او فیلسوفان په دې سیمه کې راښکاره شوه لکه سقراط، افلاطون، ارسطو او نور .. چې مختلف کتابونه یې ولیکل.

بل ګام چې په دغه زمانه (پنځمه میلادي پېړۍ) کې واخستل شو هغه د تاریخ په علمي توګه رامنځ ته کول ول او کومه کلمه چې په یوناني ژبه کې د تاریخ لپاره استعمالېده د تحقیق په معنی وه. هیرودت چې د کوچنۍ اسیا څخه راغلی و او په یونان کې اوسېده د تاریخ د پلار په نوم یادېده، نوموړی لومړنی شخص و، چې د ایران او یونان ترمنځ په جګړونو کې یې تحقیق

وکړ او په دې اړه یې یو کتاب چې د کتاب د نوم معنی یې تحقیقات کېدای شي ولیکه، چې د هغه وخت یو حقیقي تاریخ دی.[۱]

## تر اولسمې پیړۍ پورې د اروپا وضعیت ته لنډه کتنه

کله چې د نړۍ سیاسي تاریخ له پیل څخه خبرې کوو، باید وویل شي چې د لومړیو انساني تمدنونه او لومړنیو سیاسي تشکېلاتو لومړنۍ سرچینه ختیځه نړۍ ده او ټول سیاسي او تمدني عناصر د ختیځې نړۍ څخه سرچینه اخلي.

لکه څرنګه چې په تیرو درسونو کې مو یادونه وکړه، لومړني دولتونه د ځمکې پرمخ په بین النهرین او مصر کې جوړ شوي، چې د لومړي ځل لپاره ښاري دولتونه په بین النهرین کې د سومر په سیمه کې رامنځ ته شو، چې د مذهب څخه یې سرچینه اخیستې وه.

مګر په هند او چین کې سیاسي تشکېلات د بین النهرین او مصر- په نسبت ډېر وروسته منځ ته راغلي دي، چې په تعقیب یې په نورو ځایونو او ختیځ کې سلطنتونه رامنځ ته شول چې لویي امپراتورۍ یې جوړې کړې چې د هغې له جملې څخه یو هم دماد او فارس امپراطوري ګانې وې.

کله چې د لویدیځ تاریخ ته نظر وکړو تر ټولو لومړنی دولت په کرت کې رامنځ ته شوی چې مرکز یې د کنسوس ښار او پاچاهان به یې مینئوس نومېده. د کرت د خلکو نژاد د مدیترانه یې او یا ایبري څخه و او د دوی تاریخ د مصر او بین النهرین سره نزدې دی.له میلاد څخه ۲۵۰۰-۲۰۰۰ کلونه وړاندې په حدودو کې د اریایانو په نوم یو قوم رابښکاره شو، چې دغه قومونه د بېلابېلو ډله ییزو ګروپونو په شکل اروپا ته وارد شول او د څړ ځایونو په لټه کې شول چې په دې ترڅ کې د اکېن، دورین، ابوني او لیوني په نومونو د یونان خاورې ته ننوتل، چې همدغه لومړني دوه ذکر شوي قومونه وتوانېدل چې د کرت تمدن له منځه یوسي او پرځای یې یوناني

او یا هلني تمدن رامنځ ته کړ، د یونان جغرافیوي وضعیت داسې و، چې په نتیجه کې یو شمېر ښاري دولتونه رامنځته شول، چې تر ټولو مهم ښاري دولتونه یې اتن او سپارت ول.

په حقیقت کې د یونان تمدن په اتن کې خپل اوج ته ورسېده او په دغه سیمه کې یې لومړنی دولت د دیموکراسۍ پر بنسټ رامنځ ته کړ، چې ځینو اشخاصو لکه سولون، کلیستن او پرېکلیس د دغه دولت په پرمختګ او لوړوالي کې ښکاره او بارز رول ولوباوه. همدارنګه په اتن کې مذهب، فلسفه، ادبیات، تیاتر او هنر خپل د اوج او تکامل تر حده ورسېده، خصوصاً کله چې یونانیانو په فارسیانو غلبه حاصله کړه، غنایم او مستعمرات یې ترلاسه کړل نو دغه چاره نوره هم ممکنه شوه. یوناني تمدن چې د کریتي تمدن په له منځه تللو او ویجاړولو پیل شوی د کریتي تمدن د لور سره مشابهت لري او د کرت تمدند یوناني تمدن د مور حیثیت لري.

کله چې یونانیان د فارس له لوري د متوجه خطر څخه مطمین شول؛ نو په خپل منځ کې په جګړو بوخت شول چې دغه جګړې د پلوپونیز په نوم مشهورې دي. دغې جګړو یونان د تزلزل سره مخامخ کړ او فلیپ مقدوني ته یې دا زمینه برابره کړه چې یونان د خپل تصرف لاندې راولي. له فلیپ څخه وروسته د ده زوی سکندر د خپل پلار کړنې تعقیب کړې او د هند پورې مخکې لاړ او یوه لویه امپراطوري یې جوړه کړه چې د ده له مرګ څخه وروسته په ۳۲۳ ق م کې په مصر، یونان، شام او کوچنۍ اسیا وویشل شو.

د اریایي قومونو بله ډله د ایطالیک یا ایتالوت په نومونو د ایټالیا خاورې ته ورننوتلې او هلته یې د میلاد څخه ۵۰۹ کاله وړاندې دولت تشکیل کړ، کله چې یونان په خپلو داخلي ستونزو کې راګیر او ضعیف شول نو همدغه رومیانو په ۱۴۶ ق م کې د یونان خاوره ونیوله او یوه لویه امپراطوري یې جوړه کړله، چې د بشر په تاریخ کې تر ټولو پراخه او بې سابقې امپراطوري وه. د روم امپراطورانو هم د ختیځو شاهانو په څېر د مذهب پر بنسټ د الهي حقوقو څخه په استفادې پر خلکو حکومت کاوه. همدا رومیان ول، چې د قوانینو او حقوقو بنسټ یې کېښوده چې وروسته بیا د همدوی په نوم ونومول شو. باید یادونه وکړو چې د قانون جوړول د لومړي

ځل لپاره د ختیځ پادشاهانو لخوا صورت نیولې لکه دونګي، حمورابي او نور چې وروسته بیا یونانیانو او رومیانو له هغې څخه په استفاده نور قوانین رامنځ ته کړل.

د روم امپراطوري چې د څلورمې میلادي پېړۍ څخه وروسته په مشکلاتو کې راګیر او ضعیفه شوې وه بالأخره په ۳۹۵ ز کال تجزیه شوه، مرکز یې د روم څخه قسطنطینیه ته انتقال شو، لویدیځه برخه چې مرکز یې روم وه په ۴۷۶ م کال د استرو ګوتانو (ختیځ ګوتانو) د رهبر (اود اکر) له خوا له صحنې ووتله او د هغې پرځای په اروپا کې کوچني سلطنتونه رامنځته شول، چې ملوک الطوایفي بڼه یې لرله.

د (۳۹۵ یا ۴۷۶) څخه تر (۱۴۵۳ یا ۱۴۹۲) کلونو په منځ کې چې زر۱۰۰۰ کاله په بر کې نیسي چې په تاریخ کې د منځنۍ یا تیارې پیړیو په نوم یادېږي، په روم کې د ختیځ ګورتانو رهبر پادشاه شو او د نننۍ فرانسې په خاوره د فرانکانو سلطنت منځ ته راغی، د برتانیې په خاوره انګلوساکسون قدرت ته ورسېدل. په ختیځه اروپا کې د سلاو په نوم قومونه مستقر ول چې د کوچیانو په څیر یې خپل ژوند ته دوام ورکاوه، چې وخت پر وخت به یې په خپلو ګاونډیانو حملې کولې.

د روم امپراطوري په ختیځ کې برقراره وه، چې دغه امپراطوري د بیزانس او یونان په نومونو هم یادېدله، ځکه چې د لویدیځې امپراطورۍ خصوصیات یې په چټکۍ سره د لاسه ورکړل، دغې امپراطورۍ د ۱۰۰۰ کلونو لپاره دوام وکړ، تر دې چې په ۱۴۵۳ ز کالد دویم سلطان محمد چې په فاتح مشهور دی، نوموړې امپراطورۍ ته سقوط ورکړ.

اګر که په ۵۵۴ ز کال د لویدیځ روم امپراطوري د ژوستینین لخوا چې یو زړور سړی و، دویم ځلي ژوندۍ کړای شوه؛ خو مګر هغه عظمت، شان او شوکت یې نه درلوده. د ایټالیا، فرانسې او هسپانیې له لورو محدوده وه، په فرانسه کې شارل مارتل د کوچني سلطنت بنسټ کېښود چې وروسته یې بیا د زوی ببېپن او لمسي شارل کبیر اشارلماني په واسطه اوج ته ورسېده.

البته دغه امپراطوري بیاپه ۸۴۳ ز کال د ورون د معاهدې پر بنسټ تجزیه شوه.

په منځنیو پېړیو کې د مسیحیت دین د روم په امپراطورۍ کې پرمختګ وکړ او د روم امپراطورۍ رسمي دین وګرځېده، چې د وخت په تېرېدو سره پاپ قدرت تر لاسه کړ تر دې

چې که چېرې کوم پادشاه د تقرر او مشروعیت سند د پاپ او یا د کاتولیک مذهبي دستګاه څخه تر لاسه نه کړي حکومت یې غیر مشروع ګڼل کېده.

تر دې چې په ۱۳۰۲ ز کال د فرانسې پادشاه فلیپ زیبا د اتم پاپ پابنفاس سره چې ډېر سخت دریځی سړی و په ټکر کې واقع شو، چې د پاپ یې سخت سپکاوی وکړ. چې پاپ د ډېر غم او غصې له امله ومړ او فلیپ د پاپانو مرکز له روم څخه آوینیون ته ولېږداوه او د پاپ مقام یې د فرانسویانو له ډلې څخه یو شخص ته، د پنځم کلمان په نوم ورکړ. چې له دې پیښې وروسته د کلیسا اهمیت د خلکو په نظر کې راکم شو.

په منځنیو پېړیو کې یو لړ جګړې د مسلمانانو او عیسویانو ترمنځ د بیت المقدس (اورشیلم) د خاورې په سر رامنځ ته شوې. چې پیل یې په ۱۰۹۵ ز کال کې وشو. چې د دویم پاپ اوربان لخوا په مسلمانانو باندې د جهاد اعلان وشو، چې تر ۱۲۹۱ ز کال پورې یې دوام وکړ.

دغه جګړو که څه هم له سیاسي پلوه عسویانو ته کومه فایده نه درلوده، مګر په غیر مستقیم ډول یې فواید درلودل لکه د ملوک الطوایفي نظامونو کموالی او په انګلستان، فرانسې او هسپانیه کې د قوي او مستحکمو سلطنتونو ایجاد څخه عبارت دی. سره له دې چې منځنۍ پېړۍ ته د سکوت او تیارې پېړۍ ویل کېږي، مګر په کُلي ډول علوم او هنر ودرېدلی نه و؛ بلکې په سست ډول یې خپل رشد او انکشاف ته ادامه ورکوله.

نوې پېړۍ چې په ۱۴۵۳ ز کال د دویم محمد په واسطه د قسطنطینیه په فتحه کولو او د کرستف کولمپ له خوا (۱۴۹۲) زکال د امریکا په کشفولو پیل کېږي، چې دغه چارې په هسپانیه، پرتګال، هالنډ، انګلیس، فرانسه او د اسیا، اروپا او امریکا په لویو وچو کې د لویو امپراطوریو د جوړېدو سبب وګرځېده.

د بله طرفه په ایټالیا کې رنسانس رامنځته کېدل په ایټالیا او ټوله اروپا کې د علومو او هنرونو د انکشاف باعث شو. د رنسانس د دورې عمده نتیجه یوه دا وه چې د اصلاح طلبو او یا پروتستانتانو فرق یې په عیسوي دین کې منځ ته راوړ، چې د دوی مخکښ رهبران لوتر، زوبینګلي او کالوین و.

چې دغه چاره په عیسوي دین کې د یو لړ اصلاحاتو او د اروپایي هېوادونو په منځ کې د جګړو سبب شوه. همدارنګه په نتیجه کې د لویو او افسانوي شتمنیو ټکر، اروپایي جګړې او پراخه فتوحات د دې سبب شول، چې ملوک الطوایفي نظامونه په تزلزل کې واچوي او د نوي قدرت ظهور ته یې زمینه برابره کړه، چې دا یو اقتصادي حاکم رژیم و، چې په بورژوازۍ سره ونومول شو. چې د انګلستان او هالنډ په خاوره باندې شروع شو. چې زمونږ د دې مضمون اصلي موضوع هم د همدې انقلاب نه وروسته موضوعات او پیښې تشکېلوي.[۱]

# دويم څپرکی

## په اوولسمه زيږديزه پيړۍ کې د نړۍ وضعيت

### پروس

د منځنيو پيړيو په ډېره موده کې، د اروپا په تاريخ کې د روم د مقدسې امپراتورۍ په نوم هېواد شتون درلوده، چې تر ډېره يې چنداني قدرت نه درلوده، بلکې تر ډېره د امپراتورۍ په اوږدو کې ډېری الماني امير مېشته سېمو شتون درلوده او د الماني شهزاده ګانو پواسطه اداره کېده.د ټولو هڅه دا وه چې د امپراتور مقام انتخابي شي. په ۱۴۳۸ ز کال ارشيدوک اتريش د هابسبورګ د کورنۍ په نامه په هڅې پيل کړې، ترڅو د مرکزيت اصولو ته په خپله امپراتورۍ کې عموميت ورکړي، د لومړي ماګزيميليان (۱۴۹۳ - ۱۵۱۹) ز کلونو کې په ښکاره ډول د دغه سياست په پلې کولو کې ځينې پرمختګونه وشول، د وخت په تېرېدو سره دوه الماني مېشتو اميرانو خپل قدرت ډېر او قلمرو ته يې پراختيا ورکړه، دغه دوه ميشت اميران اتريش او پروس و، چې په تدريج سره په امپراتورۍ باندې بدل شوه او پر ټولو آلماني آمير مېشتو سيمو باندې د تسلط په فکر کې شول.

په اتريش کې د لومړي ماګزيميليان زوی چې فيلپ نومېده، د هسپانيا د وارث (خوانا) سره واده وکړ، چې د دې واده پايله پنځم شارل (شارلکن) و، چې د ماګزيميليان څخه يې د امريکا لوري تر ګواښ لاندې و، دغې کورنۍ په پروس حکومت کاوه، چې په ۱۴۱۷ ز کال د متصرفات، هسپانيا او ايزابل په ميراث يوړل. د هابسبورګ د کورنۍ قدرت د هوهنتزولرن له براندنبورګ سلطنت ته رسيدلی وه، چې په واقعيت کې د نوي پروس اصلي هسته هم د همدوی له لوري رامنځته شوې ده. براندنبورګ په منځنيو پېړيو کې د مقدسې امپراتورۍ په

قلمرو کې منځ ته راغلې وه ترڅو د همدې امپراتورۍ په استازیتوب له اسلاو کافرو سره جګړه وکړي.

په ۱۷ ز پېړۍ کې ځینې ځمکې په براندنبورګ کې د هوهنزولرن په لاس کې ولوېدې، چې د هغې له مجموعې څخه پروس منځ ته راغی، په ۱۶۴۰ ز کال د دیرش کلنو جګړو په منځ کې د فردریک ویلهلم د نوي پروس له بنسټ اېښودونکو څخه تېر شو، لومړی فردریک د فردریک ویلهلم ځای ناستي په ۱۷۰۱ ز کال د هابسبورګ له امیرانو څخه وغوښتل چې نوموړي د پروس د امپراتور په عنوان وپېژني، په دې توګه یو الماني امپراتور تر حاکمیت لاندې ټول آمیران راغلل. د هوهنزولرن ټولې شیندلې ځمکې له رن څخه د لیتوانیا تر پولو د پروس په نوم ونومولې او تر ۱۷۴۰ ز کال پورې یې سلطنت وکړ.

د نوموړي څخه وروسته د هغه زوی دویم فرد ریک چې په لوی فردریک سره مشهور دی، پرتخت کېناست، چې په دې وخت کې به اتریش کې ماري قدرت ته ورسېدله، چې د اتریش د ځای ناستې کېدلو جګړو (۱۷۴۰ – ۱۷۴۸) ز کال او د (۱۷۵۶ – ۱۷۶۳) ز کال اوه کلنې جګړې هم د همدې امپراتورانو په وخت کې شوي دي.[۱]

### اتریش

اتریش د هابسبورګ د کورنۍ تر واک لاندې و، چې په ۱۵۱۹ز کال پنځم شارل سلطنت ته ورسېده، په ۱۵۵٦ز کال یې د خپل زوی دویم فیلیپ په ګټه استعفی ورکړه، دویم فلیپ له ۱۵۵٦-۱۵۹۸ز کال پورې حکمراني وکړه، چې د خپل عصر له لویو پادشاهانو څخه ګڼل کېږي، نوموړی د هسپانیې، هالنډ، ناپل، میلان، سیسل او د امریکا د ځینو برخو امپراتور و، نوموړي داسې اردو لرله چې ماتې یې نه منله، د شارلکن ورور لومړی فردیناند چې د بوهم، هنګري او اتریش حکمران و، بله امپراتوري یې جوړه کړه، په دې توګه د هابسبورګ کورنۍ په دوه برخو ووېشل شوه، اما د دواړو کورنیو ګډ سیاست تعقیباوه، دویم فیلپ له خپل پلار څخه هم زیات هسپانیې ته پاملرنه درلوده، لومړي فردیناند خپل ډېر وخت پروستانت او ترکانو سره په جګړو

---

[۱]. عباسقلي غفاري فرد، تاریخ اروپا، مخ ۲۹۳.

تېر کړ، چې د دغو جګړو په پایله کې ځایي ترکان د مرکزي اروپا او بالکان څخه په شاه تګ وکړ او د ۱۷۰۰ ز کال جګړو په پایله کې اترشیان وتوانېدل چې مجارستان هم د عثماني ترکانو څخه ونیسي. د لومړي فردیناند (دویم ماګز یمیلیان او رودلف) هم په همدغه جګړو کې ښکیل ول، لومړی لوپلد (Leopold) چې په ۱٦۵۸ ز کال قدرت ته ورسېده، تر ډېرې مودې پورې عثماني ترکانو سره یې جګړه وکړه هغه وخت چې دین یې محاصره کړی و، له لوپلد څخه وروسته د هغه زوی ژوزف په ۱۷۰۵ز کال قدرت ته ورسېده او د هسپانیې ځای ناستو جګړو ته یې دوام ورکړه، د ژوزف له مړینې وروسته د ده ورور شپږم شارل په ۱۷۱۱ ز کال سلطنت ته ورسېده، چې ماري ترز هم د همدې شپږم شارل لور وه، لږ وخت وروسته الماني امپراتورانو د مقدس روم د امپراطور په عنوان د مادي ترز له ټاکل کېدلو سره مخالفت وکړ، چې د پروش پادشاه دویم فردریک په دې مخالفت کې تر ټولو مخکې و، مګر ماري ترز په دغه مخالفت کې په جګړو کې بریالۍ شوه دویم فریدریک په یوازیتوب سره جګړې ته ادامه ورکړه، په واقعیت کې دغه جګړه د دوو اتحادیو په ګډون د پروس، ساکس، باویر، فرانسې، هسپانیې ساردنې له اتریش، انګلیس او هالنډ ترمنځ وه، بالاخره د جګړو ښکیل لورې سترې شول او په ۱۱۸۴۸ز کال یې اکس لاشاپل معاهده لاسلیک کړه، اتریش، پام او پلزانس یې هسپانیې ته ورکړ، چې له دې معاهدې څخه انګلیس، هسپانیه او اتریش خوښ نه و، ماري ترز په اسانۍ سره روسیې او ډېری الماني هېوادونو سره اتحاد وکړ او اوه کلنې جګړې یې پیل کړې. [1]

### هسپانیه

د کاستیل او اراګون په یووالي سره نوی دولت په هسپانیه کې منځته راغی اراګون د سیل او ساردنی مالک و او کاستیل هم امریکا نیولې وه، چې په دې توګه هسپانیه د ښه مالي او پوځي وضعیت څخه برخمنه شوه د اراګون او ایزابل حکمران فردیناند او ملکې کاستیل خپلو کې واده کړی و، چې د دې واده ثمره د خوانا په نوم یوه لور وه، چې د خپل مور او پلار د قلمرو وارثه ګڼل کېدله، خوانا بیا فیلپ سره واده وکړ، چې د خوانا له واده څخه شارلکن وزېږېده چې

---

[1] . عباسقلي غفاري فرد، تاریخ اروپا. مخ ۲۵۴.

بیا د هسپانیې، اتریش او هالند په تخت کېناست په دې توګه په ټوله اروپا او امریکا کې د اتلسمې پېړۍ تر ټولو پراخه قلمرو او پیاوړی هېواد ګڼل کېږي چې وړاندې مو یادونه وکړه چې شارلکن بیا د خپل زوی دویم فیلپ په ګټه استعفی ورکړه د شارلکن ورور لومړی فردیناند د روم مقدمه امپراطوري خپله کړه او په اتریش کې یې د هابسبورګ د کورنۍ بنسټ کېښود او دویم فیلپ په هسپانیه کې د هابسبورګ د کورنۍ بنسټ اېښودونکی شو، دریم فیلپ د انګلیس د ملکې کاترین اراګون د لور ماري سره واده وکړ او په دې توګه د انګلیسانو له ملاتړ څخه برخمن شو، مګر په ۱۵۵۸ز کال د ماري په مړینې سره لومړۍ الیزابت پر تخت کېناستله او دا اړیکه هم له منځه لاړه.

په ۱۵۸۰ز کال په پرتګال کې د وروستي هانري له مړینې وروسته، دویم فیلپ له موقع څخه په استفادې نوموړی قلمرو ونیوه او د هغې ټولې مستعمرې یې د هسپانیې د پراخه امپراتورۍ پورې وتړلې، چې په دې توګه دویم فیلپ اروپا او حتی د ټولې اروپا تر ټولو پیاوړي شاه ګڼل کېده، مګر د هغه سخت دریځ او استبداد د هالنډیانو د بغاوت سبب وګرځېده او فیلپ انګلستان لښکرکشي- وکړه، چې په دې لښکرکشۍ کې دویم فیلپ له سختې ماتې سره مخامخ شو په داسې حال کې چې د هسپانیې بحري قوه په ماتې نه منلو سره مشهوره وه چې په ۱۵۸۸ز کال یې له انګلیس څخه ماتې وخوړه او له دې وروسته د انګلستان بحري قواوو غوره والي دوام وموند.

هالنډیانو هم د دویم فیلپ د اقداماتو په وړاندې د اعتراض په توګه شورش وکړ چې د دې شورش مشري ویلیام خاموش، د فرانسې په شمال کې د اورانژ په نوم د یو کوچني ایالت امیر کوله، نوموړي اوه پروتستانت مېشته ځمکې سره متحدې کړې او په ۱۵۷۹ز کال یې اوترخت اتحادیه منځته راوړه، چې د دې اتحادیې او فیلپ ترمنځ جګړو ادامه درلوده بالاخره په ۱۵۹۸ز کال فیلپ مړ شو، خو جګړو دوام درلود چې په ۱۶۰۱ز کال د هالنډ په خپلواکۍ سره پای ته ورسېده.

د دویم فیلپ له مړینې وروسته دریم او بیا څلورم فیلپ په ۱۶۲۱ز کال قدرت ته ورسېده، چې څلورم فیلپ د ماري ترز پلار و، څوارلسم لوی د فرانسې امپراتور له نوموړې سره واده کړی

ماري ترز د مهر په بهانه په هسپانيه و، د څلورم فيليپ له مړينې وروسته څوارلسم لوی د ماري ترز د مهر په بهانه په هسپانيه و، د څلورم فيليپ له مړينې وروسته څوارلسم لوی د هسپانيې د وراثت د جګړې په نوم مشهوره ده، هسپانيې جګړه پيل کړه چې دغه جګړه د هسپانيې د وراثت د جګړې په نوم مشهوره ده، هسپانيې ماتې وخوړه او د فلاندر سيمه يې فرانسې ته ورکړه.

د هسپانيې بل پادشاه د څلورم فيليپ زوی دويم شارل شو، چې په ۱۶۶۵ ز کال پر تخت کېناست دويم شارل مريض او بې اولاده شخص و چې په ۱۷۰۰ز کال ومړ او څوارلسم لوی خپل لمسی د هسپانيې پر تخت وګماره، چې د انګلستان او هالنډ امپراتوران له دې وضعيت څخه خوښ نه ول، چې همدغه چاره د جګړې باعث وګرځېده او د اوترخت په عهدنامه پای ته ورسېده او پنځم فيليپ د هسپانيې پادشاه وپېژندل شو.

د هسپانيې د ځای ناستي کېدلو په جګړو کې د پنځم فيليپ د سلطنت په لومړۍ دوره کې د هسپانيې څخه زياته برخه بېله شوه، پنځم فيليپ په مالي او پوځي اصلاحاتو پيل وکړ؛ خود خپل سلطنت په وروستيو کې لېونی شو او په ۱۷۴۶ز کال مړ شو، له دې وروسته په ترتيب سره شپږم فرديناند او درېيم شارل قدرت ته ورسېدل، درېيم شارل د هسپانيې تر ټولو غوره پادشاه و، چې په اووه کلنو جګړو او د امريکا د خپلواکۍ په جګړو کې يې برخه واخيسته، درېيم شارل په ۱۷۸۸ز کال په شو او څلورم شارل قدرت ته ورسېده، چې کافي عقل او اراده يې نه درلوده او د چارو واګې يې د وزيرانو په لاس کې ورکړلې.[1]

**روسيه**

د پنځلسمې پېړۍ په وروستيو او د شپاړسمې پېړۍ په اوايلو کې د روس ځمکو اشراف حاکم قدرت (مغولانو) په مرسته وتوانېدل چې خپل ژوند ته دوام ورکړي دوی د مغولانو په مرسته په دهقانانو سخت ظلمونه کول، د مسکو شهزادګانو، مغولانو ته ماتې ورکړه او له هېواد څخه يې وشړل، مګر د روسيې اشرافو په نظر دغه کار د حکمران د بدلولو په اندازه تعبير شو نه د خپلواکۍ په معنی. (د تزاري درېيم ايوان دوره (۱۴۶۲-۱۵۰۵)ز کلونو، او څلورم ايوان

[1] عباسولي غفاري، فرده تاريخ اروپا، ۲۹۵-۲۹۶مخ

(۱۵۳۳-۱۵۸٤) چې په ویرونکي مشهور و، په دوره کې روسانو د مغولانو په تعقیبُ خپل قلمرو ته د ختیځ په لوري پراختیا ورکړه.

روسیه اوسېدونکي د قوم په لحاظ لهستاني، چک او صربان دي او د مذهب په لحاظ ارتودوکس دي چې له اروپا سره تړاو لري او په واقعیت کې اروپایي ګڼل کېږي د اوولسمې پېړۍ په لومړیو کې د ایوان سلسله پای ته ورسېدله او روسیه د ۱۵ کالو لپاره (۱۵۹۸-۱۶۱۳) ز کال ورې په ناورین کې ښکیل شوه، تخت و تاج ځو ځلې غصب شو خلکو څو ځلې بغاوت وکړ.

بالاخره په ۱۶۱۳ز کال روسانو د ویرونکي ایوان خورین (میخایل رومانوف) پر تخت کېناوه، چې د پرمختګ او غوړېدلو دوران راغی، میخایل رومانوف د رومانوف د سلسلې بنسټ اېښودونکی، چې دې سلسلې د روسیې د ۱۹۱۷ز کال د اکتوبر تر انقلاب پورې دوام درلوده.

له میخایل رومانوف څخه وروسته د ده زوی الکسیس Alexis په ۱۶٤۵ ز کال د هغه ځای ناستی شو، له ده وروسته فیودورfeodor په ۱۶۷۸ ز کال د سلطنت پر تخت کېناست، دوی د اروپا په لوري پاملرنه وکړه او په دې لټه کې شول ترڅو له مهم دولتونو سره سیاسي اړیکې ولري، له فیودور څخه وروسته په ۱۶۸۲ز کال پتر peter قدرت ته ورسېده، نوموړی لوړ اراده لرونکی او خود خواه پادشاه و، چې ظالم او بې رحمه ځانګړتیا یې درلودله.

پتر ډېر ژر دې ته متوجه شو چې د روسیې قوت د پیاوړي بحري ځواک په لرلو سره تضمین کېدای شي چې د دې لپاره یې په ۱۶۹۷ز کال لویدیځې اروپا ته د یو هئیت سره سفر وکړ او د یو عادي فرد په توګه د انګلستان هالنډ، پروس او اتریش څخه لېدنه وکړه د یوې مودې لپاره یې د اتریش د بېړۍ جوړولو په یوه کارخانه کې کار وکړ خپل هېواد ته له راستنېدلو وروسته یې له سویس سره جګړه پیل کړه، چې شل کاله یې دوام وکړ، چې بالاخره د سویس پادشاه دولسم شارل له روسیې څخه ماتې وخوړه.

پتر د خپلو ارادو د پلي کولو لپاره د سن پترزبورګ ښار جوړ کړ او پایتخت یې ورته راوړ، د امپراطورۍ په جوړښت کې یې تغییرات راوستل، داسې چې په اته ایالتونو یې وویشه، د

نجباوو قدرت یې لږ کړ، د مالیاتو میزان یې لوړ کړ، صنعت، سوداګرۍ او تعلیم او تربیې ته یې پراختیا ورکړه، د پتر کړنو روسیه په ډېرې چټکۍ سره د اروپا سره نږدې کړه، د پتر اصلاحاتو په ډېرو لږو خلکو کې ژور تغییر منځته راوړلو ډېرې اطرافي خلک لا هم د پخوا په څیر له تمدن څخه لرې ول، پتر د خپل زوی الکسیس سره د اختلاف په وجه د هغه د وژلو حکم صادر کړ او خپله پتر هم په ۱۷۲۵ز کال مړ شو له پتر څخه وروسته د پتر ښځې لومړۍ کاترین دوه کاله پاچاهي وکړه، هغه وخت دویم پتر، د هغه نومول شوی زوی په تخت کېناست، بیا په ۱۷۳۰ ز کال د لوی پتر لور (آنا) بادشاهۍ ته ورسېده، له هغې وروسته په نوبت سره شپږم ایوان قدرت ته ورسېده، د لوی پتر لور الیزابت شپږم ایوان په ۱۷٤۱ له قدرت څخه محروم کړ، درېیم پتر د شپږم ایوان وراره د د شپږ میاشتو لپاره پادشاهۍ وکړه او بیا ووژل شو.

د درېیم پتر ښځه په ۱۷٦۲ز کال د هغه ځای ناستې شوه، دغه ښځه (دویم کاترین) چې په لوی کاترین مشهوره وه، سره له دې چې الماني وه په پوره توګه له روسیې سیاستونو څخه پیروي وکړه، کاترین سره له دې چې د ښې ګذارې کوونکې ښځه وه، هوښیاره، د لیکوالانو او هنرمندانو ملاترې ګڼل کېده، د ظالم حکمران په څیر به یې فرمان ورکاوه، د هېواد په اداري، قضایي او ښوونیزو سازمان کې یې اصلاحات راوستل دوی په دې وخت کې سوداګرۍ وغوړېده، د ترکیه سره د جګړو په اوږدو کې چې د لهستان د وېش پر سر وي د روسیه خاوره پراخه شوه، د هغه تمایلاتو سره سره چې نوموړې د پرمختګ او ترقۍ لپاره درلودل، د صرفانو په وضعیت کې کوم تغییر منځته رانغی، کاترین د فرانسې له انقلاب څخه ډېره ناراضه او غصه وه، چې د خپل ژوند تر پایه ۱۷۹٦ز کال پورې یې حکمراني وکړه.[1]

## دیرش کلنې جګړې او د ویستفالیا سوله

د ۱۵۵۵ز کال د اوګسبورګ د سولې قرارداد پر بنسټ د روم د مقدسې امپراتورۍ (المان) هر ایالت د خپل ملت دین ټاکي، هر کله به چې حاکم مړ شو؛ نو د مختلفو فرقو او ډلو ترمنځ سخت رقابتونه پیل شوه، ترڅو د هغه ځای ناستی وټاکي، چې دغه قلمرو لوتري یا کاتولیک

[1] عباسقلي غفاري، فرد، تاریخ اروپا، ۲۹۷مخ

نومېده، د مذهبي اصلاحاتو پرمختګ مخالفینو پروتستانت هم نارامه کړي و، د بلې لوري کالوین دین هم غوړېدلی و، مګر په رسمیت لا هم پېژندل شوی نه و، چې د پیروانو کړنو یې هم وضعیت بې ثباته کاوه، همدا راز د اوګبسورګ د سولې قراداد کاتولیک کلیسا د ملکیتونو وضعیت روښانه کړی نه و، په دې ډول شرایطو کې د مقدسې امپراتورۍ ایالتونه چې شمېر یې ۳۰۰ ته رسېده، علاقه درلودله چې خپلواکي ترلاسه کړي، چې د دې امپراتورۍ ګاونډیانو لکه ډنمارک، سویس او فرانسې هم د دې امپراتورۍ د کمزورې کېدلو په موخه دې ډول حالاتو ته لمن ووهله چې پایله یې د ۳۰ کلنو مذهبي، سیاسي او اقتصادي جګړو بڼه درلوده، چې په دې توګه پورته هېوادونه په کې ورو ورو ښکیل شول.

له ۳۰ کالو جګړو وروسته په ۱٦٤۸ز کال د ویستفالیا قرارداد د مونستر او اوسنابروک په ښارونو کې لاسلیک شو، چې پر بنسټ یې هم الماني ایالت تر یوې اندازې پورې خپلواک وپېژندل شو، د مذهبي اړخه شته وضعیت محترم وګڼل شو، کالوین هم د ازادۍ څخه برخمن شو او په اروپا کې یې نوی وضعیت په جغرافیوي او مذهبي لحاظ منځته راوست، چې د لومړي ځل لپاره د اروپا په تاریخ کې د ټولو هېوادونو خپلواکي، ځمکنۍ بشپړتیا ته احترام او په رسمیت وپېژندل شو، چې دې وضعیت تر فرانسې انقلاب پورې دوام وکړ.[1]

## انګلستان په اوولسمه زېږدېزه پېړۍ کې

وروسته له هغې چې د اسپانیا بحري ځواک مات او خطر یې له منځه لاړ شي، نو انګلستان د ډېر لږ وخت لپاره د اروپا په چارو کې مداخله ونه کړه، انګلیسانو په دېرش کلنو جګړو کې هم ډېره ونډه نه درلوده او یواځېنی هېواد چې د ویستفالیا په کنګره کې یې ګډون ونه کړ د انګلستان هېواد و، په ۱٦٤۰ز کال کې د ویستفالیا د مذاکراتو په حدودو کې انګلستان په کورنیو جګړو کې راګیر و، خو د دغو جګړو شدت له هغو دېرش کلنو مذهبي جګړو څخه کم و، چې فرانسه، المان او هالینډ یې وران او تباه کړل. په دې جګړه کې د ټولو اروپایي هېوادونو

---

[1] عباسقلي، غفاري، فرد، تاریخ اروپا ۲۹۸-۳۰۱مخ

په څېر د شخړې لوري کاتولیکان او پروتستان نه ول، بلکې دا یوه داسې منازعه وه چې یو لوري ته یې یوه افراطي ډله یا هغه پروتستان ول چې د (کالوین) پلویان ول او ځانونو ته یې (صفایه) ویل او بلې لورې ته هغه اعتدالي پروتستان یا هم د (انګلیکان) مذهب پیروان ول چې د انګلستان د رسمي دیانت تابع ول. د انګلستان داخلي جګړه تر دې اندازې پورې خفیفه وه چې ویلای شو چې انګلستان د مذهبي جګړو له دهشت او فجایعو څخه په امان کې پاتې شوی و، دا خبره د انګلستان ټولو جزایرو ته نه شاملېږي، له ۱۶۰۳ز کال څخه وروسته انګلیستان او سکاټلنډ په عین حال کې چې یو له بله بېل ول، خو یو پاچا یې درلود او د ایرلینډ پاچا په خپل حال پاتې شو، یعنې د انګلستان تابع و، انګلیستان او سکاټلنډ همېشه په جګړه کې ښکېل ول، خو د انګلستان او کاتولیک ایرلینډ ترمنځ شخړه له دې څو چنده سخته وه او په ایرلینډ کې د مذهبي جګړو له امله د قساوت او وینې توئېدنې صحنې راښکاره شوې.

خو له دې ټولو سره سره بیا هم د انګلستان لپاره اوولسمه پېړۍ یوه داسې پېړۍ وه چې لوی ویاړونه یې په کې ترلاسه کړل او د نوې اروپا د مهمو ملتونو په حیث یې ځان ثابت کړ، له هالنډیانو او اسپانویانو څخه یې ډېرې ځمکې او سیمې ترلاسه کړې او د (پنسلوانیا او کارولینا) د مهاجرینو کیمپونه یې رامنځته کړل، د امریکا ټول ۱۳ د مهاجرنیو کیمپونه له ۱۷۰۰ ز کال څخه وړاندې رامنځته شوي ول، بالأخره برتانیه له دې وروسته په نړیوالو اړیکو او نړیوال سیاست کې د یو مطرح قدرت په توګه د ځان لپاره ځانګړی ځای وموند.[۱]

## لومړی) د پاچایانو ترمنځ مبارزه (ستیوراټ او پارلمان)

په اولسمه زیږدېزه پېړۍ کې په انګلستان کې د نورو ټولو هېوادونو په څېر د پاچایانو او د ملت د استازیو ترمنځ ټکر شتون درلود، چې بالاخره د پارلمان (ملت) په بریالیتوب پای ته ورسېده، خو دا کشمکشونه چې رامنځته شول یوازې په انګلستان کې نه ول، بلکې په المان او د سپېڅلي امپراتورۍ په ایالتونو کې یې هم شتون درلوده. همدارنګه په پولینډ کې هم وضعه

---

[۱]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۲۶۵-۲۶۶.

په همدغه شکل وه، د اروپا په زیاترو سیمو کې د خلکو د استازیو د پخوانیو مجالسو کامیابۍ د انارشېزم بڼه درلوده، خو په انګلستان کې دا مسئله په فرد پوره منحصره وه چې پارلمان پاچا ته ماته ورکړه او د حکومت داسې یوه بڼه رامنځته شوه چې د هېواد چارې یې ترسره کولې. دولت قدرتمند پاتې شو، خو د پارلمان د مجلس تر څارنې لاندې و، دا مسئله د نوي انګلستان له عمده ځانګړنو څخه وه، بالاخره د اروپا او نړۍ په تاریخ کې د لیبرالیزم (آزادي غوښتنې) د نهضت او د تشکیلاتي مجالسو د ترویج سریزه شوه، دا ټول د خلکو او د خلکو د استازیو د نظریاتو او تمایلاتو ښودونکي ول.

د لومړۍ ملکه الیزابت پر مهال (له ۱۵۵۸ څخه تر ۱۶۰۳ز کال پورې د انګلستان او ایرلینډ ملکه وه، هغه د اتم هنري لور وه او دویم مېړه یې بولین و، انګلستان د هغې په واکمنۍ کې وکولای شول د اسپانیا بحري ځواکونو ته ماتې ورکړي او د نړۍ په اوبو کې د خپل قدرت په زیاتوالي سره یې وکولای شول چې د وخت لوی ځواک باندې ځان بدل کړي، همدارنګه د رنسانس پېښېدل هم پر انګلستان کې د الیزابت له حکومت سره همدوره ول). د هغې د سلطنت په وروستیو کلونو کې د پارلمان اړیکې له سلطنت سره ښې نه وې او د ناخوښۍ علایم د دواړو خواوو څخه ښکارېدل، خو سره له دې بیا هم پارلمان د هر ډول مخالفت له ښکاره څرګندولو څخه ځان ژغوره او الیزبت د هېواد په داخل کې سوله وساتله.

په ۱۶۰۳ ز کال د لومړۍ الیزابت له مرګ څخه وروسته د تودور کورنۍ پادشاهي پای ته ورسیده او د ستېوراټ له کورنۍ څخه لومړي جیمز قدرت په لاس کې واخیست. نوموړی په جدیت سره د مطلقه سلطنت طرفدار و او د پادشاهۍ څخه یې داسې انګېرنه درلوده چې پادشاهي د پارلمان، روحانیونو، قوانینو او عرف پورې محدوده او مقیده نه ده، د نوموړي هدف دا و، چې پادشاه د ملت د پلار په څیر دی او د حق لري هر ډول چې وغواړي او لازمه وګڼي د ټولنې چارې د عامه ګټو او رفاهیت په غرض ترسره کړي. پورتني، ټول ګوندونه، خصوصي او ټولنیزې ګټې او اړیکي دي چې د پادشاه کارونه له ستونزو او محدودیتونو سره مخ کوي. تردې چې نوموړي اعلان وکړ چې پادشاهان قدرت له خدای څخه ترلاسه کوي نو په دې ډول یوازې د خدای پر وړاندې مسؤلیت هم لري.

د ملکه اليزابت د حکمرانۍ په وروستيو کلونو کې پارلمان د نوموړې له کړنو پوره رضايت نه درلوده اما دا چې هغه د عمور په وروستيو کلونو کې وه نو پارلمان ورسره مخالفت ته زړه نه ښه کاوه، اليزابت په دې توانېدلې وه چې د هېواد په داخل کې سوله برقراره کړي، له هسپانيې سره وجنګېده ؛ې د همدې بريالیتوبونه له امله ملت ورته پوره احترام درلوده.[1]

جيمز چې سکاتلنډي وه، نه پوهېده چې له انګلېسانو سره څه ډول تعامل وکړي، له دې سره په خوا کې نوموړی د پادشاهۍ په چارو کې د پخوانيو طريقو پالونکی و، چې له همدې امله يې نوموړي ته د (عيسويانو په نړۍ کې د احمقانو له ډلې تر ټولو هوښيار شخص) لقب ورکړی و. د نوموړي د قدرت په دوران کې د انګلستان دوه مختلفې برخې چې د کلونو راهيسې يو د بل دښمنې وې سره يو او متحد شوې چې د دغه اتحاد څخه يو ډېر قوي دولت منځ ته راغی يعنې لويه برتانيه منځ ته راغله. د لومړي جيمز په وخت کې ناراضه کاتوليکانو د ده د پادشاهۍ د له منځه وړلو او پارلمان د منحلولو لپاره يوه توطيه جوړه کړې وه، چې په کشف کولو سره يې د دغې توطيې مشران او رهبران ګرفتار او اعدام کړل او همدارنګه کاتوليکان يې د عمومي خدمت څخه وويستل. په ډيرې چټکۍ سره د لومړي جيمز او پارلمان ترمنځ هم ټکر رامنځته شو دا چې نوموړي ډېرو پيسو ته اړتيا درلوده او پارلمان دې ته حاضر نه و، چې دغه لګښتونو پوره کولو ته رسيده ګې وکړي.

په انګلستان کې د پارلمان بڼه داسې وه چې د نورو هېوادونو لکه هالنډ جمهوريت، فرانسې، المان، هسپانيې او پولنډ سره يې فرق درلود. په انګلستان کې پارلمان دوه مجلسه درلودل چې يو يې د اعيانو مجلس (House of Lords) او بل يې د عام مجلس ( House of commons) په نوم يادېدل.

د اعيانو مجلس کې زياتره اشراف او يا لاردان ول او د عوامو په مجلس کې د عوامو طبقو او ځينې صاحب منصبان راټولېدل. له همدې امله د انګلستان پارلمان د نورو هېوادونو د

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاريخ جهان نو، مخ۲۶۸ – ۲۷۰.

پارلمانونو په څیر په طبقاتي اختلافو کې تشدد او ستونزې نه درلودې او نه هم مذهبي ډلې په جلا ډوګه پیژندل کیدلې.

د پارلمان غونډې او مجلسونه د پادشاه د غوښتنې پر اساس جوړېدل، یعنې دایمې غونډې یې نه درلودلې، خو پادشاه چې استبدادي غوښتنې درلودې نو تصمیم یې ونیوه چې پارلمان د کار کولو لپاره ونه غواړي، دغه اقدام د ملت د قهر او غوصې سبب شو. همدارنګه په دغه وخت کې انګلستان یوازې یو ډول پارلمان درلوده، اما ځینې نورو هیوادونو لکه د هالنډ جمهوریت، هسپانیې، فرانسې، المان او پولنډ ایالاتي پارلمانونه هم درلودل چې دغې کړنلارې په انګلستان کې شتون نه درلوده.

د انګلستان دواړه مجلسونه د اعیانو او عوامو مجلس د ۳۰ کلنې جګړې په ترخ کې بې طرفه پاتې شو. لومړی جیمز چې د سولې غوښتونکې و او د هسپانیې سره د نزدې اړیکو ټینګولو په لټه کې شو خو په ۱۶۲۵ ز کال مړ شو.[۱]

لومړی شارل یا لومړی چارلز چې د ۱۶۴۹-۱۶۰۰ ز پورې د انګلستان، سکاتلنډ او ایرلینډ پادشاه و، د خپل پلار څخه وروسته د پادشاهۍ په تخت کېناست، نوموړي غوښتل چې استبدادي سیاست ته مخه کړي، نوموړي د ۱۳ لوی د لور هانریت دو فرانس سره واده کړی و مګر دغه واده د شارل لپاره کومه مطلوبه نتیجه نه درلوده، نوموړي له یو څه وخت وروسته د فرانسې او هسپانیې سره د جګړې اعلان وکړ، څرنګه چې د انګلیس دولت د پروتستانتانو څخه ملاتړ کاوه نو ځکه یې د دې جګړه څخه کومه مطلوبه نتیجه هم ترلاسه نه کړه. په لومړي قدم کې شارل د پارلمان سره سازش نه درلوده، شاه د پیسو غوښتونکې وه، سره له دې چې خلک د وضعیت په اړه ډېر زیات خوش بین ول مګر دغې خوشبینۍ ډېر دوام ونه کړ ځکه شاه ځان د ملت او پارلمان په وړاندې د کړو وعدو په ترسره کولو ملزم نه ګاڼه.

لومړي شارل دا هڅه کوله چې له پارلمان پرته خپل حکومت ته ادامه ورکړي، چې د پیسو د برابرولو لپاره یې مختلفو لارو او وسایلو ته لاس واچاوه. لکه د تېرو مالیاتو ترلاسه کول... او

---

[۱]. عباسقلي غفاري فرد، تاریخ اروپا، مخ ۲۹۰.

داسې نور مګر په څوارلسمې پېړۍ کې د تصویب شویو قوانینو پر بنسټ د نویو مالیاتو وضعه کول د پارلمان تر تصویبولو وروسته ممکن و او پارلمان هم د څو، څو ځله مالیاتو د تصویبولو څخه ډډه کوله. په دې ترتیب شارل د پادشاهۍ په دوران کې د پادشاه او پارلمان ترمنځ اختلافات اوج ته ورسېدل بالأخره په ۱۶۲۹ ز کال د پادشاه او پارلمان ترمنځ مذاکرات سرته ورسیدل، پارلمان به هغه وخت جوړ او منعقد کېده چې شاه به پارلمان راوغوښته. اما شارل په دې فکر کې و، چې له پارلمان څخه پرته حکومت وکړي، همدارنګه شارل د یو لړ نورو اختلافاتو سره هم مخامخ شو لکه په ایرلنډ کې د اصلاحاتو په راوستو سره د صفائیه ډلې د مخالفتونو سره مخ شو او زیات مشکلات یې رامنځ ته کړل، شاه په دې هڅه کې وه چې داخلي ستونزې او کشمکشونه ارام کړي، مګر هېڅ کار یې مخ په وړاندې نه تللو ځکه نوموړي سربازان او پیسې په اختیار کې نه درلودې، په عین وخت کې شارل د پارلمان له اجازې پرته د بحري ځواکونو د تقویې لپاره ځینې اقدامات ترسره کړل او پرکشتیو یې مالیات وضعه کړل. پرکشتیو دغه مالیاتو د ځمکو او املاکو ټول خاوندان په وحشت کې واچول، ځکه پخوا په انګلستان کې هغه ښارونه چې د بحر په څنډو کې پراته ول؛ نو د کشتیو څخه به یې د باج په نوم مالیات اخستل چې دغه عواید به بیاپه نظامي چارو مصرفېدل.

همدارنګه شارل غوښتل ترڅو د سولې په وخت کې هم بحري ځواکونه ولري، چې دغه مصارف طبعاً د مالیاتو له لارې تمویل کېده، چې ټول هېواد او په خاص ډول هغه داخلي ولایتونه چې د بحر څنډو څخه لرې پراته دي باید دغه مالیات ورکړي، لویان او نجباء چې د دولت استازي ول زیاتره د هېواد په داخلي ولایتونو کې ژوند کاوه، د دغه مالیاتو په ورکولو کې یې علاقه نه درلوده او نه یې هم د پخوانیو عاداتو څخه د انحراف غوښتنه درلوده. څرنګه چې پارلمان نوي مالیات وضعه کړي نه ول او هم یې خپلو غوښتنو ته چې د پادشاه د واکونو محدودیت و، ادامه ورکړه.

نوموړي د سکاټلنډ په مذهبي چارو کې لاسوهنه کوله سکاټلنډیانو په ۱۶۳۷ز کال په دوی باندې د انګلیګان مذهب د تحمیل په خاطر په ادنبورګ کې قیام وکړ ، شارل مجبور شو او په ۱۶۴۰ ز کال یې د یوولس کاله څنډ وروسته پارلمان کار کولو ته راوغوښته، مګر څو اونۍ لا د

پارلمان د جوړېدو تېرې شوې نه وې پارلمان یې بیا منحل کړ چې له همدې امله دغه پارلمان د لنډ پارلمان په نوم یادېږي. مگر له دې وروسته پادشاه د انتخاباتو د کولو حکم صادر کړ، مگر بیا هم د انتخاباتو له لارې هماغه پخوانیو استازو مجالسو ته لاره وموندله د ۱۶۴۰ - ۱۶۵۳ ز کال پورې پارلمان ۱۳ کاله دوام وکړ، دغه اوږدې مودې پارلمان نه یوازې دا چې د پادشاه سره یې د سکاتلنډیانو په وړاندې مرسته ونه کړه؛ بلکې د سکاتلنډیانو د بغاوت څخه یې د خپلو غوښتنو د توجیه لپاره استفاده کوله. پارلمان په دې ټینگار کاوه چې د پادشاه مشاورین دې نه یوازې دا چې له دغه مقام څخه برطرف شي؛ بلکې محاکمې ته دې وړاندې شي او ودې وژل شي. په دغه وخت کې لومړی شارل د مقاومت په لټه کې و لومړي چارلز د جگړې د لګښتونو د پوره کولو لپاره له پارلمان څخه مرسته وغوښته چې پارلمان یې د غوښتنې مخالفت وکړ، نوموړي عسکر پارلمان ته ولېږل ترڅو مخالف استازي له پارلمان څخه بهر کړي، وروسته لندن ته ولاړ او د پلویان یې هم ورپسې ورغلل پارلمان هم ځواکونه راټول کړل او په دې ډول کورنۍ جگړه پیل شوه. په ۱۶۴۲ ز کال د پادشاه او پارلمان پلویانو ترمنځ جگړه پیل شوه چې په دې جگړه کې د پادشاه زیاتره پلویان د شمال او لویدیځ څخه راتلل او د پارلمان پلویان له جنوبي او ختیځو ایالتونو څخه چې په اقتصادي لحاظ ډېر پیاوړي ول راتلل.[1]

کله چې د پادشاه او پارلمان ترمنځ د ۱۶۴۲ ز کال جگړې په نتیجه کې د پادشاه پلویان له ماتې سره مخامخ شول په دې وخت کې د پارلمان د نظامي قواوو رهبري د پروتسنتانت مذهبه لومړي اولیور کرومول په غاړه وه (۱۵۹۹-۱۶۵۸) ز کلونو پورې نوموړي په نویو نظامي تشکیلاتو پیل وکړ، دغه نظامي ځواک په اوسپنیزه لیکو مشهور و. دوی متعصب او افراطي پروتستان ول؛ مگر د پارلمان په قواو کې زیاتره بیوزله خلک ول، چې پارلمان ته یې هېڅ ډول لاره نه درلوده او دا یې یو دیموکراتیک حرکت گاڼه، همدارنگه هغوی د ټولو مذهبي پروتستانتو څخه ځانونه لرې ساتل، کرومول دې نتیجې ته ورسېده؛ چې لومړی شارل د اعتماد وړ نه دی؛ ځکه نظامي ځواک د پارلمان څخه د پادشاه د محاکمې او جزا غوښتنه کړې

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۲۷۲ - ۲۷۳.

وه مګر پارلمان دا غوښتنه بې اهمیته وګڼله او د پارلمان استازو د شارل سره سوله وکړه چې دا کار د دې باعث شو چې ناراضه نظامیان کودتاه وکړي او اوږد مهاله پارلمان د ۵۰۰ غړو په درلودلو سره یې په ۱۶۴۰ ز کال کې په کار پیل وکړ په ۱۶۴۹ زکال کې یې شمیر ۱۵۰ تنو ته راټیټ کړای شو د دې تعداد څخه کرومول ۱۰۰ تنه نور هم د پارلمان څخه وویستل چې د پارلمان د غړو ټول شمېر د ۵۰ یا ۶۰ څخه زیات پاتې نه شو. دا پارلمان چې د ناقص پارلمان په نوم مشهور دی په ۱۹۴۹ ز کال یې د شارل د مرګ امر وکړ. دې پیښې په ټوله اروپا خپلې اغېزې پرځای پرېښودې.

د انګلیستان په ټولو ټاپوګانو کې (جمهوري دولت) اعلان شو دغه جمهوریت د کامنولت common Welt (مشترک المنافع) ونومول شو اګر که کرومول کوښښ کاوه چې په ښه ډول سره حکومت وکړي، امر یې وکړ ترڅو په مذهبي مسایلو کې د جوړښت څخه کار واخیستل شي مګر حالات همدارنګه سخت او ګډوډ ول. څرنګه چې دویم شارل د لومړي شارل زوی ډیرو خلکو په رسمیت پېژانده کرومول د ایرلینډ او سکاټلینډ پاڅون سخت وټکاوه د ستوارت کورنۍ چې د پخواني پادشاه څخه وه د شارل په وژل کېدو د سکاټلینډ خلک د پادشاه او سلطنتي کورنۍ په پلوۍ راپاڅېدل؛ مګر کرومول په ۱۶۵۰ ز کال کې هغوی ته د قهریه قوې په واسطه ماتې ورکړه او په ایرلینډ کې د پروتستانو او کالوین د پلویانو سخته غصه راوپاروله په زرګونو کاتولیک ووژل شوه، په دې وخت کې ټول پروتستانتانو د ایرلینډ په شمالي برخو کې سکونت کاوه او ټول د بومي اسکاټلینډیانو ځای ناستي شوي ول په دې توګه پروتستان په عمومي توګه په ټول هېواد کې خواره شوي ول او د کاتولیکانو ځایونه یې نیولي و.

کرومول د پارلمان سره ښکېل و دغه پارلمان په ۱۶۵۳ ز کال منحل شو او بل مجلس په کار پیل وکړ چې ډېر سخت او افراطي افکار یې درلودل او کرومول ته یې د (جمهوریت ساتونکي امیر) نوم ورکړ. له دې څخه وروسته نوموړي په یوازېتوب سره د مملکت اداره کوله او د یو ظالم پادشاه د واک څخه یې هم زیات واک ترلاسه کړ. د کرومول د حکومت وسیله په رعیت باندې تشکېلاتي و، چې د (حکومت تدبیر) په نوم یو لیکلی اساسي قانون و. نوموړي انګلستان د یو نظامي حکومت په واسطه اداره کاوه. کرومول په بهرني سیاست کې یو څه لاسته راوړنې

درلودې. د هسپانیې سره یې د جګړې اعلان وکړ او الجزایري سمندري غلو ته یې جزا ورکړه. د اروپا په وچه کې یې له پروتستانو څخه ملاتړ کاوه او ترڅنګ یې د سمندري ګرځېدنې د قانون له لارې په ۱۶۵۱ ز کال د انګلیس حمله د هالنډ د سیند د لارې پیل کړه او هالنډ یې مجبور کړ، چې په ۱۶۵۱ ز کال د بېړیو چلولو قرارداد لاسلیک کړي. دغه قانون کولای شو د هغه سیاسي اقداماتو یوه لړۍ وګڼو چې پر بنسټ یې د انګلیس د مستعمراتي امپراطورۍ بنسټ کېښودل شو.

د دې قانون اصلي هدف له هالنډیانو سره د راکړې او ورکړې مخنیوی و. په دې قانون کې راغلي ترڅو هغه مواد او مالونه چې د انګلستان او (د هغه هېواد پورې تړلو ځمکو ته واردېږي) باید د انګلیسي بېړیو په واسطه یې وړل او راوړل وشي. د انګلیس دغه سیاست د هالنډیانو اقتصادي ژوند ته په ښکاره ډول یو ګوانښ و. کرومول په ۱۶۵۸ زکال کې مړ شو، زوی یې (ریچارډ) پرځای کېناست؛ مګر هغه د پلار قوت او تدبیر نه درلود ویې نه شو کړای، چې د پارلمان او نظامي ځواک سره جوړ جاړی وکړي. کار یې پرېښود په دې وخت کې د حکومت چارې د پارلمان په لاس کې وې لاکن په دې لاره کې یې د نظامیانو او د سلطنت د طرفدارانو سره چې د انګلستان قوي سیاسي ګروپونه دي سروکار درلوده. په دې وخت کې سلطنت غوښتونکو په لندن حمله وکړه او د جنرال(مونګ) په امر نوی پارلمان انتخاب شو او د سلطنتي رژیم د استقرار لپاره یې فرمان صادر کړ.[1]

## د ستورات کورنۍ د پادشاهانو بیا واک ته رسېدل

په ۱۶۶۰ ز کال سربېره پر دې چې شارل واک ته ورسید، پارلمان او کلیسا هم سیاسي ډګر ته را ووتل، هر څه داسې قانوناً راوګرځېدل چې په ۱۶۴۰ ز کال یې شتون درلود. د دورې له تېرې دورې سره دا توپیر درلوده، چې دویم شارل (دویم چارلز) د( ۱۶۸۵-۱۶۶۰) ز کال پورې د انګلستان، سکاټلنډ او ایرلینډ د شهریار شادکام پادشاه په لقب یاد شو. د خپل پلار برخه لیک څخه په خبرېدو یې له احتیاط څخه کار اخیسته ترڅو پارلمان او هغه طبقو چې په

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۲۶۸-۲۷۷.

پارلمان کې یې استازي درلودل په عکس العمل ښودلو مجبور نه شي، ځکه د تېرو شل کلو راهیسې یې له بغاوتونو څخه تشویش درلوده او کوښښ یې کاوه چې د فرانسې له پادشاه سره مرسته وکړي. پادشاه زیاتره په دې فکر کې و، چې په یوازېتوب سره حکومت وکړي او د فرانسې سره نژدې اړیکې ولري، په دې وخت کې لرې او ډېرې مذهبي ستونزې موجودې وې د انګلستان پارلمان چې د سلطنت او انګلیکان مذهب غوښتونکی و د پورتینیانو په زورولو او شکنجه کولو یې شروع وکړه چې په دې کار سره یې د انګلیس او سکاټلنډ کلیساګانې سره متحدې کړې.

د سلطنت د بېرته راتګ په دوره کې پارلمان څو قوانین تصویب کړل، چې په نتیجه کې روانې بنې ته یې تغییر ورکړ. هغه محصول چې پخوا به د ځمکې اجاره دارانو پادشاه ته ورکول، لغوه کړل. په دې ترتیب سره یې د ځمکې مالکیت، د نوي یو ډول انفرادي مالکیت او د مالکانو طبقه یې د خپلو ځمکو اشراف وګڼله، پارلمان اعلان وکړ چې د سلطنت عواید د مالیاتو په بڼه اخلي او پارلمان اختیار لري هرڅومره چې وغواړي زیات او یا یې کم کړي. په دې برخه کې پارلمان ته نوی قدرت او دولت ته د انعطاف قابلیت ورکړل شو. په لنډه ډول سره د اشرافو طبقې خپل ملکیتونه د قید او شرط څخه خلاص کړل او مجبور شول چې د حکومت ملاتړ وکړي. د انګلیس د اشرافو طبقې په اروپا کې د هم شکلو طبقاتو په پرتله د دولت زیاته برخه لګښتونه په خپله غاړه واخېستل د دې طبقې مکافات دا ول، چې تقریباً یوه نیمه پیړۍ یې دولت په ځان پورې تړلې وساته او بل چاته یې په دې برخه کې د لاسوهنې وخت نه ورکاوه. د ځمکو مالکانو په دې وخت کې د ملت چارې د پارلمان له لارې کنترولولې.

دویم شارل کاتولیک مذهب ته میلان درلوده او د شخصیت په لحاظ یې هم د ۱۴ لویي ستاینه کوله، نوموړي غوښتل ترهغه ځایه چې امکان لري په انګلستان کې د ۱۴ لویي څخه پیروي وکړي، دویم چارلز چې لا یې هم له پارلمان سره اړیکې ښې نه وې په پټه توګه یې له څوارلسم لوی سره خبرې اترې پیل کړې چې په پایله کې یې په ۱۶۷۰ ز کال پټ تړون د دوور(Dover) لاسلیک کړ، د نوموړي تړون پر بنسټ دویم چارلز ژمنه وکړه کله چې ۱۴ لویي د هالنډیانو سره جګړه کې اخته شو؛ نو شارل به هم د ۱۴ لویي د ملاتړ لپاره ورځي او ۱۴

لوېږې هم وعده وکړه چې د جګړې په کلونو کې به هر کال درې ملیونه لیورو د انګلستان پادشاه(شارل) سره مرسته کوي او که چېرې دویم چارلز کاتولیک مذهب په خپله ګټه وګاڼه او ورڅخه یې پیروي وکړه نو له څوارلسم لوی څخه به دوه میلیونه نورې لیورې هم ترلاسه کړي.

په داسې حال کې چې د انګلستان ملت د تړون له موادو څخه خبر نه و اما معلومه وه چې د شارل سیاست د فرانسویانو او کاتولیک مذهب د غوښتنو پر بنسټ ولاړ دی، دویم جیمز چې د دویم چارلز وارث و په ښکاره یې اعلان وکړ چې چې د کاتولیک مذهب اوښتی دی، همدار راز چارلز فرمان ورکړ چې د هغه قوانینو تطبیق دې ودرول شي کوم چې د افراطي مذهبي مسایلو په اړه نافذ شوي او اعلان یې وکړ چې دی خوښه ګڼي په مذهبي مسایلو کې خلک په خپل منځ کې د جدیت پرځای له تساهل څخه کار واخلي. خلکو له دې څخه وېره لرله چې شاه په انګلستان کې د کاتولیک مذهب رواجولو ته زمینه برابروي چې دغه تشویش د خلکو بې ځایه هم نه وو، په ۱۶۷۳ ز کال پارلمان د ازمایښتي قانون (Test Acts) په نوم یو قانون تصویب کړ چې په ټولو خلکو، دندو او مذهبي چارو باندې د اجراء وړ وو. دغه ازمایښتي قانون یو ځل بیا پر کاتولیکانو محدودیتونه وضعه کړل، چې کاتولیک مذهب پیروان نه شي کولی په دولتي دندو او بحري ځواکونو کې دنده اجراء کړي، چې دغه قانون بیا تر ۱۸۲۸ ز کال پورې د انګلستان د قوانینو برخه وه.

دا چې د دویم چارلز سیاستونه د فرانسې او کاتولیک مذهب تر ډېر اغېز لاندې ول؛ نو د خلکو د نفرت باعث شو، ځکه عوام خلک د فرانسویانو څخه راضي نه ول او هم انګلیسي سوداګرو چې ورځ تر ورځې یې ځانونه د رقیبانو سره په مقابله کې ډېر قوي او قدرت مند احساسول. په دې وخت کې جیمز د شارل ورور قانوناً دسلطنت وارث و او نوموړي خپل مذهب په پروتستانت بدل کړی و؛ نو په پارلمان کې یو نوی قدرت مند نهضت رامنځته شو او هڅه یې کوله ترڅو جیمز ونه شي کړای چې د شارل ځای ناستی شي. خصوصاً هغه خلکو چې د سلطان څخه یې زیات نفرت درلود. د فرانسویانو او کاتولیکانو مخالفینو ته د ویګز (Whigs)

د ډلې لقب ورکړی شو، عوامو او د پادشاه پلویان د (Tories) توري په نوم یاد شول. د ویګز ډله چې د لندن د تجارانو او متوسطې طبقې د حمایت څخه برخورداره وه او د اشرافو د ځواک زیاته برخه یې د هغوی له لورې قرضداره وه، په ځانګړي توګه د قدرت لرونکو اعیانو یوه ډله چې د پاچا د کمزورۍ انتظار یې کاوه ترڅو د هېواد د چارو په اداره کولو کې د ځان لپاره زیاته برخه تر لاسه کړي، د پادشاه پلویانو ډلې یا (توري) چې اهمیت یې د اشرافو او نجیب زاده ګانو څخه کم و؛ خو د کلیسا او شاه پر وړاندې یې د وفادارۍ حس پیاوړی و، وروسته دا دوه ډلې د دوو ګوندونو (د توري او ویګ) په نامه د انګلستان په ټولنه کې د تل لپاره پاتې شو.[۱]

## د ۱۶۸۸ ز کال اوښتون (انقلاب)

له دویم چارلز څخه وروسته د ویګ ډلې د مخالفت سره سره په ۱۶۸۵ز کال دویم جیمز د انګلیس سلطنت ته ورسېد. دویم جیمز د ۱۶۸۵ څخه تر ۱۶۸۸ ز کال پورې د انګلستان، سکاټلنډ او ایرلنډ پادشاه و. ډېر وخت لا نه و تېر شوی چې توریان یې هم خپل دښمنان کړل، ځکه د توریان په ډېر جدیت سره د انګلستان د مذهب انګلیکان پیروان ول. دویم جېمز نافذو قوانینو ته هېڅ پاملرنه ونه کړه، بلکې دعوا یې وکړه په هر ډول یې چې خوښه وي کولای شي د قانون د نفوذ مخه ونیسي. جیمز د کاتولیکانو پرضد جوړ شویو قوانینو ته پاملرنه ونه کړه او د کاتولیک مذهب زیات خلک یې په مهمو او لوړو دولتي دندو چې سرشاره عواید یې لرل، وګمارل. دویم جیمز د خپل ورور په څېر وړاندیز وکړ چې د ټولو مذهبونو پیروان دې یو د بل سره په کارونو کې تساهل وکړي او پروتستانتان او کاتولیکان دې په ټولنیزو امورو کې سره شریک وي د دې پشنهاد څخه د دویم جیمز هدف له دین څخه د سیاست بیلتون و او یا یې هدف په غیرمستقیم ډول د کاتولیکانو ملاتړ و. د نوموړي پر وړاندې په پارلمان کې مخالفتونه رامنځته شول او لا چاره شو د خپل نیکه لومړي جېمز په څېر یې اعلان وکړ چې شاه کولای شي د خپلې خوښې وړ قوانین وضعه او یا یې لغوه کړي، چې د همدغه دریځ پر وړاندې ویګ او توري دواړه سره یو شول. له هغه ځایه چې انګلستان په عمومي توګه د

---

[۱]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۲۷۹ – ۲۸۲.

فرانسې ضد و مګر د فرانسې دوستی ته د خپلو پادشاهانو د تمایل څخه خوشحاله نه وه، په نتیجه کې د دویم جیمز او مخالفینو ترمنځ چې کومه جګړه رامنځته شوه جیمز ماتې وخوړه او فرانسې ته وتښتید. د جمیز لور مري چې د ویلیام اورانژ مېرمن وه او پروتستانت مذهبه دواړه یوځای په ۱۶۹۰ ز کال د توري او ویګز د بلنلیک پر بنسټ راغلل او د سکاټلیند او انګلیستان د پادشاه په توګه یې اعلان وکړ. ویلیام اورانژ له اصله هالنډی وو او موخه یې هالنډ ته خلاصی ورکول و، له همدې امله نوموړي له انګلستان سره ځانګړې علاقه درلوده ترڅو د انګلستان د قواو له توازن څخه چې د فرانسې پر وړاندې یې لري د خپل هېواد په ګټه کار واخلي او په دې توګه د څوارلسم لوی سیاستونه له ماتې سره مخ کړي. نو د فرانسې په خلاف د اتحادیې غړی شو او په پوره اخلاص سره یې د فرانسې مقابله پیل کړه.

وروسته له دې یې په قوانینو کې تغییرات راوستل، مالیاتي نظام یې اصلاح کړ، پر کاتولیک یې محدودیتونه وضع کړل چې هېڅ کاتولیک نه شي کولای د انګلستان شاه وټاکل شي. په ۱۷۰۷ ز کال لویه بریتانیه تأسیس شوه، سکاټلنډیانو خپله قضایي طریقه وساتله او خپل مذهب یې (پرس بی تی ریان) اعلان کړ اما دولت او پارلمان یې د انګلستان له دولت سره یوځای شو چې له همدې وروسته ورته بریتیش (British) ویل کېږي چې په سکاټلنډیانو او او انګلستان دواړو باندې یې اطلاق کېده.

په دې ځای کې تر ټولو ډېر زیان ایرلینډ ته ورسید ځکه هغه د ستورات کورنی او د فرانسویانو د دسېسو او توطیو په مرکز بدل شو، پرته له دې چې پر هغوی باندې پردی مذهب وتپل شو، د هغوی زیاتې ځمکې انګلیسانو ونیولې. کاتولیک کشیشان یې له هغې ځایه تبعید او پیروان یې له رایه ورکولو او په پارلمان کې له غړیتوب څخه محروم کړل. چې دغې چارې یوې پیړۍ دوام وکړ. په پایله کې ایرلینډ د اروپا د نورو ملتونو په نسبت تر ټولو زیات وځوریده.

د ۱۶۸۸ ز کال پېښې د انګلستان په تاریخ کې د مجلل انقلاب په نوم شهرت لري. خلک په دې عقیده وو چې انقلاب د پارلماني اصولو او د هغې د محکومیت په نظر کې نیولو سره د هېڅ ډول شک او تردید ځای پرې نښود اکثره خلک مجلل انقلاب د انګلستان د مشروطه

مستقل حکومت د تکامل او پیشرفت پایله ګڼي، مګر ځینې نور لیکوالان بیا ادعا کوي چې نوموړی انقلاب یو طبقاتي خوځښت وو چې انګیزه یې اشرافیان ول انقلاب یې رامنځته کړ او پارلمان هم په زړورتیا سره خپل ټول حقوق د پادشاه په مقابل کې وساتل.[1]

## فرانسه په اوولسمه زیږدیزه پیړۍ کې

په اوولسمه میلادي پیړۍ کې فرانسه یو له تر ټولو غښتلو هېوادونو څخه وه چې هېڅ اروپایي هېواد په یوازېتوب سره نه شو کولای د فرانسې پر وړاندې مقاومت وکړي. همدار راز ځینو مهمو راتلونکو پېښو هم د فرانسې پورې اړه لرله لکه د هسپانیې راتلونکې، د هالنډ خپلواکې او په انګلستان کې د پارلمان انقلاب.

فرانسې د څوارلسم لوی د پادشاهۍ پر مهال (۱۶۲۳ - ۱۷۱۵) ز کلونو کې ډېر نفوس او پراخه قلمرو درلوده. په ۱۷۰۰ ز کال فرانسې ۲۱ میلیونه نفوس درلوده چې د انګلستان د نفوس څلور برابره او د هسپانیې د نفوس دوه برابره کېده، د فرانسې خلک هم د اروپا په پرتله کارکوونکي او زحمت کش ول، پراخه او حاصلخېزه ځمکې یې لرلې، ګڼ ښارونه یې لرل چې سوداګرۍ پکې رواج درلود، په اوولسمه پیړۍ کې فرانسې د لرې سیمو سره لکه هندوستان سره سوداګري پیل کړه، په کاناډا کې یې ودانۍ جوړې کړې، لویو بحري لارو ته یې لاس رسی وموند چې په دې توګه یې خپلې سوداګرۍ ته د مدیترانې ختېځو څنډو پورې پراختیا ورکړه، او د اروپا یو له بحري ځواک لرونکو هېوادونو څخه وګڼل شو.

فرانسویانو په اوولسمه پیړۍ کې له پورته پرمختګونو علاوه په نورو برخو کې هم د پام وړ لاسته راوړنې درلودې لکه معماري، نقاشي، ادبیات او طب. په دې توګه ګڼ عوامل ول، چې د څوارلسم لوی سره یې مرسته وکړه ترڅو پر اروپا خپل غوره والی او ځواک ومني.[2]

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۲۸۸-۲۸۳.
[2]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۲۹۰-۲۸۹.

## څوارلسم لوی

څوارلسم لوَی په ۱٦۴۳ز کال په داسې حال کې چې پنځه کلن و، سلطنت ته ورسید. د نوموړي پالنه او قیمومیت د هغه د مور او ایټالیوی کار دینال مازران په غاړه وه او په ۱٦٦۱ ز کال کې چې کله ۲۳ کلن وه په خپله یې د حکومت چارې په لاس کې ونیولې او د مرګ تر وخته ۱۷۱۵ ز کال پورې یې۷۲ کاله سلطنت وکړ. د څوارلسم لویې سلطنت تش په نوم سلطنت نه و، بلکې هغې په اصلي توګه د فرانسې د دولت چارې په لاس کې وې او په نتیجه کې یې فرانسه د اروپا د قدرت مندو هېوادونو په قطار کې ودروله، نوموړي چې کوم سیاست غوره کړی و او کوم سیاست چې نورو د ده په مقابل کې غوره کړی و په ټولو عمومي چارو یې اغېزه کړې وه.[1] د نوموړي د حکومت د اداره کولو لاره، د جګړو او دیپلوماسۍ لاره وه چې د نورو شاهانو لپاره یو مثال وګرځېده. څوارلسم لویې چې د دویم شارل د خور سره یې واده وکړ. قصد یې درلوده چې د هسپانیې د کمزورې وضعیت څخه ګټه واخلي، د نوموړي د پراختیا غوښتنې سیاست دوه لارې درلودې یو دا چې د فرا نسې پولو ته د ختیځ له لوري لویدیځ لوري ته پرا ختیا ورکړي او د هسپانیه د لاس لاندې سېمې په هالینډ(اوسني بلژیک کې) د فرانش کونتې، بورګاندي ازاد ایالات او سویس لاندې کړي دغه ډول سیاست د دې تقاضا کوله چې د روم مقدسه امپراطوري مخکې له مخکې ټوټه ټوټه کړي، بل دا چې د وخت په تېرېدو سره څرګندېږي هر هغه څه چې هسپانیه ته په میراث پاتې کېږي هغه ځان ته وساتي. د ځمکو په یوځای کولو او د هسپانیې د سیمو په نیولو سره فرانسه د اروپا او امریکا په لویو وچو او سمندرونو کې د نړۍ د ټولو هېوادو څخه قوي او قدرت منده کړه.[2]

څوارلسم لویې د خپلې ستراتیژي د لاسته راوړلو لپاره د اروپا د کوچنیو او متوسطو هېوادو سره دسیسو او توطیو په جوړولو پیل وکړ هغه د المان د امیرانو یوه برخه او یو څه وخت د انګلیس پادشاهان خپل نوکران کړل. مذهبي عقایدو ته له پاملرنې پرته یې د هالینډ جمهوري غوښتونکي د خپلو حکمرانانو پرضد او د انګلیس د سلطنت طرفداران یې د پارلماني رقیبانو

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ۲۴۷-۲۴۸.

[2]. عباسقلي غفاري فرد، تاریخ اروپا. مخ۲۸۸.

پرضد قیام ته وهڅول، ځکه هغه پوهېده چې په هالینډ کې جمهوري غوښتونکي او په انګلستان کې د سلطنت طرفداران بهرنیو مرستو ته اړتیا لري او امکان یې درلود چې دغه طبقې د نوموړي د غوښتنې سره سم عمل وکړي.

که څېرې څوارلسم لویې پخپلو پروګرامونو کې بریالی شوی وای، نو د هغې د نړیوالې پادشاهۍ د جوړولو څخه د اروپا د ټولو سیاستمدارانو ویره حتمي او بې ځایه نه وه. بیا هغه لاره چې د نړیوالې پادشاهي جوړولو مخنیوي لپاره غوره شوې وه، هغه د قواو توازن ؤو، د دغه ډول پادشاهۍ جوړول په اطریش او هسپانیه کې د هابسبورګ کورنۍ په لاس تقریباً ممکن وه. هغه څه چې د هابسبورګ کورنۍ د سیاستونو مخه یې ونیوله هغه د قواو توازن و، چې په سرکې یې فرانسه واقع وه او د هغې د نتایجو څخه دیرش کلنې جګړې او د ۱۶۴۸ ز کال د وستفالیا تړون دی چې د لویو بریالیتوبونو څخه شمیرل کېږي. مګر اوس هم د فرانسې له لورې د نړیوالې پادشاهۍ خطر احساسیده نو اروپایي هېوادونه په دې فکر کې ول چې د فرانسې پرضد د متوازن قواو په جوړولو بوخت شي.

هغه حکومتي طریقه چې موجوده وه، ازادۍ ته یې چندان احترام نه درلود، په فرانسه کې سیاسي ازادي داسې رواج درلود چې د منځنیو پیړیو څخه پاتې شوي و او فرانسه اصولاً د هماغه فیوډالي ازادۍ خاونده وه چې په ټولو اروپایي هېوادونو کې یې شتون درلود. یو د اتاژنرال مجلس شتون درلود چې ۱۶۱۵ ز کال راپدېخوا یې غونډه نه وه کړې چې لا هم په قانوني ډول له منځه تللی نه و.

د نوموړي د حکومت په پیل کې د فرانسې د حکومت ټول وخت د دیرش کلنو جګړو په ارامولو تېر شو او په همدې وخت کې یې لوی بریالیتوبونه ترلاسه کړل، د وستفالي د تړون په بنسټ یې د الزاس سیمه د فرانسې د دولت پورې وتړل شوه لاکن د دومره بریالیتوبونو سره د مازران د حکومت څخه د خلکو نارضایت په زیاتوالي و او د درنو مالیاتو څخه یې شکایت کاوه.

په دې وخت کې د سلطنت او د پاریس د پارلمان مخالفتونه پیل شو. د پاریس پارلمان په ۱۶۴۸ز کال کې د خپل حق څخه په ګټه اخیستو سره تأکید کاوه چې د فرمانونو یوه برخه غیرقانوني وګڼي غالباً نجباء او لویان هم د حکومت پرضد د مخالفینو په قطار کې ودرېدل او

په ټوله فرانسه کې داخلي جګړې پیل شوې د دې جګړو خطر د دې لورې و، چې هسپانې لا د وستفالیا تړون لاسلیک کړی نه و، اکثره نجباء او ځینې نور خلک او د فرانسې مخالفین هسپانیې ته لاړل په داسې حال کې چې فرانسه د هسپانیې سره په جګړه کې اخته وه په نتیجه کې سرکشو اشرافو د هسپانویانو د سربازانو څخه د مرستې غوښتنه وکړه مګر تردې وخته پورې د بورژوازې د طبقې استازو په پارلمان کې د سرکشو اشرافو د ملاتړ څخه لاس اخیستی و دغه بلواګانې هېڅ وخت کامیابې نه شوې ځکه لومړی د بورژوازي طبقې او اشرافو یو د بل سره اتحاد نه کاوه، دوهم دا چې اشرافو د هغه هېواد په مرسته (چې فرانسه ورسره په جګړه اخته وه) وفاداری او تابعیت د ډېرو فرانسویانو چې سخت په غصه ول ملاتړ د لاسه ورکړ، دریم دا چې فروند[1] بلواکوونکي یا فروندیان چې وروسته له دې پارلمان یې د ملاتړ څخه لاس واخیسته، هېڅ ډول کوم منظم پروګرام نه درلوده د هغوی هدف یوازې د ځان لپاره د وظایفو لاسته راوړل او د کاردینال مازارن د حکومت ړنګول ول، چې د عامه خلکو د پام وړ نه وو، په دوو جګړو کې چې واقع شوې اخري مقاومت و چې نجباوو د سلطنت د مقام پرضد وکړ.
مګر د هسپانیې سره جګړې څو کاله نور هم دوام وکړ د فرانسې قواوې په بلژیک ایټالیا او کاتالونې کې مخکې ولاړې او هسپانیه چې ډېره ستړې او ستومانه شوې وه په ۱۶۵۹ ز کال کې د پیرنه د تړون لاسلیک سره موافقه وکړه.
په ۱۶۶۱ ز کال کې مازران مړ شو چې د نوموړي د مرګ څخه وروسته څوارلسم لویې مطلقه سلطنت جوړ کړ د اطریش او هسپانیې برتري یې له منځه یوړه. نوموړی یو باتدبیره خیرغوښتونکی او کارګر پادشاه و، غوښتل یې چې ټول خلک د هغه اطاعت وکړي لکه کله یې چې مطلقه سلطنت جوړ کړ خپلو وزیرانو ته یې داسې وویل: تر نن ورځې پورې مې غوښتل چې حکومتي چارې نور پرمخ بوځي لاکن د نن څخه وروسته زه خپله د خپل ځان صدراعظم یم ستاسو څخه غواړم او تاسو ته امر کوم چې هېڅ چاره زما د امر څخه پرته مهر او زما د خوښې پرته لاسلیک نه کړئ د هغې د حکومت دوره چې د مارچ ۱۶۱۶ ز کال څخه پېل تر

---

[1]. فروند هغه بغاوتونه او جګړې دي چې د ویستفالیا د سولې له تړون څخه وروسته د شاه او نجباوو ترمنځ د سلطنت د مقام پر سر رامنځته شوی وو.

همیشه مطلقه سلطنت حاکم ؤو د ۱۴ لویي تر ټولو ډسمبر ۱۷۱۵ ز کال پورې یې دوام درلود. له دې څخه مخکې مهم اساسي کار دا و، چې نظامې قوت یې د خپل کنترول لاندې راوستلو. له دې څخه مخکې د مسلح قواو درلودل تقریبا یو خصوصي کار و او اشرافو په نظامي قواو کې زیات نفوس درلودلو. چې څوارلسم لویي په دوره کې دا مسئله ختمه شوه څوارلسم لویي جګړې حکومتي چارې وګنډلې او داسې کار یې وکړ چې د فرانسې ټول خلک او مسلح کسان فقط د هغه د خدمت لپاره توره وهي دغه کار د فرانسې جګړه ییز قدرت د نورو هېوادو پرضد زیات کړ او په فرانسه کې د سولې او نظم د منځ ته راتګ باعث شو.

څوارلسم لویي د دولتي مقاماتو تصدۍ ګانو ته ترجیح ورکوله ترڅو د بورژوازي طبقې د افرادو څخه ګټه واخلي ځکه هغوی د منصب د دوام لپاره په هغې ولاړ و او د اشرافو په ضد یې د خپل سیاسي نفوس هیله نه درلوده نوموړي هېڅکله د عمومي طبقاتو مجلس (اتاژنرال) احضار نه کړ. د محل د خلکو او اشرافو د فشار له امله یې ځینې ولایاتو ته د کار اجازه ورکړه او د پارلمان استقلال یې مؤقتاً له منځه یوړ. همدارنګه څلورم هانري هم امر ورکړ چې د هغه فرمانونه قبول کړي همدارنګه څوارلسم لویې په کارپوه او امتحان شوي کسان په کار وټاکل ډېر مشهور یې کلبر و، چې د مالیې وزیر یې وټاکه. نوموړي د فرانسې د سازمانونو په اصلاح، د مالیاتو په ښه والي او د رشوت خورو په تعقیب کې یې ډېر کوښښ وکړ هغه د هېواد د اداري په مختلفو ساحو کې په فعالیت شروع وکړ په فرانسه کې یې نوې صنایع رواج کړل، د اداري سیستم یې اصلاح کړ، ارتباطي لارو پراختیا ومونده، دوه کمپنۍ (ختیځې او غربي هند) تجارتي کمپنۍ منځ ته راغلې. د ګمرکي تعرفو بیه لوړه شوه، د جګړې او تجارتي بیړیو شمیر زیات شو، د کاناډا، انتیل ټاپوګان او ماداګسکار مستعمراتو د ښې اداري لپاره لازمه پاملرنه وشوه.

د څوارلسم لویې په دوره کې د هېواد د چارو لپاره شوراګانې رامنځ ته شوې دولتي یا عالي شوراګانې په مهمو او په ځانګړو کارونو کې لکه د هېواد بهرنیو اړیکو، سولې او جګړو او د نورو هیوادونو سره یې مذاکرات کول سرته رسول. د محکمو دیوان د هېواد تر ټولو لویه اداري او

قضايي محکمه وه او پادشاه به د حکومت اصلي اشخاص د محکمو ديوان د غړو له منځ څخه ټاکل.

دخوارلسم لوی د سلطنت په وخت کې د اروپا د لويو هېوادونو په نسبت په فرانسه کې د مذهب د پيروانو په اړه زيات تساهل شتون درلوده. (هوګونوتيانو) د (ريشيلو) په وخت کې چې کوم غوره سياسي مقام درلوده د لاسه يې ورکړ، مګر په ۱۵۹۸ ز کال يې د (نانت) د فرمان پواسطه بيا نسبتاً په امن او راحت کې ژوند کاوه. د څوارلسم لوی په دوره کې د پادشاه سياست تغيير وکړ هغه بد حالات چې په انګلستان کې د پارلمان د بريااليتوب پواسطه په کاتوليکانو باندې راغلي و، کولی شو چې داسې نتيجه تري واخلو چې د پروتستانتانو سرنوشت په فرانسه کې ښه نه و هغوی د کاتوليک اسقفانو تر اغيزې لاندې راغلي ول چې د پروتستانتو لپاره کاتوليک مذهب ته د نوي دعوت غوښتونکي ول کاتوليک مذهب ته د هوګونتيانو جبري ګرځېدل په منظم ډول شروع شوي ول هره ورځ د پروتستانتانو وضعيت د خرابيدو په لور روان و. په ۱٦۸۵ ز کال کې څوارلسم لويې د نانت فرمان لغوه کړ، ګڼ شمير پروتستانتيانو فرانسه ترک کړه هاليند، المان او امريکا ته يې پناه يوړه، د نانت د فرمان د لغوه کېدو څخه وروسته فرانسې حکومت تر يوې پېړۍ پورې پروتستانتيانو په مقابل کې مذهبي اسانتياوي له منځه يوړې.

څوارلسم لوی په خپله دوره کې کوښښ وکړ، چې د اشرافو فشار په د هقانانو کم کړي او زيات کوښښ يې وکړ ترڅو دهقانان د شاهي محکمو تر واک لاندې راولي نه د فيوډالانو د محکمو لاندې، په دې خاطر د فرانسې دهقانان د سرواژ د بند څخه چې په ختيځه اروپا کې د پرمختګ په حال کې و، خلاص شول. په همدې خاطر څوارلسم لوی په فرانسه کې د اعيانو طبقې ته د برابرۍ تر اندازې پورې زيات امتيازات ورکړل په همدې لحاظ نوموړی د خلکو د پاملرنې او علاقې وړ هم و. هغه څه چې د څوارلسم لوی په اخري کلونو کې د فرانسې زيات شمير خلک د هغه مخالف کړل، هغه د نوموړي هغه زور او فشار و چې د اوږدو جګړو په موده کې يې پر خلکو تحميل کړی و. د څوارلسم لوی د سلطنت په ټوله دوره کې فرانسې د اروپايي دولتونو په وړاندې لومړی مقام درلود او د اروپايي دولتونو په منځ کې قوي او د قدرت خاوند او

همدارنګه د عمومي سياست مرکز ګڼل کېده. هر وخت چې د فرانسې له هېواد څخه د باندې د شاه له کليمې څخه يادونه کېدله ټول پوهېده، چې د فرانسې د فرمانروايي څخه چې په تمامه معنی پادشاه دی، خبرې کېږي. په اولسمه پيړۍ کې د مطلقه حکومت فکر او نظر دا وه چې د هېواد په داخل کې قانون او واک د قانوني پادشاه په لاس کې وي. د څوارلسم لويي په دوره کې مشهور فيلسوف (بوسيه) د مسيحيت د پخوانيو تصميمونو څخه دا مضمون رانقل کړی چې ټول واکونه د الله تعالی څخه الهام اخلي او ټول هغه خلک چې د واک خاوندان دي د الله تعالی په مقابل کې مسئول دي هغه په دې عقيده و چې پادشاهان په سياسي چارو کې د الله تعالی نمايندګان دي د بوسيه له نظره قدرت مطلق دی خو بايد خودسرانه نه وي او بايد د عدالت او انصاف د موازينو مطابق عمل وشي. مطلق په دې خاطر دی چې د هېواد په داخل کې د پارلمانونو د مجلسونو او نورو عناصرو د احکامو تابع نه وي په دې ترتيب د پادشاه اراده قانوناً ازاده ده او هميشه د الله تعالی د لوړ قانون سره بايد برابر وي دا نظريه د پادشاهانو لپاره يو زيری و په هغه حالت کې دا نظريه په فرانسه کې ټولو ته د منلو وړ وه.

د څوارلسم لوی په وخت کې د ليکونکو اثار د يو بل ډول اجتماعي شرايطو تر اغېز لاندې ول ټول شيان به يې سانسور کول، ظاهراً سانسور د زيانمنو عقايدو څخه د خلکو د ساتنې په منظور رامنځ ته شوی و، خو په انګلستان کې دومره کلک سانسور شتون نه درلود او نورو هيوادو د هسپانيې په شمول کلک سانسور درلود همدارنګه د نوښتګرو ليکوالانو شمېر هم ډېر کم و. په فرانسه کې سانسور ډېر کلک و؛ مګر له ۱۷۵۰ ز کال څخه وروسته ليکونکي له دې کبله دومره تر خارنې لاندې نه ول. په هر ترتيب سانسور د يوې خوا د فرانسې په فلسفې او ادبياتو منفي اغېزه پرخپل ځای پرېښوده په دې معنی چې ليکونکو زړونه يخ کړل ځکه چې ليکونکو په قانوني توګه پر دين يا حکومت د نيوکې حق نه درلود په دې ترتيب په عمومي چارو باندې يې نيوکې کولې هېڅا نه غوښتل د اجازه لرونکو اثارو په ويلو اکتفاء وکړي او همدا چې فرانسويانو به واورېدل چې يو کتاب د کليسا د غصې او د پارلمان په اعتراض کې واقع شوی دی د هغې د دويم ځل مطالعې او بحث لپاره به يې نور ارام نه درلوده.

پاریس د نویو، روښانه افکارو او نوښتونو مرکز و، د فیلسوفانو د جدي ترینو مکاتبو زیات اثار به په پاریس کې خپرېدل د هغې لـه جملـې څخـه دایـرة المعـارف (Encyclopedia)چـې لـوی کتاب و په هغې کې فني، علمي او تاریخي اطلاعات اجمالاً ځای پرځای شوي ول، چـې د هغـه عصر د علمي او عقلي مکاتبو د عقایدو یو لنډیز و. دا لومړنی کتـاب و چـې د علـم او ادب ګـڼ شمېر لویو پوهانو د هغې په تالیف کې مرسته کړې وه.[1]

## د څوارلسم لوی جګړې

### د اوترخت سوله

په دې وخت کې د هالینډ او فرانسې ترمنځ د درې (مذهبي، تجـارتي او اقتصـادي) مسـایلو په اړه اختلافات رامنځ ته شوی و، څرنګه چې هالنډیان د څوارلسـم لـوی د قـدرت د پراخـوالي څخه په ویره کې ول؛ نو غوښتل یې چې هسپانوي بلژیک چـې د څوارلسـم لـوی مـورد نظـر و، ونیسي جګړه په ۱۶۷۲ ز کال شروع شوه. فرانسویان د (رن ) د سیند څه تېر شول. پـه هالنـډ باندې د فرانسـې حملـې ټولـه اروپـا پـه ویـره کـې واچولـه او د فرانسـې پرضـد یـوه اتحادیـه د هسپانی ډنمارک او الماني هېوادنو ترمنځ جوړ شوه. انګلیس او سویډن د فرانسـې پلویـان ول، له دې څخه وروسته جګړې عمومي بڼه غوره کړه، بلژیک، المان، ایټالیا، پیرینه او سـیندونه د جګړې په میدان تبدیل شو. فرانسویانو (کنته فرانش) او د بلژیک یوه برخه ونیولـه خـو پـه دې جګړه کې فرانسویانو بېړۍ په سیندونو کې بریالی شوې او جګړه فرانسویانو وګټله. پـه ۱۶۷۸ ز کال د (نیمګن)په نوم د سولې یوه عـهدنامه لاسلیک شوه، فرانسې د هالنډ په اړه صرف نظـر وکړ. مګر د (کنته فرانش) په اړه چې غني ایالات و او د جنـوب لخـوا د الـزاس سره نـژدې و، لـه هسپانې څه یې ونیوه او د فرانسې قدرت د سویس تر پولو ورسېده. همدارنګه د فلاندر ښار د فرانسې په واسطه ونیول شو. څوارلسم لوی ډنمارک او براندنبورګ مجبور کړل، هغه برخې چې د سویس څخه یې نیولې دي، بېرته یې نوموړي دولت ته ورکړي. دې سولې د فرانسـې بهـتري

---

[1] . رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۲۹۱ - ۳۰۲.

او په څوارلسم لوی یې د بهرنیو دولتونو بې باوري او کینه راوپاروله. هسپانیې او سویډن کمزورتیا څرګنده کړه او په څوارلسم لوی یې د بهرنیو او قوت، اما د هسپانیې او سویډن کمزورتیا څرګنده کړه او په څوارلسم لوی یې د بهرنیو دولتونو بې باوري او کینه راوپاروله.

په ۱۶۷۹ ز کال څوارلسم لوی د روم د مقدسې امپراتورۍ د پولو څه د الزاس او لورون ښار په ۱۶۸۱ ز کال فرانسوي عسکرو د استرازبورګ ښار ونیوه. دا د روم ته ننوت. همدارنګه په ۱۶۸۱ ز کال فرانسوي عسکرو د استرازبورګ ښار ونیوه. دا د روم امپراتورۍ په داخل کې یو ازاد ښار و، له بلې خوا څوارلسم لوی د روم امپراتورۍ له ناتوانۍ څه ګټه پورته کړه او د (رن ) د ځینو مذهبي ایالاتو امیرنو سره یې مرسته کوله په دې ترتیب د روم امپراتوري په دوه ډلو (د فرانسې طرفدار او مخالیفینو) وویشل شوه. مجاریان هم د څوارلسم لوی په تشویق د هابسبورګ کورنۍ پر ضد راپاڅېدل، په دې وخت ۱۶۸۳ ز کال کې عثماني ترکانو د وین ښار محاصره کړ اګر که څوارلسم لوی د عثماني ترکانو سره مرسته ونه کړه؛ مګر د ترکانو پرضد چې کوم جهاد اعلان شوی و پر څرګند ډول یې طرفداري ونه کړه. د المان لومړي امپراتور (لیوپلد) چې دا وضعیت لیدلو په ویره کې شو د کاتولیکانو څواکمن دولتونه یې د پروتستانتانو او ځان سره د فرانسې پرضد متحد کړل او په ۱۶۸۶ ز کال یې د اګزبورګ اتحادیه جوړه کړه. دا اتحادیه د روم امپراتورۍ، هسپانیې او سویډن د پاچاهانو، باویر د امیرانو، ساکسوني، پالاتین او د هالند جمهوري غوښتونکو څخه جوړه شوه چې انګلیسیانو هم د دې اتحادیې ملاتړ کاوه. اګر که فرانسه په لومړیو کې په جګړه کې بریالۍ وه مګر نه یې شو کولی، چې د دې ټولو دښمنانو سره مقابله وکړي له بلې خوا د هالند او انګلیس مشترک څواک سره په سمندر کې جګړه ډېره سخته وه وروسته په ۱۶۹۷ ز کال د دواړو طرفونو ترمنځ د (ریسویک )د سولې په نوم تړون په هالند کې لاسلیک شو. د رېسویک سولې اوږدې جګړې ته د پای ټکی کېښود. موجودې ستونزې، چې په لومړیو کې څنګه وې په خپل حال پاتې شوې، په ټولو شخړو او مذاکراتو کې د اوګزبورګ د متفقینو تدبیر او د څوارلسم لوی مانورونه او حتی د فرانسې پرمختګ د ختیځ په لورې په یو یا څو سیمو کې نه و، بلکې د هسپانیا د امپراتورۍ لپاره د نهایي ستونزې ټاکل ول.[1]

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۳۰۵ – ۳۰۷.

## د هسپانیې د ځای ناستې جګړې

د ۱۷۰۲ ز کال څخه تر ۱۷۱۳ ز کال پورې په هسپانه کې د نیابتي جګړو ادامه درلوده، د دیرش کلنو جګړو څخه یې ورانۍ لږې وې ځکه اوس د طرفینو فوځیان په ډېر نظم او ترتیب سره یو بل سره په جګړو اخته دي په دې جګړو کې د پخوا په څېر عادي خلکو ونډه نه درلوده جګړه د هغو عسکرو کار و چې دنده یې یواځې جګړه وه، د لویو جګړو څخه د هسپانې د جانشینۍ جګړه لومړۍ جګړه وه، چې په هغې کې مذهب دومره اهمیت نه درلود. دوه مهمو اشخاصو چې د هسپانې د میراث هیله یې درلوده د فرانسې پاچا څوارلسم لوی او بل د مقدس روم امپراتور و. چې هریو یې د هسپانیې د شاه دوهم شارل د خویندو سره نکاح کړې وه، په میراث کې یې ځانونه مستحق ګڼل او د هسپانې د تاج او تخت دعوه یې کوله، نژدې دوه پیړۍ وې چې هیڅکله هم د سیاسي قواو انډول د اروپا په دننه کې په دې ترتیب د ګواښ لاندې نه و راغلی. د فرانسې په ضد چې کوم اتحاد جوړه شوی و هالند، انګلیس او د روم مقدس امپراتوري په کې شامله وه همدارنګه دا اتحادیه د براندنبورګ، پرتګال، ایټالیا او د ساوي دوک نشینو د ملاتړ څه هم برخمنه وه، د فرانسې یواځنی ملاتړکوونکی باویر و څنګه چې دغه جګړه ډېره اوږده وه هر لوری د یو ځانګړي هدف لپاره په جګړه کې شامل شوی و. د فرانسې هدف، په فرانسه او هسپانیه کې د پادشاهۍ ساتنه د بلژیک نیول او همدارنګه په امریکا کې د هسپانیې په مستعمراتو باندې اقتصادي تسلط وه او هسپانیه د خپلو ټولو ساحو د یووالي هیله درلوده. د اطریش هدف په جګړه کې دا وو چې هسپانیه د هابسبوګ د کورنۍ لپاره وساتي او باویر وټکوي، د ایټالیا په داخل کې د الف د غرونو په لړۍ کې د اطریش نفوذ پراختیا ومومي. د هالندیانو هدف په جګړه کې د هالند امنیت او د بلژک څخه فرانسویانو ویستل ول او د شلدت د سیند بندول ول، انګلیسان هم د یو لړ دلایلو پر بنسټ جګړې ته داخل شول، ترڅو د کاتولیک ستورات دودمان د فرانسې په حمایت انګلستان ته لاره ورنه کړي او د ۱۶۸۸ ز کال انقلاب وساتل شي. بالأخره د ( اوترخت) او (راستات) د سولې قراردادونو پر بنسټ چې په ۱۷۱۳ او ۱۷۱۴ ز کلونو کې رامنځ ته شوه ارامي برقرار شوه. نتایج داسې رامنځ ته شوه چې د هسپانیې امپراتوري وویشل شوه، مګر دغه ویشنه یوازې د دوه

قانوني مدعیانو ترمنځ ونه شوه انګلیسانو د زیاتو تکلیفونو په قبلولو سره هسپانویان په جبل طارق کې پرېښودل او د مینورکا ټاپو یې هم د هسپانیې څخه بیل کړ. دوه مهاجر میشتې سیمې نوی فنلند او نوا اسوکوشیا چې د اکادیا په نوم یادیدې انګلیسانو ته وسپارلې او د انګلیس حاکمیت د امریکا په شمال غربي مشهوري سیمې (هودسن خلیج) کې چې لانجمنه وه په رسمیت وپیژندل شو. د ساوي دوک میشتو سره چې د متحدینو سره یې مرسته کړې وه د ساردني ټاپو چې د هسپانیې پورې تړلی و ورکړل شو د هسپانیې پاتې مربوطات د مدیترانې په سنمدر کې یې میلان، ناپان او سیسل د اطریش هابسبورګ کورنۍ ته ورکړل شو. په هالند کې د هسپانیې مربوطات یا په بل عبارت بلژیک چې د دې څخه وروسته د اطریش هالند یادیده د ناتوانۍ او د انګلیسانو لاسته ته لویدلو نور د هالینډ خلکو ونه شو کولی د اروپا په سیاسي چارو کې مهمه برخه واخلي په دې وخت کې دوه کوچني هیوادونه د څواکمنېدو په حل کې وو دا دوه هیوادونه براندنبورګ او ساوي هیوادونه ول چې د دې دواړو امیران د فتحه کوونکو د طرفدارۍ په واسطه د (اوترخت) د سولې د تړون پر بنسټ پادشاهان وپیژندل شوه، ساوي په (ساردني) مشهور شو او براندنبورګ په (پروس) مشهور شو او د ګلدرلند څمکه د براندنبورګ امرانو ته انعام ورکړل شوه هسپانیې خپل اروپایي مربوطات د لاسه ورکړل مګر امریکایي مربوطات یې لا تر اوسه په واک کې ول. د څوارلسم لویې لمسی د پنځم فلیپ په نوم د هسپانیې پاچا شو، په دې شرط چې وروسته له دې څخه هېڅوک نه شي کولای، چې د فرانسې او هسپانیې دواړه سلطنتونه په میراث یوسي. د پنځم فیلپ د دورې څخه تر جمهوري انقلابه پورې په ۱۹۳۱ ز کال کې بوربنیانو یو څه موده په تدریجي شکل په هسپانیه سلطنت وکړ.

د اوترخت د سولې وروسته تر ټولو لوی فتحه کوونکي انګلستان و او لویه بریتانیه د یو لوی قدرت مند هېواد په بڼه رامنځته شو. د سکاټلنډ او انګلنډ اتحاد د جګړو په وخت کې بشکاریده، اوس نو برتانیه په جبل الطارق او مینورکا کې قوي اډې جوړې کړې دي او د مدیترانې په سمندر کې قوي دولت ګڼل کېده.

د انګلستان د قدرت مندۍ څخه پرته هماغه دولتونه چې په ۱۶۴۸ ز کال کې د وستفالیا د سولې تړون لاسلیک کړی و، د ۱۷۱۳ ز کال د (اوترخت) د سولې تړون کې هم شریک و او هماغه دولتونو چې وستفالیا سولې د اړیکو کومې نړیوالې طریقې رامنځته کړي وې، تائید کړي. دې هېوادونو یو بل د اروپايي ټولنې د غړو په توګه ومنل او یو بل یې د مستقل هېواد په توګه وپېژندل، چې یوازې د ازادو مذاکراتو له لارې په جګړه او تړون کې سره اړیکې لري او خپل اختلافات نسبتاً د اسانې لارې د څمکو د بدلولو، د قواوو د توازن په خاطر له منځه وړي. پرته له دې چې د ملت او خلکو غوښتنو ته نظر وکړي. تر هغه ځایه چې المان تر اوسه پورې په فیوډالستي ګډوډۍ کې اخته و. ایټالیا نه حسابېده، خو هسپانیه د فرانسې تابع شوې وه. د اوترخت د تړون په واسطه انګلستان او فرانسه د اروپا ځواکمن دولتونه او تر ټولو زیات د تمدن د پراختیا باعث شو، چې دغه تمدن د نوې نړۍ ښکاره او مبارز صفت دی.

څوارلسم لوی په ۱۷۱۵ ز کال مړ شو او د سلطنت تاج او تخت یې خپل لمسي پنځلسم لوی ته پرېښود ،لاکن مؤرخین هغه د فرانسې په تاریخ کلي د یو روښان او عزتمند پادشاه په نوم یاد کړی او هغه ته یې د لمر پادشاه نوم ورکړی دی چې د فرانسې د سلطنت د دایرو څخه د اقتدار یوه ښه او اوچته دوره وه، چې په اروپا کې د دغه هېواد د بهترۍ او سیادت څخه حسابیږي.[1]

## د قواوو برابروالی (توازن)

د قواو برابروالی چې د څوارلسم لوی په دوره کې رواج او دوام ورکړل شو. د هغه څخه وروسته په مختلفو مواردو کې او ځینې وخت په ورته مواردو کې ترې کار اخیستل شوی دی. د یوې خوا هدف تعادل او د قواو ترمنځ برابروالی و په دې معنی چې قواوې او واک د ډېرو هېوادونو ترمنځ په جداګانه توګه ویشل شوی دی. له دې څخه دویم مقصد دا دی: که چېرې د یو هېواد قواوې په نورو هېوادنو قوي وي په دې صورت کې نور هیوادونه کولای شي د هغې ځواک په مقابل کې ائتلاف جوړ کړي، چې دغه ډول ائتلاف ته د قواو برابروالی ویلای شو. اګر

---

[1] عباسقلي غفاري فرد، تاریخ اروپا، مخ. ۲۸۹-۲۸۷.

که دغه ائتلاف مقابل لوري ته د یوې ډېرې حیثیت لري، چې د هغې په واسطه د تلې د دواړه طرفو برابروالی منځته راځي. دریېم مقصد هم لري چې د قواوو د برابروالي کنټرول او یا ساتل دي، په دې باره کې مقصد هغه قاطع قوت دی، چې یو دولت کولای شي حاصل یې کړي. په دې ترتیب که چېرې د یو هېواد غړیتوب ته د یوې ائتلافي دستګاه د غړي په حیث زیاته اړتیا وي. یعنې متحدین د دغه هېواد شتون ته زیاته اړتیا ولري په دې حالت کې کولی شو ووایو چې دغسې هېواد د قواو برابروالی ساتلی شي او باید کوښښ وشي چې ټول هېوادونه د تعادل او برابروالي په حال کې وساتي.

په عمومي توګه په ۱۷ او ۱۸ ز پیړیو کې د قواو د برابروالي د سیاست څخه د سیاستمدارانو هدف دا و چې خپله د عمل ازادي تر ممکنه حده پورې په اعلی درجه کې وساتي، په دې خاطر اصلي او اساسي قانون هغه و چې د هر هغه هېواد په مقابل کې چې د نورو هیوادو د نیولو فکر یې درلود، متحد شي. که چېرته یو هېواد له اندازې زیات نورو هېوادونو ته اوامر ورکول، ټولو به د اتحاد څخه د هغه لاسونه ویستل، د دې ډول هېوادو په بدل کې به یې د نورو ضعیفو هېوادو سره اتحاد کاوه او په دې ترتیب سره به یې مقابل لورې ته متوازنه قوه جوړوله. یا د هغه هېواد په مقابل کې چې فوقیت څخه به په ویره کې و د قواو د برابروالي د بیرته راتللو کوښښ به یې کاوه. د ضعیفو د مرجح والی بل دلیل د قوي په وړاندې دا و چې په دې ډول اتحادیو کې هر غړي احساس کاوه چې د هغوی برخه اخستل تر کومې اندازې پورې ګټور او ضروري دي. په همدې دلیل یې کولای شول خپل حیثیت او اعتبار وساتي او یا د اتحادیې څخه د وتلو په تهدید سره د نورو موافقه خپل سیاست ته را واړوي.

په حقیقت کې د قواوو برابروالی کولی شو داسې یو سیستم یا طریقه تعریف کړو، چې په هغې کې هر هېواد دې ته میلان درلوده چې په هر ځای کې زیاته اړتیا وي د هغه ځای څخه خپل ملاتړ اعلان کړي، ترڅو له دې لارې خپل اعتبار او اهمیت ته زیاتوالی ورکړي.

په حقیقت کې د دولتونو هدف د قواو د توازن څخه د سولې ساتل نه ول؛ بلکې هدف یې د اروپایي هېوادونو د استقلال او حاکمیت د حق ساتل ول (یا د هغوی په وینا د بالقوه تجاوزګرو په مقابل کې د اروپایانو د ازادۍ ساتل). په ۱۷ او ۱۸ مه پیړۍ کې دا طریقه د دې هدف لپاره

مؤثره وه. د هېوادونو اتحاد او يوځاى کېدل سخت کار و او د حالاتو سره مقابله په هماغه سادګۍ سره چې دولتونه سره يوځاى کېدل يو له بله بېرته هم بېليدل.

د دې طريقې يو ډير مهم علت دا و، چې بې شمېره هېوادونه د خپلواک بهرني سياست لرونکي ول، دا نه يوازې لوى او متوسط هېوادونه لکه: اطريش، هسپانيه، فرانسه، انګلستان ول، بلکې ګڼ شمېر کوچني مستقل هېوادونه لکه: ډنمارک، المان، پرتګال او د ۱٦۴۰ ز کال څخه وروسته ساوي، وينز، ژن او توسکاني هم په دې ډله کې راتلل، چې په اسانۍ سره به يې د يوې اتحاديې څخه بلې اتحاديې ته مخه کوله او يا د يوه لوري سره به يې اړيکې پرې کړې. او بل لورې سره به يې اړيکې ټينګې کړې. هېڅ ډول مرام، فکري يووالي او عقيدې د هغې مخنيوى نه کاوه. خصوصاً کله چې مذهبي جګړې ختمې شوي او دې ډول هېوادونو د خپل استقلال او ګټو زياتولو لپاره ازادانه کولاى شو د يو هېواد سره متحد شي او د بل سره اړيکې پرې کړي او علاوه پردې د هغه وخت نظامي فنونو په واسطه کوچنيو هېوادونو په يو اتحاديه کې د هماغه اندازه د نظامي شريک په توګه اهميت درلود لکه څنګه چې لويو هېوادونو درلوده. د هغه هېوادونو څخه چې د يوې سيمي د نظارت لپاره سوق الجيشي له نظره مهم و لکه ډنمارک او يا د بېړۍ او پيسو په لرلو سره لکه هالنډ، کولاى شو د يوې اتحاديې سره په يو ځاى کېدو سره د قواو توازن رامنځ ته کړي او يا هم کولاى شو د يو ګروپ سره په يوځاى کېدو سره د متقابل لورې په نسبت د هغې ګروپ قدرت زيات کړي.[1]

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاريخ جهان نو، مخ ۲۴۹ - ۲۵۱.

## درییم څپرکی

## د انقلابونو دوران(عصر)

### لومړی) د امریکا انقلاب

د انګلستان په مستعمراتو کې تر ډېره حده کوښښ کېده چې یو مرکزي او پیاوړی اداري جوربښت رامنځته کړي او ټول هغه فرمانونه چې د انګلستان د مستعمراتو په داخلي چارو کې اجراء کېدل او د امپراطورۍ په بڼه اداره کېدل، د پارلمان د حاکمیت حق چې په ۱۶۷۹ ز کال کې تصویب شوی دی چې د ۱۸ پیړۍ تر نیمایي پورې د دغې ځمکې پر سر تطبیقیده، دلته امریکایانو د دې قانون په غبرګون کې ملي پاڅون وکړ چې په حقیقت کې دا ملي پاڅون د شاه یا سلطان په وړاندې نه بلکې د انګلستان د پارلمان په وړاندې و.

د دغه ملي پاڅون تیزولو او چټکۍ لپاره ځینو پوهانو په دغه وخت کې لکه جیمز سولن، په امریکا کې فرانکلین او برک (Burek) په انګلستان کې هر یوه په جلا جلا توګه خپلې طرحې او پیشنهادونه وړاندې کړل، داسې چې امریکا دې د انګلیس تابعیت په ساتلو سره یو ډول خپل پارلمان ولري، چې د انګلستان د پارلمان سره مطابقت ولري. دغه طرحه د (دومی نیون) په نامه سره یادېږي یعنې دا یو داسې مقام و چې عملاً کاناډا او استرالیا درلوده او په دغه طرحه کې لاندې غوښتنې شاملې وې. د امریکایانو تابعیت حفظول او د یو داسې پارلمان رامنځته کول چې د امریکایانو پورې اړوند او د انګلستان د پارلمان په خبر وي، دغه طرحه د انګریزانو لخوا ونه منل شوه ځکه چې د انګلستان پاچا داسې فکر کاوه چې امریکایان کوچیان دي او د یو واحدې او خپلواکې اداري د لرلو جوګه باید ونه ګرځي.

خو په دغه وخت کې د داسې یو کار کول عملاً ناممکن ول، نه یوازې د دولت د زیات واک او د مرکزیت د غوښتنې له امله، بلکې مخکې له دې چې امریکا د دې عقیدې باطل والی ثابت کړي، ویل به یې چې د امریکا کوچیان خلک د خپلواک حکومت په درلودلو سره مسؤل نه دي.

د اوو کلونو جګړو په اوږدو کې د امریکا رویه نامطلوبه وه، د دې جګړې په جریان کې انګلیسانو وکولای شو چې فرانسویان له امریکا څخه وزغلوي. د انګلیس فوځ او سمندري قواوو وکړای شو چې د جګړې لګښتونه د مالیاتو او قرضو له لارې پخپله انګلستان پوره کړای شي. د فرانسویانو له ماتې وروسته د نویو مهاجرینو سروکار د بومي امریکایانو سره شو چې د فرانسویانو د حکومت پر ځای یې انګلیسانو ته ترجیح ورکوله، په دې باره کې مهاجرین د هغې سختې عهدې څخه ونه شو وتلای چې د دوی د ژوند په سرنوشت پورې یې اړه درلوده، بلکې سوله د هغه فوځ او مامورینو په واسطه تأمین شوه چې فرمانونه او هدایات به یې د انګلستان څخه اخیستل.

سربېره پر دې د انګریزانو امپراطور غوښتل چې امریکایان په ډېرو مالیاتو او ګمرکې عوارضو سره تر فشار له لاندې ونیسي، ترڅو مجبور شي چې د انګریزانو استعمار ومني. تر اوسه پورې په امریکا کې مهاجرینو یوازې سیمه ییز مالیات یا تکس ورکاوه، د بل پلوه په ټولو اروپایي متمدنو خلکو کې شاید یوازې انګلیس مهاجرین په امریکا کې په لږه اندازه قانون ته پابند او اطاعت یې کاوه، په آزادانه ډول د انګلستان امپراطورۍ تر سیورې لاندې د قاچاقې توکو تجارت پرمخ وړل کېده. په عمل کې مهاجرینو یوازې هغه مالیات تأدیه کول چې د قانون جوړونې سیمه ییزې شورا به د سیمه ییزو لګښتونو لپاره وضع کول، په حقیقت کې امریکایان د امپراتورۍ په داخل کې تر ډېره حده د مالیاتو د ورکړې څخه معاف و. چې دغه د مالیاتو د نه ورکولو امتیاز انګلیس پارلمان ته د منلو وړ نه و او د دغه ډول امتیازاتو پرضد یې اقدامات ترسره کول.

په ۱۷٦٤ ز کال د عوارضو د قانون (Revenue act) په تصویب سره چې د قند او بورې د لایحې په نوم سره مشهور دی. د دغه قانون په واسطه دولت وکولای شول په امریکا کې په ګمرکي عوارضو کې کموالی راولي او د ټاکلو اصولو له مخې یې د مالیاتو په راټولولو پیل وکړ.

یو کال وروسته انګلیس دولت د مالیاتي عوایدو د لټون په ترخ کې وغوښتل چې د انګلستان څخه امریکا ته په مهاجر شویو انګلیسانو مالیات تحمیل کړي. همدارنګه پر وارداتي توکو یې هم مالیات ور زیات کړل. لکه کاغذ، سرپ، چای، چې دغه مالیاتو شور او غوغا جوړه کړه. چې بیا یوازې پر چایو یې مالیات لغوه کړل چې دا په خپله د انګلیس د پارلمان قدرت په ټوله امپراتورۍ باندې ښایي، خو امریکایانو ادعا کوله چې انګریزان پر مونږ د مالیې وضع کولو حق نه لري ځکه چې امریکایان د انګلستان په پارلمان کې استازی نه لري. انګریز امپراطور د دغې ادعا د رد کولو ځواب داسې ورکړ د انګریزانو پارلمان چې تر کومه اندازه د لویې بریتانیا د امپراطورۍ استازیتوب کوي په هماغه اندازه د امریکا استازیتوب هم کوي او امریکا له دې څخه مستثناء نه ده. مګر عملاً امریکایانو د لویو او زیاتو مالیاتو د ورکولو څخه ډډه کوله او مالیات یې نه ورکول، سره له دې چې انګلیس پارلمان هم دې ته حاضر نه شو چې په سخت ډول خپل د حاکمیت له حق څخه استفاده وکړي. په ۱۷۷۳ ز کال کې د امریکا سیاسي وضعیت بدلون ومونډ او ارامي له منځه لاړه چې دې وضعیت ناراضه امریکایانو ته ثابته کړه چې نړیوال سیاسي او اقتصادي سیستم د انګلیس پورې تړلی دی، چې د اقیانوس د سمندر څخه هغې خوا ته خپل تصامیم او پریکړې سرته رسوي په دې توګه دا په خپله امریکایانو لپاره منفي زیری و.

انګلستان د ۱۳۷۳ ز کال په اوږدو کې د کوبک قانون په ډېر ماهرانه ډول تصویب کړ، چې په هغه وخت کې د انګلستان دا کار ډېر یوه عاقلانه چاره وه چې سرته یې ورسوله، د فرانسې د هغه خلکو لپاره چې تازه او نوی یې په کاناډا کې ځمکې نیولې وې، د انګلیس دولت ورته داسې یو سیستم جوړ کړ، چې د فرانسې د مدني قانون او کاتولیک مذهب د پیروۍ څخه ګټه واخستلای شي، چې دغې کار د انګلیسي دولت د امپراتورۍ بنسټ او ستنې نورې هم قوي کړې د امریکایانو له نظره د کوبک قانون د غرب په لورې د دوی د پراختیا په وړاندې یوه

مانع ګاڼه او هغه یې د امریکا دولت د بندر او امریکایي دولت د ړنګیدو پورې تړلی ګاڼه او په دې عقیده و، چې د هغې په وړاندې باید مبارزه وکړي. د ۱۷۶۳ ز کال څخه وروسته امریکایانو نور د فرانسې د امپراتورۍ څخه کومه ویره نه درلوده او لږه علاقه یې درلوده. د دې په خاطر چې انګلستان دې نور د خپلو ګټو څخه صرف نظر وکړي. د انګلیس سیاست په ښارونو کې د شتمنو، تجارانو، کارګرانو او نورو هغه خلکو ترمنځ چې تجارتي راکړه ورکړه یې په خپلو منځو کې سرته رسوله دښمني راپورته کړه.[۱]

## لومړۍ) د امریکا د خپلواکۍ جګړه

د امریکا انقلاب داسې پیښه نه وه، چې سیمه ییزه بڼه یې درلودله، د انقلاب اغېز سم دلاسه په اروپا، سیمه او نړۍ کې محسوس شول، په تېره بیا دغه انقلاب وروسته اروپایي هېوادونو ته له ځان سره ډېر جدي پیغامونه درلودل.

وروسته د (تحمل نا پذیر قانون) څخه د مستقل فکر لرونکو یو ټولګي چې په اصل کې مهاجرین ول راټول شول او کنګره یې نماینده ګي یې د فلادلفیا په ایالت کې پرانېستله، دغې کنګرې د انګلیس اجناسو د استعمالولو په وړاندې د تحریم تصویب کړ او اعلان یې وکړ چې د کنګرې مسؤلین باید هغه امریکایان چې د کنګرې دغې پرېکړې سره مخالفت کوي هغوی دې هم دغې پرېکړې منلو ته واداره کړي ترڅو په راتلونکې کې د انګلیس د اجناسو څخه استفاده ونه کړي. همدارنګه قاره یې کنګرې په خپله دویمه غونډه کې د امریکا پوځ په جوړولو اقدام وکړ، د پوځ یوه ډله یې د کوبک ایالت ته ولېږله ترڅو هلته میشت خلک د انقلاب په کولو مجبور کړي او د فرانسې سلطان بوربون سره یې یو مقدماتي سازش وکړ.

کنګره تر دې دمه مایله نه وه، چې خپلې اړیکې د انګلستان هېواد سره پرې کړي بالاخره د وخت په تېرېدو سره د انقلابیونو پرله پسې لاریونونه او هڅو د خلکو احساسات راوپارول او دغه فعالو راډیکالونو خلک په دې مجبورکړل چې یا د انګلیس غلامي قبوله کړي اویا هم د خپلواکۍ په جګړه کې برخه واخلي او هلې ځلې وکړي.

---

[۱]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ۵۵۹ – ۵۶۸.

داسې معلومېږي چې د فرانسې حکومت د انګلیس حکومت او خپل دولت ترمنځ پخلاینه نه غوښتله؛ نو د امریکا د شورشیانو د انقلاب سره یې په دې شرط مرسته کوله چې د دوی نهایي هدف چې د انګلیس امپراطورۍ ټوټه ټوټه کېدل و، د انګلیس پوځ له امریکا څخه ووت، د امریکا براعظم انقلابیانو ته پاتې شو، شوروشیان پرته له دې چې نتیجه لاس ته راوړي د کاناډا هېواد د نیولو هڅه یې پیل کړه.د امریکا کنګره چې د امریکایانو څخه جوړه شوې وه په ۱۷۷۴ ز کال د جون د میاشتې په څلورمه نېټه یې د امریکا د خپلواکۍ اعلامیه صادره کړه چې پر بنسټ یې امریکا د نړۍ د خپلواکو هېوادونو په ډله کې شامل او د مساوي حقوقو څخه برخمنه شوه، چې په هغه وخت کې د کنګرې د مهمو لاسته راوړنو څخه ګڼل کېږي.

د خپلواکۍ څخه وروسته د امریکا مبارز د جګړه یو بل اړخ ځانته غوره کړه هغه دا چې د فرانسې دولت د جګړې په لومړیو دوه کلونو کې په علني ډول کومه لاسوهنه نه کوله اما وروسته له دې یې یو خاص تجارتي شرکت د دې لپاره جوړ کړ، چې امریکا ته وسله او مهمات ولېږدوي. فرانسې هیله درلوده ترڅو له دې لارې خپلې د اوه کلنې جګړې نیمګړتیاوې جبران کړي. پرهمدې بنسټ یې یوه اندازه پیسې او وسله امریکا ته ولېږله او بیا یې د انقلاب د داُوطلبانو یو استازی د (لافایت) په مشرۍ امریکا ته ولېږه ترڅو خپله ونډه په اساسي توګه د امریکا په انقلاب کې واخلي.

په پایله کې د فرانسې دولت په دې وپوهېد، چې د امریکا ولس (شورشیان) ددې وړتیا او قابلیت لري چې هغوی ته سیاسي مخاطرات ورکړي؛ نو ځکه یې د هغوی خپلواکي په رسمیت وپېژندله او امریکایانو سره یې د اتحاد معاهده لاسلیک کړه او په کال ۱۷۷۸ کې یې انګلستان سره د جګړه اعلان وکړ. دواړو طرفینو ترمنځ سمندري جګړې پیل شوې دغه جګړه د (انتیل) په جزایرو کې پیل، چې په پایله کې دواړو طرفینو ته بریاوې او ماتې له ځان سره درلودلې. دغې جګړې هند ته هم سرایت وکړ، فرانسویانو د هند د میسور شهزاده ګانو په ملاتړ د دوی سره مرسته وکړه او دوی یې د انګلیس په مقابل کې راپورته کړل. د هسپانیه هېواد هم د فرانسې حمایت وکړ په دې هیله چې انګریزان د جبل الطارق څخه بهر کړي. سربېره پردې هسپانیه په دې عقیده و، چې د دوی د امپراتورۍ مستعمرات په شمالي امریکا کې د انګلیس

په لاسوهني سره تر ټولو زیات له ګواښ سره مخ دي؛ نو ځکه د فرانسې او د امریکا د خلکو په ګډه جګړه ته ورداخل شو. د هالینډیانو پښې هم د امریکا له پېژندنې څخه وروسته د دې منازعې په لور ورخلاصې شوې او ځینې نور هېوادونه لکه روسیه، سویډن، ډنمارک، پروس، پرتګال او ترکیه انګریزانو په واکمنتیا او سمندري ځواک په واسطه د سمندري لارو د بندولو څخه په ویره او هراس کې ول د بې طرفي سیاست یې غوره کړ؛ ترڅو خپل تجارت د انګلیس د بحري قواو د تهدید څخه وساتي.

د صلحې عقد نامه چې په ۱۷۸۳ ز کال د طرفینو ترمینځ انعقاد وموند د دې صلحې له مخې انګریزانو د امریکا خپلواکي په رسمیت وپېژندله چې په توګه انګریزانو خپل سیادت او بهتري د امریکا په اطرافو او څنډو کې له لاسه ورکړه.[۱]

## دویم) د امریکا متحد هېواد (اتازوني)

په دې ترتیب سره نوی دولت تاسیس شو، چې وضعیت یې ښه نه و، ځکه چې نه یې پیسې درلودې او نه هم یووالی، خو په هر حال تر ټولو لومړی یې د مرکزي حکومت په تقویه کولو چې بهرنی، مالي او نظامي چارې په خپل لاس کې ولري، شروع وکړه او د مرکزي قوي دولت او د هغه خلکو د استازو ترمنځ چې غوښتل یې (مهاجرین د خپل ځان لپاره د قوانینو په اجراء کې خپلواک دي) د اختلافاتو په حلولو او له منځه وړلو بوخت شو.

د امریکا اساسي قانون په ۱۷۸۷ ز کال تصویب شو، د دې اساسی قانون د تصویبېدو پر بنسټ د قانون جوړونې صلاحیت پارلمان ته چې له دوه مجلسونو څخه جوړ دی، وسپارل شو. د دې دواړو مجالسو غړي نظر د هر هېواد اوسېدونکو ته ټاکل کېدل او په هر بل مجلس کې د هر هېواد څخه دوه استازو ګډون کاوه.

اجرایه قوه د جمهور رئیس په لاس کې وه چې د څلور کالو لپاره انتخابېده، د امریکا لومړنی جمهور ریس جورج واشنګټن و، چې د واکمنۍ موده یې (۱۷۹۹-۱۷۳۲) ز کال پورې وه، نوموړی د امریکا په تاریخ کې یو له مهمو څېرو څخه شمېرل کېږي. جورج واشنګټن په نظامي

---

۱. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ۵۶۹- ۵۷۱.

او سیاسي چارو باندې د ډېر ښه پوهېده، اعتدال، وطن پالنې او ځان غوښتنې ته د بې پروايۍ له امله ډېر زيات شهرت او محبوبيت ترلاسه کړ.

جورج واشنګټن د امريکا متحده ايالاتو د خپلواکۍ په لاسته راوړنه، همدارنګه ټول امريکايان د يو فدرال او متحده ايالاتو بيرغ تر سيوري لاندې راوستل، د يادونې وړ ده، دغه هېوادونه د سابقه توب، منشاء او نفوس له مخې يو تر بله ډېر تفاوت لري؛ نو ځکه يې په تدريجي ډول يووالی لاس ته راوړ.

**درېيم) د امريکا د انقلاب واقعي اهميت**

کوم پاخون چې په امريکا کې منځ ته راغی، دا هم د خپلواکۍ جګړه وه او هم د انقلاب جګړه، د انګليس حکومت ځخه د آزادۍ غوښتنې کومه بلنه چې د کنګرې له لورې پيل شوې وه د مهاجرينو په منځ کې ورته لبيک وويل شو. د خپلواکۍ اعلاميه چې په پوره زړورتيا د پوهې، حکمت او د وخت حقوق ول، د خلکو له نظره بيانولو ته يې ضرورت نشته، يا په بل عبارت (ټول بشريت يو ډول پيدا شوی او خالق په هغوی کې يو لړ نه اخيستونکي حقوق لکه د (ژوند حق، د آزادۍ حق، کسب حق او د نيکمرغۍ د لاسته راوړلو حق) ايښې دي. د کنګرې او انقلاب دغه شعارونو د خلکو په روحونو ژور اغېز وکړ او د خلکو په مېنځ کې زمزمه شو چې په دې توګه د امريکا انقلاب د هېواد دننه او بهر نړۍ ته په ډېرې چټکۍ سره سرايت وکړ.

په نوي ايالاتو کې د خلکو ترمينځ د حقوقو د مساوي والي په برخه کې پرمختګونه وشول دغه پرمختګ پر هر ايالت کې ځانګړې بڼه درلودله چې د نورو ايالتو سره يې توپير درلوده او خلک دې ته حاضر ول، چې ټيټو طبقو خلکو ته لکه کارګران، مستريان، دهقانان او د هېواد څخه بهر خلک چې غالباً د عمومي مذهب سره مخالف ول، د ګوابښ له امله مشران دوی ته په حقوقو ورکولو مجبور کړل. د پخوانيو مهاجر مېشتو دولتونو د انحلال په اثر ډول ډول سياسي موضوعات راپيدا شول. هغه خلک چې پخوا د رايې له حق څخه بې برخې ول، اوس د مقننه هئيت افرادو او همدارنګه د عمومي خدمت کوونکو په ټاکلو کې د رايو د ورکولو د حق څخه برخمن شول او همدارنګه په امريکا کې داسې مقرر شو، چې د قانون جوړونې مجلس ټول

غړي باید د خلکو د یوې ډلې معرفي کوونکي وي، چې همدغه موضوع بیا د اروپا په پارلمان کې نه لیدل کېده او سابقه یې هم نه درلودله. په شمالي امریکا کې غلام خرڅول لغوه اعلان شول، په امریکا کې ډېر مؤسسات چې فیوډالي ادارو ته ورته وې له منځه لاړې، کومې چې په اروپا کې وې. د کلیسا عشر له منځه لاړ او رسمي مذهبونه چې (د انګلیکان له کلیسا په جنوب کې او کانګریشنال په نوي انګلنډ کې څخه عبارت و) هر یو خپل موقعیت له لاسه ورکړ.

ټولو ۱۳ نویو ایالتونه د وخت له یووالي پرته د اساسي قانون په تدوین کار پیل کړ، چې په پایله کې یې ریښتیني مسلم اصول په مدون اساسي قانون کې ځای پرځای کړل، ټولو د هغو نظریاتو څخه پیروي کوله چې د خپلواکۍ په اعلامیه کې یې بیان کړې ول. یا په بل عبارت ټول امریکایان پر دې باور ول، چې دولتونه لاینفک حقوقو د ساتلو او حفاظت لپاره د خلکو په منځ کې رامنځ ته شوي دي او همدارنګه په هرځای کې چې دولتونه په دې برخه کې تېری وکړي خلک حق لري د دولت د فعالیت د ساحې د محدودولو لپاره د دولتي اختیاراتو په تفکیک لاس پورې کړي. د امریکا اساسي قوانین چې ظاهراً په عمل کې د یو اجتماعي قرارداد نمونه ده. دا قوانین خلک په طبیعي حالت کې ښکاره کوي چې ځانونه یې د پخواني دولت له قید څخه خلاص کړي او اوس په اګاهانه ډول د نوي دولت په لټه کې دي او مقننه، اجرائیه او قضائیه قوي ته ځانګړي اختیارات او واکونه ورکوي او دا اعلان یې کاوه چې دولت د ملت په واسطه منځ ته راغلی او هر دولت یوازې دومره واکونه او اختیارات لري څومره چې ملت ورکړي وي.

په ۱۷۸۷ ز کال اساسي قانون د استازو یو کمېسیون جوړه شو، چې داسې یو اساسي قانون یې تدوین کړ، چې نن ورځ د نړۍ تر ټولو لومړنی لیکل شوی مروج سند دی. په دغه قانون کې د امریکایي ټولنه نه یوازې یوه جلا او منفرده ټولنه وګڼل شوه، بلکې د خلکو داسې یوه اتحادیه وه چې په هغې کې افراد د مقصدونو د یوې برخې لپاره د امریکا اتباع راټول شوي دي او همدارنګه د مختلفو اهدافو لپاره د امریکا متحده ایالاتو د اتباعو څخه شمېرل کېدل.

امریکایانو د خپلې ازادۍ لپاره داسې یو عمل سرته رسولی و، چې د امریکا ټول خلک باید پاڅون وکړي، چې دغه پاڅون او طغیان د دې باعث شو چې د پخوانیو مهاجرینو د ترلاسه کولو لپاره تجدید نظر وشي. له هغه ځایه چې د انګلستان او امریکا ترمنځ تجارت دوام درلوده، داسې یوه نظریه منځ ته راغله، چې امکان لري پرته له دې چې یو هېواد د خپل سیاسي نفوذ لاندې راوستل شي، د هغه هېواد سره تجارتي اړیکي ولري. ټول هغه ملتونو چې تمایل یې درلوده چې د مهاجر میشت کېدو او یا له استعمار څخه ځان خلاص کړي د امریکا له تجربو څخه دې استفاده وکړي، په پیل کې لاتیني امریکا چې تر ټولو لومړۍ د انګلیس له پخوانیو مستعمرو څخه وه او بالاخره په شلمه پېړۍ کې د اسیا او افریقا خلکو هم همداسې وکړل. د اروپایانو په نظر د امریکا متحده ایالاتو پیدا کېدل په دې معنی و، چې د دې امکان شته چې ډېر نظریات او عقاید د وخت افکار په عملي توګه روښانه کړي.

د مذهب ازادي، د بیان ازادي او په خپل سر د خلکو د نیولو ازادي د چارو د سرته رسولو د مشرانو په خوښه منځ ته راغلل چې دغه حقوق د ټولو افرادو په وړاندې یو ډول پلې کېدل څکه د افرادو د حقوقو مساوات د قانون په وړاندې یو ډول و، د امریکایانو کړنو هغه عقایدو ته چې په اروپا کې یې شتون درلود واقعیت وبښلو، چې دا په خپله د دې یو متحرک او بارز دلیل دی چې فرانسویانو په ۱۷۸۹ ز کال عملاً د حقوق بشر په اعلامیه او د اساسي قانون په لیکلو پیل کړ، چې تر ټولو مهمه دا چې امریکا د اروپایانو لپاره د حکم د صدور د سرزمین لپاره غوره کړ.[1]

## دویم) د فرانسې لوی انقلاب ( ۱۷۸۹ ز کال)

په ۱۷۸۹ ز کال په فرانسه کې ستر انقلاب منځ ته راغی چې په اروپا کې د نویو جګړو او تغییراتو پیل ګڼل کېږي، چې د اروپا په تاریخ یې ژورې اغېزې وکړې. د موضوع د غوره پوهېدلو په موخه د فرانسې لوی انقلاب د بېلابېلو عنوانونو په ترڅ کې تشریح کوو.

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ۵۷۲ – ۵۷۸.

## لومړی) د فرانسې د انقلاب پیل او عوامل

که چېرې د فرانسې د انقلاب څخه مخکې دورې تاریخ په ریښتېنې توګه مطالعه کړو، نو راته واضح به شي، چې د فرانسې حکومت په حقوقي لحاظه تر انقلاب پورې اشرافي بڼه درلوده او د فیوډالانو رول ډېر مهم وه، هر شخص په حقوقي لحاظ د یوې طبقې پورې اړه درلوده. په دې معنی چې د انقلاب څخه مخکې د فرانسې ټولنه په درې طبقو ویشل شوې وه، چې عبارت دي له:

۱. د روحانیونو طبقه.

۲. د اشرافو طبقه.

۳. عوام. د ټولنې تر ټولو شتمن خلکو، تجار او اربابانو څخه نیولی تر کارګرانو او تر ټولو غریبو دهقانانو پورې په دې طبقه کې شامل ؤو.

د دغې طبقو اهمیت په دې کې ؤو چې د هر شخص حقوق او حیثیت د هغې طبقې د ډول پورې تړلې ؤو یعنې د کومې ډلې پورې به چې دغه شخص اړه لرله.

کوم خراب حالت او وضعیت چې د فرانسې په کلیسا کې شتون درلود، کولې شو چې د انقلاب د عواملو څخه یې وشمیرو. ځکه کلیسا د ځمکو په ټولو محصولاتو یو ډول مالیه وضعه کړې وه، فرانسوي اسقفیانو تر ډېره په دولتي چارو کې مهمه برخه درلودله، همدارنګه کلیسا په اجتماعي سیستم کې هم بې حده مداخله کوله.

د بل لوري مذهبي تشکېلات، لکه اسقفیان، کلیساګانې، مدرسې او نور برخې په سلو کې د ۵-۱۰ پورې د روحانینو او دوی پورې اړونده طبقې په لاس کې ؤو، چې په حقیقت کې د هېواد تر ټولو لوی مالکېن همدوی ګڼل کېدل. له بلې خوا د کلیسا د مالونو څخه ترلاسه کېدونکي عایدات هم په غیر عادلانه ډول ویشل کېدل، لویه برخه به یې اشرافو ته ویشل کېدل، چې د روحانیت په لوړو منصبونو به یې تکیه کړې وه، د عوامو طبقه په ټولنه کې تر ټولو ښکتنۍ طبقه وه. دا په داسې حال کې چې ښه او لوړ منصبونه اشرافو ته ځانګړې شوي ؤو، د ۱٦ لویې په وخت کې هر اسقفي د اشرافو له ډلې څخه ؤ.

د اشرافو طبقه چې په ۱۷۸۹ ز کال کې يې تعداد د ۴۰۰۰۰۰ خلکو پورې رسېده، په ۱۵۱۷ ز کال د څوارلسم لوی له مړينې څخه وروسته د لويو خلکو څخه شمېرل کېدل. يوه پيړۍ مخکې چې د چارو مسؤليت د عامه طبقې په لاس کې و، اوس د اشرافو طبقې لاس ته لويدلی و. شپاړلس لوی په ۱۷۷۴ ز کال په داسې حال کې په تخت کېناست چې د هغه د سلطنت په دوران کې د دولت خدمت، د کليسا مناصب، پوځ او د هېواد ډېرې افتخارات د اشرافو په ولکه کې ول.

بله مهمه موضوع دا چې اشراف د پارلمان، ايالتي مجالسونو يا د روحانينو مجمع له لارې چې د اشرافو تر تسلط لاندې ول، د ماليـاتو د اخيستلو په برخه کې د پادشاه د تدابيرو په وړاندې خنډ کېدل چې دا د هېواد پر سياستونو باندې د نظارت د تمايل ښکارونده و. په عين حال کې د بورژواز طبقه چې په درېيمه طبقه کې لوړه ډله وه، هېڅکله دومره قدرتمنده نه وه. اشراف اصولاً د (Taille) يا د مستقيمو مهمو ماليـاتو لـه ورکړې څخه معاف ول، اما د بورژوا طبقې اصلي موخه يوازې مادي منفعت يا شخصي ګټې نه وې. په دې ځای کې بورژوازيانو غوښتل ځان دولتي منصب ته ورسوي، په داسې حال کې چې د اشرافو طبقه په فرانسه کې د پرمختګ په حالت کې وه. نو بورژوازيانو فکر کاوه چې د منصبدارۍ او افتخاراتو دروازې د دوی پر مخ تړل شوي دي او اشراف د يوې خاصې طبقې په عنوان په دولتي دستګاه کې ډېر قدرت ترلاسه کړی دی، نو پس انقلاب د دوو متحرکو طبقو (د اشرافو او بورژوازيانو) ترمينځ د تصادم نتيجه ده، چې يو د انقلاب له عواملو څخه دی.

عام خلک يعنې په درېيمه طبقې کې تر ټولو ښکتني خلک چې د اربابانو او لويو کورنيو څخه هم په ټيټه طبقه کې و، د نورو طبقو په پرتله د درييمې طبقې خلک د بد حالت سره لاس او ګريوان ول. مزد اخستونکي خلک په هېڅ ډول د بازار د تجارت له رونق څخه برخمن نه ول. په ۱۷۳۰ز کال د اجناسو قيمتونه په سلو کې ٦٥ سلنه ډېرښت وموند په داسې حال کې چې د کارګرانو معاشونه په سلو کې ۲۲ سلنه پورته لاړل؛ خو بيا هم خلک د اقتصادي ستونزو سره مخ ول، په کلو او بانډو کې بزګران د خپلو حاصلاتو د خرڅلاو له لارې په ستونځو کې ژوند کولو، چې نسبتاً د نورو هېوادونو د لوړو او معتبرو طبقو سره نه پرتله کېدل.

په هر صورت په فرانسه کې ۱۰۰ کاله د پادشاهي حکومت تر سيوري لاندې سياسي يووالی رامنځ ته شو. د فرانسويانو سياسي يووالی د خپل پادشاه په مقابل کې هم يو د انقلاب د علتونو څخه شمېرلی شو. په فرانسه کې ټولنيزه وضعه چې په هر ډول وه، خو د عمومي افکارو او ملت لپاره د سياستونو طرحه کوونکې او د قوانينو تدوينونکې وه، چې د ټولو لپاره يې يو ډول عمومي بڼه درلودله، په دې توګه فرانسويان له وړاندې په سياسي وحدت او يووالي باندې سره متحد ول. چې په مرکزي اروپا کې بيا حالت په دې ډول نه و، په فرانسه کې حکومت موجود و اصلاح غوښتونکي مجبور نه ول، چې له سره نوی حکومت او کابينه جوړه کړي، بلکې موخه يې دا وه چې واک د موجوده حکومت له لاسه ونيسي او څرنګه يې چې غوښتنه وي، جوړ يې کړي. په اتلسمه پېړۍ کې فرانسويانو دا فکر له ځان سره درلودلو چې اوسني فرانسويان د يو ډول ملي يووالي، سياسي وحدت درلودونکی ملت او ولس دی.

بايد وويل شي چې د دولت مالي ماتې هم يو له هغه عواملو څخه دي، چې د فرانسې انقلاب ته يې تيزوالی ورکړ، په هغه وخت کې يوازې د ورسای د ماڼۍ درنو لګښتونو د دولت بار دروند کړی نه و، ځکه په ۱۷۸۸ ز کال کې د سلطنتي دستګاه لګښتونو، د عامه لګښتونو پنځه په سلو کې جوړول، هغه څه چې د دولت بار يې مخکې له مخکې دروندولو هغه په هغه وخت کې د اردو او بحري ځواکونو ساتل ول او هم د عمومي قرضونو بار چې د جګړو په ترڅ کې په ټول هېواد تحميل شوی و. د فرانسې د قرضونو بار تقريباً څلور بليونه ليره جوړېده. چې د امريکا د خپلواکۍ جګړه يې هم يو له عواملو څخه ګڼل کېږي. د قرضونو دغه بار تحمل کول ناممکن ول، چې تر ټولو ساده دليل يې د فرانسې د بوديجې عدم توازن ګڼلی شو. ماليات او د عوايدو نورو دولتي سرچېنو د لګښتونو لپاره کفايت نه کولو، چې دغه امر هم په خپله د افرادو د مالياتي معافيتونو او د ځينو طبقو، لکه اشرافو څخه د مالياتو د نه اخستلو له امله رامنځ ته شوی و. ځکه د اشرافو طبقه د خپل طبقاتي بهتروالي او مزاياوو له امله د مالياتو د ورکړې څخه معاف وه او بورژوازيانو هم د مختلفو عواملو په اساس ځان له مالياتو څخه معاف کولو. کليسا هم په دې ټينګار کولو چې د دوی دارايې د دولتي مالياتو لاندې نه راځي، سره له دې چې په دې وخت کې داسې هڅې کېدلې چې مالياتي اصلاحات راشي، په دې توګه يې

غيرمستقيم ماليات کم کړل او د اقتصادي توليداتو د زياتوالي په منظور يې د هېواد داخلي گمرکي تعرفې لغوه کړې، د کليسا د مالونو يوه برخه يې ضبط کړه، مگر د اصلاحاتو دغه پروگرام د پارلمان له لوري رد شو، او اعلان يې وکړ چې د نويو مالياتو د وضع کولو صلاحيت يوازې درې گونو طبقاتو د استازو صلاحيت دی، چې په يو واحد مجلس يعنې اتاژنرال کې راټول شوي دي. ۱٦ لويې د يو لړ مناقشو وروسته مجبور شو چې اتاژنرال راوغواړي ځکه چې د قرض کولو او د مالياتو اخستلو توان يې نه درلود.

له يوې نيمې پيړۍ څخه ډېر وخت کېده چې د اتاژنرال مجلس نه ؤو جوړ شوی د يو لړ مشکلاتو وروسته چې هغه وخت د پارلمان په وړاندې شتون درلود، په ۱۷۸۸ ز کال د سپتمبر په مياشت کې د پاريس نوی پارلمان جوړ شو او داسې نظر يې وړکړ چې اتاژنرال بايد په خپلو دريو طبقو کې جداگانه غونډې داير او رائيه ورکړي لکه څرنگه چې په ۱٦۱۴ ز کال کې شوي ؤو.

په دې ترتيب اشرافو خپل هدف د پارلمان له لارې ښکاره کړ، د اتاژنرال په مجلس کې د اشرافو طبقې په ټينگه غوښتل چې انقلاب وکړي. چې دا په خپله د پادشاه د خپل سرۍ په وړاندې د اشرافو کاميابي حسابيږي. په حقيقت کې اشرافو د ازادۍ غوښتنې پروگرام درلوده، د مشروطه حکومت، او د ټولو خلکو لپاره د انفرادي ازادۍ د تضمين، د بيان د ازادۍ، د مسؤلينو په غوښتنه د نيولو او بندي کولو، څخه د ازادۍ غوښتونکي وه. تر دې چې زيات شمير اشراف حاضر ؤو چې له ډيرو امتيازاتو لکه د مالياتي معافيتونو څخه تېر شي، دغه چاره ممکنه وه خو په بدل کې يې غوښتل چې د حکومت په تشکيلاتو کې د يو مهم سياسي عنصر په توگه شتون ولري، او دغه ټول هغه څه وه چې دريمه طبقه ورڅخه راضي نه وه، د هغوی استازي يعنې عدليه وکيلان، تاجران، دوکانداران، صنعتگران، کارکوونکي او دهقانان هېڅ کله دې ته مايل نه وه چې حکومت دې يوازې د اشرافو او روحانينو پواسطه اداره شي.

په ۱۷۸۹ ز کال د مې په مياشت کې اتاژنرال مجلس (د فرانسې د عمومي طبقاتو مجمع) د وارسای په ماڼۍ کې جوړ شو، دريمه طبقه چې د هغوی استازي عدلي وکيلان ؤو په دغه سازمان او درې گوني مجلس کې حاضر نه شوه، دغې طبقې په دې ټينگار کاوه چې د درې

واړه طبقو استازي دې په یو مجلس کې غونډه وکړي، او هر استازی دې د خپلې غوښتنې او میلان مطابق خپل نظر څرګند، او رائیه دې ورکړي، که چېرې دا وړاندیز منل شوی وای د دریمې طبقې لپاره ګټور واقع کېده، ځکه د استازو هغه اندازه او شمیر چې پادشاه دغې طبقې ته ورکړی ؤو، د دوو نورو طبقو د مجموعې معادل ؤو، له شپږ اونیو ګډوډیو وروسته یو شمیر روحانیون د لومړۍ طبقې څخه بیل او د دریمې طبقې سره یوځای شوه، چې په دغه کار دریمې طبقې د جون په میاشت کې ځان ملي مجلس (National Assembly) په عنوان اعلان کړ.

۱٦ لویې هم د اشرافو د فشار له امله د هغوی هغه تالار چې په کې راټولیدل وتاړه، د مجلس غړي په هغه ځای کې چې پخوا د تینیس میدان وه راټول شوه او د تحلیف مراسم یې سرته ورسول چې د ۱۷۸۹ ز کال د جون په شلمه نیټه یې قسم نامه لاسلیک کړه، او پریکړه یې وکړه چې هر ځای دغه ډله راټوله شي ملي مجلس تشکیلوي، د دغې ډلې ټولیدنه به تر هغې منحل نه شي ترڅو چې اساسي قانون نه وي لیکل شوی، چې دا یو انقلابي اقدام وه، ځکه دغې ډلې د حاکمیت حق د ټولنې د خلکو څخه ګانه چې عملاً د هیڅ ډول قانوني اختیار لرونکې نه وه، سره له دې چې ۱٦ لویې کوشش کاوه چې خپلو وړاندې شوو پروګرامونو ته د دریمې طبقې توجه جلب کړي، مګر د دریمې طبقې خلکو له خپلو غوښتنو څخه صرف نظر ونه کړ. د جون د میاشتې په وروستیو کې ۱٦ لویې د ۱۸۰۰۰ په شاوخوا کې سربازان د وارسای ماڼۍ ته راوغوښتل تر څو د امنیت په تأمین کې برخه واخلي.

د اشرافو او دریمې طبقې د اختلافاتو په ترځ کې پادشاه د اشرافو څنګ ونیوه، سره له دې چې پادشاه له اشرافو سره ښې اړیکې نه درلودې، مګر په نهایت کې یې اشرافو ته په دریمې طبقې ترجیح ورکړه. پادشاه په یوازېوالي کې پاتې وه نو ځکه یې لاس د خپلې میرمنې ماري انتوانت، خپلو ورونو او خپلو درباري اشرافو لمنې ته وغځاوه.

د جون په میاشت کې ۱٦ لویې قصد درلوده چې د نظامي قواو په مټ د اتاژنرال مجلس منحل کړي. او هغه څه چې دریمه طبقه تري ویریدله هغه د مطلقه شاهي حکومت بیرته راتګ نه وه چې په پخوانیو ادارو کې یې شتون درلوده، بلکې ویره یې له دې څخه وه چې

اشراف به د حکومت چارې په خپل لاس کې واخلي. د دریمې طبقې سرکشۍ پادشاه د اشرافو سره متحد کړ چې دریمه طبقه اوس هم په هر لحاظ د اشرافو څخه په ویره کې وه، او داسې فکر یې کولو چې پادشاه د اشرافو د لاس آله گرځیدلې ده.

## دویم) د ټیټو طبقو پاڅون او د باستیل سقوط

په ۱۷۸۹ز کال د اپریل په میاشت کې په پاریس کې د یوې کارخانې کارگرانو پاڅون پیل کړ او وروسته دغه پاڅون کلیو ته هم وغزیده، دهقانانو اعلان وکړ چې د اربابانو پیسې به نه ورکوي، په همدې ترتیب د مالیاتو د ورکولو څخه هم منکر شول د بلې خوا فقر ټولو ځایونو کې خپور شوې وُو او د انقلاب امکان یې په هره لحظه کې نژدې کاوه.

ملي مجلس د جولای په میاشت کې خپل ځان د بنسټ ایښودونکی مجلس په نوم اعلان او ټینگار یې وکړ چې وظیفه یې د نوي اجتماعي نظم راوستل او د اساسي قانون جوړول دي. همدارنگه هغوي د فیوډالانو او غلامانو هغه امتیازات چې یو ډول مالیات وُو، مالکانو او کشیش ته به یې ورکول، بیگار او وروسته صنفي اتحادیې او د ښارونو ترمنځ نابرابري یې لغوه کړه او د مدني حقوقو له نظره یې ټول مساوي او برابر پیژندل. اگر که پادشاه مجبور شو، د ملي مجلس د دې اقدام سره چې په یو علت هم د هغې له جوړیدلو سره موافق نه وُو، موافقه وکړه. پداسې حال کې چې د پادشاه وفادار عسکر د پاریس او ورسا د ماڼۍ په شاوخوا کې راټول شوي وُو، خلکو او د ملي مجلس نماینده گانو د پادشاه او د هغې طرفدارانو دا کار د ملي مجلس لپاره یو گواښ گاڼه.

د پاریس خلک د عسکرو د راټولیدو څخه، د وارسا د ماڼۍ په اطرافو کې په ویره کې شول او د ځان د دفاع لپاره یې د تجهیزاتو په برابرولو پیل وکړ، او د دریمې طبقې ټولو خلکو په دې کار کې برخه واخیسته، لنډه دا چې دا عوامل د دې باعث شو، چې دخلکو او عسکرو ترمنځ جگړه پیل شي او د ښار یوه برخه د خلکو لاسته ورغله. وروسته خلک د باستیل زندان ته متوجه شول چې په منځنیو پیړیو کې د پاریس ښار د ویره ولو لپاره جوړ شوی وه. دخلکو

سخت احساسات د دې باعث شو چې د باستيل قلعه ورانه کړي او د ظلم او تيارو اخرين يادګار تخريب او له منځه يوسي.

د پاريس نيول په وارسا کې د ملي مجلس د ساتلو باعث شو. ۱۶ لويې چې په خپل کار کې حيران ؤو، نوی حالت چې په پاريس کې رامنځته شوی ؤ، قبول کړ. او کومه کمېټه چې په دغه ځای کې د ښاريانو څخه جوړه شوې وه، د نوي حکومت په توګه په رسميت وپيژندله، کوم عسکر يې چې راغوښتي ؤو د بيرته تللو امر يې ورته وکړ، د اشرافو او روحانيونو ترمنځ چې کوم سرکشه خلک موجود ؤو، فرمان يې ورکړ چې د ملي مجلس د غړو سره دې يو ځای شي.

په پاريس او اکثره نورو ښارونو کې د بورژواز سپاهيان د ملي لښکرو سره په ګډه د امنيت او نظم ساتلو لپاره جوړ شو. د پاريس د ملي ساتونکو د قومندانۍ رياست مارکي دولافايت ته ورکړل شو خو بيا هم په کليو کې امنيتي وضيعت چندان ښه نه ؤو. دهقانان ټول مسلح شوې ؤو تر څو د خپلو کورو څخه دفاع وکړي. اکثره لاره شکوونکي د اربابانو کورونو ته متوجه ؤو او د هغوی کورونه يې اکثره وسوځول، او د هغوی دفترونه به يې له منځه وړل، چې په هغې کې د اربابانو ټول مالي مسايل ضبط او ساتل شوي ؤو دهقانانو قصد درلود چې د اربابانو رژيم په غصې سره له منځه يوسي.

## دریيم) د لومړني ملي مجلس اصلاحات او د بشر حقوق اعلاميه

ملي مجلس په وارسا کې د دهقانانو د غوښتو د قبلولو په بنسټ وکولای شو نظم او امنيت اعاده کړي. قرار داسې وه چې اربابان خپل ټول قرضونه له منځه يوسي، چې په دې کار سره ځمکه لرونکي اشراف د ډيرو لويو عوايدو څخه محروميدل ( د فيوډالي امتيازاتو لغوه). اکثره بورژوازان هم د اربابي املاکو خاوندان ؤو ځکه د يو داسې څه په لټه کې ؤو. د استازو د مجلس يوې کوچنۍ ډلې په پټه پريکړه وکړه چې لويې اشراف او د کليسا رهبران دې د اګست په څلورمه نيټه په ملي مجلس کې حاضر شي او د فيوډالانو د حقوقو د له منځه وړلو لپاره يو لړ تصميمونه ونيول شو، او هم د پخوا په څير خو تنو اشرافو د حقوقو، قرضونو، ماليـاتو، عوارضو

د محاکمو د حقوقي امتیازاتو او په عمومي توګه د خپلو اربابي امتیازاتو څخه سترګې پټې کړې. د کلیسا عشر لغوه شو او یو ډله استازو د خپلو ایالتونو ځانګړي امتیازات لغوه کړل.

بالأخره فرانسوي دهقانان د ځمکې خاوندان شول، پرته له دې چې پیسې مصرف کړي، ځانونه یې د اربابانو له قیوداتو څخه خلاص کړل، د فرانسې ملي مجلس د خپلو پریکړو په واسطه د دهقانانو په ځمکو پورې تړل (سرواژ)، فیوډالي امتیازات، د مالیاتو له ورکړې څخه د اشرافو او روحانیونو معافیت، حتی تر دې چې اشرافي عنوانونه او القاب یې یې بالکل لغو کړل. د تعجب وړ ده چې په هغه وخت کې پادشاه لا تراوسه رسمي سلطنت درلوده، مګر اشرافو خپل عنوانونه او امتیازات له لاسه ورکول، له څه مودې تېرېدو وروسته نوموړی حالت په ډېرو نورو هیوادونو کې هم منځ ته راغی کوم چې په فرانسه کې رامنځته شوی ؤو. په هغه ځایونو کې چې دهقانان د اربابانو له قیوداتو څخه خلاص شول او یا هم اربابانو د ځمکو یوه برخه له لاسه ورکړه، او یا یې د مالیې په قسطي سیستم مالیه ورکوله، ضعیف شول. په همدې وخت کې د یوې اعلامیې په واسطه فیوډالیزم لغوه شو. وروسته ملي مجلس (د بشر ـ د حقوقو د او ښاري کیدو) اعلامیې تصویب ته اقدام وکړ د دې اعلامیې فکر د امریکا له خپلواکۍ څخه اخیستل شوی ؤو.

دا اعلامیه د ۱۷۸۹ ز کال د اګست په ۲۶ نیټه رامنځته شوه. د نوي حکومت اصول یې وټاکل چې هغه عبارت ؤو: د قوانینو او احکامو نافذول، په ښارونو کې د ټولو خلکو مساوي حقوق، او د ملت د حاکمیت له مشترک حق څخه. د نوموړي قانون په لومړۍ فصل کې یې اعلان وکړ (چې خلک ازاد او مساوي الحقوق پیدا شوي او همداسې باید پاتې شي) د فرد طبعیي حقوق (د تملک، د ازادۍ، امنیت او د ظلم په مقابل کې مقاومت) وګڼل شو. د افکارو او د دین ازادي تضمین شوه اعلان وشو چې هیڅوک نه تنبیه او نه هم نیول کیږي، او نه هم بندي کیږي مګر د قانون له مخې. او ازادي داسې تعریف شوه چې ازادي د هر هغه عمل سرته رسول دي چې د نورو افرادو لپاره ضرر ونه لري، او ویل یې چې قانون د ټولو افرادو لپاره یو ډول وي. قانون یې خلکو د ارادې ځرګندونکی وګاڼه. چې د ټولو ښاري اوسیدونکو او یا د دوی د استازو په واسطه ټاکل کیږي. د مالکیت حق یوازې د ملت دې د مالیاتو راټولول یې د عامه

خلکو د رضایت پورې وتړل، اعلان یې وکړ چې ټول دولتي مسؤلین د خپلو وظایفو په سرته رسولو مسؤل دي، او حکومتي اختیارات باید د مختلفو شعباتو ترمنځ تفکیک شي.

په هغه وخت کې د بشر د حقوقو اعلامیه په ډیر جرئت او زړه ورتیا سره لیکل شوې وه، او تر سل کلونو وروسته وخت پورې د اروپا د لیبرالو او دیموکراتانو منشور ګڼل کیده، په هغه وخت کې چې دغه اعلامیه او دا اصول تصویب شوه، اروپا ولړزیده. داسې ګڼل کیده چې ټول هغه خلک چې مظلومان ؤو او زوریدل، د هغوی لپاره یې د ځان سره د ښه روزګار زیرې درلوده.

ملي مجمعې یو لړ نور اصلاحات هم سرته سول، د کلیسا لوی او پراخه ملکیتونه یې ضبط او د دولت په واک کې ورکړل، او فرانسه بیا په ۸۳ دیپارتمنونو باندې وویشل شوه چې د مخه په ښارونو ویشل شوې وه. په ۱۷۹۰ ز کال کې د هیواد د مالي وضعیت د خرابوالي له امله کاغذي پیسې رواج شوې وې او د نجباؤو طبقې له منځه تلل هم تصویب شول، نورې محکمې جوړې شوې، چې د پخوانیو محکمو په نسبت ډیرې ښې وې.

په دې وخت کې د ۱٦ لویي ورور کنت آرتوا په خارجي هیوادو کې میشت اشراف راټول کړل او په دې لټه کې ؤو تر څو د اروپا ټول هیوادونه د فرانسې د انقلاب پرضد سره یو ځای کړي.

د اکتوبر په میاشت کې یوې انقلابي ډلې د پاریس د ملي پاسدارانو په مرسته د پاریس او وارسا ترمنځ عمومي لاره وتړله، ورسا یې محاصره کړه، او ۱٦ لویي یې په پاریس کې په اوسیدلو مجبور کړ، تر څو د خپل نظر لاندې یې وساتي، په دې وخت کې ملي مجلس هم پاریس ته انتقال شو، او ډیر وخت تیر نه ؤو چې ښار د رادیکال عناصرو تر نفوذ لاندې راغی، د واحدې مقننه طرفداري څواک نظر چې د سلطان لپاره یې د (ویتو) حق ډیر محدود ټاکه، بریالی شو. د نورو ټولو محافظه کارړو عناصرو پام شو چې عوام خلک په خپله خوښه د اساسي قانون د مسائیلو په حل پیل کړی دی، زړونه یې مات شول او په تدریج سره د ملي مجلس څخه بهر ووتل، هغه افرادو چې د تینس په میدان کې یې د تحلیف په مراسمو کې ګډون کړی وه اوس یې احساس کاوه چې انقلاب د نالایقو عناصرو په لاس کې لویدلی دی، ځینو د هغوی له ډلې د وطن څخه لرې والی غوره کړ او په نورو هیوادونو کې یې استوګنه پیل کړه چې په دې ترتیب د انقلاب ضد تحریک پیاوړی شو.

هغه خلک چې اوس هم د پرمختګ غوښتوونکي ؤو او شمير يې هم زيات ؤو د داسې ځايونو په جوړولو پيل وکړ چې ډير مهم يې د اساسي قانون د دوستانو د انجمن تعمير ؤو چې په لنډه توګه يې د (ژاکوبن) تعمير ځای په نامه يادوو، چې دا ژاکوبن د مجلس تر ټولو مترقي او پرمختللي غړي ؤو.

نور مهم موضوعات چې د اصلاحاتو په اوږدو کې رامنځته شول، د مدون اساسي قانون جوړول او د پخوانيو مؤسساتو، وزارتخانو، دولتي ادارو ، پخواني ماليات، د پخوانيو مناصبو د مالکيت حق، د پخوانيو اشرافو عنوانونه، پارلمانونه يا د قضاء ديوانونه، په سلګونه نور حقوقي سيستمونه د هيواد په مختلفو برخو کې، داخلي قيمتي تعرفې، پخواني ايالتونه، او د ښاروالۍ زاړه تشکيلات ټول منسوخ او لغوه شو.

د مجلس بنسټ اينښودونکو فرانسه د پخوانيو ايالتونو په خلاف په ٤٣ مساوي ولايتونو وويشله، د پخوانيو ښارونو پر ځاي يې د متحدالشکل ښاروالیو تشکيلات رامنځته کړل او داسې مقرره شوه چې د هيواد ټولې لومړنۍ چارې حتی محکمې او مالياتي محصولات دې په محلي ځای کې وټاکل شي.

په ۱۸۹۱ ز کال شپاړلسم لويې د فرانسې څخه د تيښتې او د خپلو طرفدارو اشرافو د ډلو سره چې په بهر کې اوسيدل، د يوځای کېدو قصد وکړ. او د بهرنيو هيوادو څخه د مرستې اخېستو په موخه د (وران) لورې ته وتښتيده مگر ونيول شو او پاريس ته يې راوسته، مجبور يې کړ چې خپله چوکۍ (د هيواد قانوني پاچا) ومني. د ۱٦ لويې کړنو او رويې تر ډېره بريده انقلاب د خپلې اصلي تګلارې څخه راوګرځاوه، ځکه د يو قوي اجرائيه ځواک تشکيل يې ناشونې وباله او د هيواد اداره يې د يو شمير ګرم مزاجو اشخاصو په لاس کې ولويده.

په دې وخت کې د مؤسساتو مجلس د کاتوليک مذهبي کليسا سره په ټکر کې ولويدل، د کليسا د مالونو ضبطول په روحانيت باندې يوه سخته ضربه وه، د مذهبي اشخاصو مالونه او دارايې يې کمزوې او د مدرسو کارونه ودريدل، د لويو اسقفانو مقام منسوخ شو د اسقفانو شمير چې د ۱۳۰ څخه زيات وه، ۸۳ تنو ته راټيټ کړای شو چې ټولو روحانيونو د حکومت څخه د خپل حق غوښتنه کوله.

په ۱۸۹۲ ز کال د سپتمبر په ۲۱ نېټه ملي کنواسیون جوړ شو، دغه کنوانسیون نوی سازمان ؤو چې د قانون جوړونې د مجلس او ملي مجلس پر ځای رامنځته شو او د دواړو مجلسونو څخه پرمختللی ؤو. د کنوانسیون لومړنی کار دا ؤو چې فرانسه یې د جمهوري هیواد په توګه اعلان کړه او وروسته یې د ۱٦ لویي محاکمه پیل کړه چې په مرګ یې محکوم، اوپه ۱۸۹۲ ز کال د جولای په ۲۱ نیټه یې د خپلو ګناهونو له کبله چې د سلطنت په دوره کې یې کړي ؤو اعدام کړ.

د فرانسې خلکو خپل وروستی ګام اخیستې د اروپا پادشاهان او امپراطوران یې د اوس د فرانسې خپل ځان پرضد را اوچت کړل. د هغوی لپاره بلې لار شتون نه درلوده، او دانتون چې د انقلاب له مشهورو رهبرانو څخه وه په خپلو خبرو کې پادشاه تهدید کړ او داسې یې وویل: د اروپا پادشاهان مونږ ګواښي او مونږ اوس د یو پادشاه سر د هغوی په وړاندې غورځوو.[1]

## خلورم) په بهر کې د فرانسې د انقلاب اثار

په لومړیو کې اروپایې هیوادونو هیله نه درلوده چې د فرانسې د انقلاب ارزښتونه قبول کړي مګر که غوښتل یې او یا یې نه غوښتل د فرانسې انقلاب بهرني اغیزې جدي وې او په هغه وخت کې یو شمیر خلک د انقلاب او انقلاب کوونکو په پلوی راولاړ شول، د فرانسې انقلاب اصول او عقاید په نورو ډېرو هیوادونو کې طرفداران درلودل، او دغه نظریات په حقیقت کې د نړیوالې فلسفې په توګه وړاندې شول، چې د نژاد، وخت او ځای په نظر کې نیولو څخه پرته یې د بشر حقوق اعلان کړل.

په پولنډ کې ځېنو خلکو د نوي تجزیې او د هیواد په سازمان کې د بدلونونو غوښتنه کوله او د فرانسې د انقلابیانو د کار ستاینه یې کوله، په انګلستان کې د پارلمان ډېری غړي په دې فکر کې ؤو چې فرانسویان د خپل هیواد په اصلاحاتو کې د دوی څخه تقلید کوي. د اروپا د ټولنې محرومو طبقو د نورو څخه زیات د فرانسې د انقلاب څخه الهام اخیسته. په هامبورګ کې د

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاريخ جهان نو، مخ

دهقانانو او کارګرانو ډلو د کار څخه لاس واخیسته او د ډیرو ځمکو دهقانانو د پاځون بیرغ پورته کړ.

د انګلستان یو دیپلومات په دغه وضعیت کې داسې وایي: د پروس د فوځ د افسرانو او عسکرو په منځ کې د دیموکراسۍ لپاره ډیر میلان لیدل کیږي. په بلژیک کې پخوا (ممتازې طبقې) د امپراطورۍ پرضد پاځون کړی ؤو. د فرانسې د انقلاب له کبله یې خپل پاځون دوهم ځل پیل کړ مګر دا ځلې هدف په خپله ممتازه طبقه وه. په هر ترتیب نور هیوادونه لکه مجارستان، انګلستان او پولنډ هیوادونه د فرانسې د انقلاب د ارزښتونو څخه په یو ډول اغېزمن شوي ؤو. په روسیه کې لوی کاترین د فرانسې د وضیعت څخه ډیر په ویره کې ؤو، او د هغې په امر د (ولتر) او د ځینو نورو پوهانو د کتابونو د ژباړلو څخه چې عقیدو یې د فرانسې د انقلاب سره مرسته کړي وه، سخت مخنیوی وکړ. که چېرې یو څو کسه د انقلابي افکارو د خپرولو په شک سره تورن کیده سخته سزا ورکول کیدله.

یو څه موده وروسته په اروپا کې بې اتفاقي او ګډوډي رامنځته شوه چې سرحد یې نه درلوده همدارنګه امریکا هم د دې وضعېت څخه اغېزمنه وه، په هغه ځای کې د جفرسون ګوند چې د پرمختګ په حال کې ؤو. د ژاکوبنیان سره په اړیکه او د فرانسې په پلوۍ وټکول شول، د اروپا په ټولو هیوادونو کې انقلابي عناصر او یا د فرانسې پلویانو شتون درلوده، چې د دولتونو د ویرې سبب شو البته دا مسئله په ختیځه او جنوبي اروپا کې دومره مطرح نه وه. هیڅ وخت د پروتستانت مذهب د اصلاح څخه تر دې وخته پورې داسې وضعه رامنځ ته شوې نه وه، حتې د روسیې د انقلاب څخه وروسته په شلمه پیړۍ کې یې هم بېلګه ښکاره نه شوه. لنډه دا چې په ټولو هیوادونو کې، لکه فرانسه کې لوی انقلاب د سختو دښمنانو سره مخامخ ؤو.

د بلې خوا د انقلاب ضد حرکت قوي شو، او (ادموندبرګ) په ۱۷۹۰ ز کال په خپل کتاب (د فرانسې د انقلاب په اړه نظریات) کې چې د فرانسویانو په نسبت د انګلیس د سرسختو رادیکالانو له پلویانو څخه ؤو، داسې ویلی ؤو: د فرانسې انقلاب د انارشیزم، ګډوډۍ او دیکتاتورۍ څخه پرته بل څه د ځان سره نه لري او انګلیسانو ته یې توصیه وکړه، چې خپلې د

ازادۍ ترلاسه کولو غوښتنې د وخت د تقاضا سره برابرې کړي. نوموړي اعلان وکړ چې هر ملت باید خپله ټولنه د ملي ستونزو، تاریخ او د بریالیتوبونو له مقتضیاتو سره سم وپېژني او تشکیل یې کړي. همدارنګه د ۱٦ لویې مرګ د لومړنۍ اتحادیې جوړولو ته چې د اطریش، پروس، سارديني، هسپانیا، پرتګال، هالنډ، انګلیس او د المان هیوادونه پکې شامل ؤو چټکتیا ورکړه، په همدې وخت کې ؤو چې سلطنت غوښتونکو د فرانسې په داخل او بهرکې په فعالیت شروع وکړه.

## پنځم) د ۱۷۹۲ ز کال جګړې

د فرانسې د لوی انقلاب څخه وروسته اروپایی هېوادونه د فرانسې پرضد ورو ورو د اقداماتو په فکر کې ؤو، او د روسیې کاترین هیڅکله قصد نه درلود چې د لویدیځې اروپا په سیاست کې شامل شي، بلکې یوازې غوښتل یې چې د روسیې ګاونديان په دې سیاست کې ښکېل کړي. په همدې وخت کې ۱۷۸٤ ز کال پیت په انګلستان کې صدراعظم شو او د توریانو ګوند رهبري یې په غاړه وه، هغه یو لړ سخت اصلاحي پروګرامونه درلودل او غوښتل یې چې د هیواد مالي او اقتصادي سیاست ته زیاته پاملرنه وکړي، که چېرې انګلستان د فرانسې پرضد جګړه کې داخل شوی وای هغه ټول پروګرامونه به باطل ؤو، هغه وویل چې د فرانسې داخلي چارې هېڅ کله هم د انګلستان پورې کوم تړاو نه لري، انقلابیون په کرار کرار بعضې سیمې چې د فرانسې سره یې سرحد درلود په فرانسې پورې ونښلولې، همدارنګه د مؤسسانو مجلس لکه په فرانسې کې یې چې د اربابان او فئیوډالیزم په مکمل شکل ختم کړی ؤو، په الزاس کې یې هم لغوه کړ، د مؤسساتو مجلس الماني شهزادګان چې په الزاس کې د فیوډالي حقوقو خاوندان وه، د تاوان د تادیه کولو پیشنهاد ورته وشو، الماني شهزادګانو چې د انقلاب په نتیجه کې یې ټول حقوق د لاسه ورکړي ؤو، د روم د امپراطورۍ سره لاس یو کړ تر څو د انقلاب پر ضد اقدامات وکړي.[1]

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ٦۱۸- ٦۲۰.

## شپږم) د ۱۷۹۲ ز کال دویم انقلاب

په فرانسه کې جګړو او نا ارامیو د طبقاتو ترمنځ بې اتفاقۍ ته نور هم شدت ورکړ ښاري دهقانانو او کارګرانو داسې احساس کاوه چې د مؤسساتو او مقننې مجلس، د ځمکو د خاوندانو د ګټو په ساتلو لپاره کوښښ کوي او هغوی ته یې چندان خدمت ندی کړی، ډیر لږ کارونه چې د ځمکو د ویش لپاره په نظر کې نیول شوي ؤو د دهقانانو په ګټه ترسره شوي وه. کار ګران د قیمتونو د لوړوالي څخه ډېر په تنګ راغلي ؤو، مهاجرو سلطنت غوښتونکو سره زر (طلا) د هیواد څخه بهر وړل په همدې سبب کاغذي پیسو خپل ارزښت له لاسه ورکاوه. دهقانان، تخنکي صنعت ګران، دوکانداران، مزدوران، د انقلاب د لوا لاندې راټول شوي ؤو، په دې وخت کې نه انقلابي دولت ؤو چې د چارو رهبري یې په لاس کې وي او نه هم مشروط سلطنت. مقننه قوه د ملت د ښه اعتماد څخه برخمنه نه وه.

د ۱۷۹۲ ز کال په اوړي کې د فرانسې ملت چې تشویق کوونکي یې بورژواز، ژاکو بینایان او رادیکال افراطي عناصر وه. لکه: زوړ روبس د انتون د ملیت پرستی په احساساتو چې انقلاب یې د ناکامۍ سره مخ ؤو راپیداشول په دې وخت کې یو ډول طبقاتي بدلون رامنځته شوی ؤو چې غوښتل یې انقلاب د زحمت کښې طبقې په ګټه تمام شي، دې ټولنې د سلطان پر ضد قیام وکړ په دې خاطر نه چې شخصیت یې د نورو پادشاهانو په څیر ؤو او د فرانسې سره په جګړه کې ؤو بلکې له دې کبله چې د فرانسې په هیواد کې لا تراوسه یو شمیر د هغې پلوي کوي او د پادشاهۍ حکومت یې د ټیټې طبقې پرضد یو سنګر جوړ کړی ؤو.

په فرانسه کې جمهوریت غوښتنه تر یوې اندازې پورې یو تاریخي تصادف ؤو په دې خاطر چې فرانسې د جګړې په وخت کې داسې پادشاه درلوده چې ملت ورباندې اعتماد نه کاوه. د ټیټې طبقې حرکت ؤو چې پرولتاریا ته ورته ؤو په دې حرکت کې د بورژوا ارزښت ډیر زیات واضح او ښکاره ؤو.

د ۱۷۹۲ ز کال په اوړي کې بالاخره خلک په غوصه شول د هرې خوا څخه داوطلبان پاریس ته راتلل تر څو د هیواد سرحداتو ته ولاړ شي، خلکو په کارګرو سیمو کې پاخون وکړ او د داوطلبانو په مرسته یې د تویلري په ماڼۍ چې د سلطان مقر ؤو حمله وکړه، سلطان او

سلطنتي کورنۍ يې ونيوله او بنديان يې کړل په پاريس کې يو انقلابي حکومت يا (کومون) جوړ شو، پاځون کوونکو د قانون جوړولو اختيارات په خپل لاس کې واخېستل او اساسي قانون يې لغوه کړ. د اساسي قانون په لغوه کولو سره يې د انتخاباتو حکم صادر کړ، ترڅو د هېواد ټول نارينه افراد د مشروطه کنوانسيون استازي وټاکي او د حکومت چارې په خپل لاس کې ونيسي، نوی اساسي قانون چې د ديموکراسۍ د بنسټونو سره موافق وي جوړ کړي.

پدې وخت کې په پاريس کې ګډوډي او ترورو زيات شو، پاڅون کوونکو عسکرو به ويل تر څو يې ځانونه د کورنيو دښمنانو څخه خلاص کړی نه وي د بهرنيو دښمنانو سره به د جګړې لپاره سرحداتو ته ولاړ نه شي. ۱۱۰۰ تنه د انقلاب ضد عناصر د ښاري بنديخانو څخه راوويستل شو، وروسته د نظامي محکمو له حکم څخه ووژل شول، دغه قتلونه (د سپنا بر عام قتل) په نامه مشهور شوي دي، د پېښو په جريان کې اوس د جګړې پيښيدل او د ټيټو طبقو ناخوښۍ يو لړ نورې حملې رامنځته کړي دي.

د ۱۷۹۲ ز کال پاڅون (فرانسې دويم انقلاب) د لوی انقلاب د پرمختللو مراحلو بنسټ ګڼل کېږي.[1]

### اووم) ملي کنوانسيون

د قانون جوړونې په مجمع کې دوو عمده ګوندونو برخه اخېستې وه، ښې اړخې ډله (د شاهي غوښتونکو او د اساسي قانون پلويانو)، او بل هم ژيروندیانو چې لږ او ډېر د جموريت غوښتنکي وو. اما په ملي کنوانسيون کې چې په ۱۷۹۲ ز کال د سپتامبر په ۲۱ نېټه جوړ شو په دې مجلس کې يوازې جمهوري غوښتنونکو ګډون کړی وو چې په درې ډلو ويشل شوي ؤو: لومړۍ، ښې اړخه ډله (ژيروندیان) چې منځلاري او متحده ايالاتو (فدرالي سيستم) پلويان وه. دويمه کيڼ اړخه ډله (مونتانياران) چې ترقي غوښتونکي او د مرکزيت طرفدار ؤو. بلې

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاريخ جهان نو، مخ ۶۲۲-۶۲۱.

داسې ډلې هم په مجلس کې ګډون کړی وو چې کله به یې د چپ اړخ او کله به یې د ښي اړخ په ګټه رایې ورکولې.[۱]

د ژیروندونیانو ډیری پلویان په اطراف کې ؤو، په داسې حال کې چې مونتانیاران په پاریس او د ژاکوبینایانو او کوردلیانو په کلوپونو کې اوسیدل. په دې کلونو کې دې کنوانسیون یو وار غونډه دایروله لومړنی اقدام یې دا و چې فرانسه یې جمهوري اعلان کړه په دې وخت کې فرانسوي عسکر د ولمي توپ غورځوني(Cannonadede valmy) په جګړه کې معنوي بریالیتوب ترلاسه کړ، په دې جګړې کې د فرانسې د بریالیتوب له امله د پروس نظامي قوت د پاریس خواته دحرکت څخه صرف نظر وکړ، ډیر وخت لا نه ؤو تیر شوی چې فرانسویانو بلژیک او د رن د سیند چپې غاړې ونیولې په دې وخت کې کنوانسیون خپلو لښکرو ته د مرسته کونکو د لیږلو په موخه ټول ملتونه نړیوال انقلاب ته راوبلل. په همدې خاطر یې لاندې دوه غټې تبلیغاتي تصویب نامې صادرې کړلې:

لومړی دا چې د فرانسې جمهوریت ټولو هغه ملتونو سره چې غواړي د لاسه ورکړې ازادي بېرته لاسته راوړي مرسته کوي. دویم دا چې د فرانسې ټولو جنرالانو ته یې امر وکړ چې په نیول شویو هېوادونو کې د ټولو انقلاب ضد خلکو مالونه ضبط او دوی له منځه یوسي.

د فرانسې جمهوریت په خپله برخه کې د ۱٤ لویې د زړه هیلې چې د فرانسې د خاورې د پراخوالي لپاره یې د (رن) تر سیند پورې درلودلې، په عملي ډول پیاده کړې.

کنوانسیون لومړی د ۱٦ لویې د محاکمې په کار شروع وکړه هغه د پردیو سره په سازش کې ؤو دا تور پرې لګیدلی ؤو چې په همدې خاطر د کم زورو د ازار له کبله په مرګ محکوم او په ۱۷۹۳ ز کال د جولای په ۲۱ نیټه یې اعدام کړ.

جګړه د فرانسویانو په ګټه چې د اکثرو ملتونو د ازادۍ مدعي ؤو، دوام پیدا کولو انګلیسیان او هالنډیانو ځانونه د مقاومت لپاره اماده کول (پیت) په لومړیو کې تېنګار کاوه چې فرانسه د هر ډول حکومت په جوړولو کې خپلواکه ده مګر وروسته یې مخالفت وکړ او ویې ویل چې

---

۱. عباسقلي غفاري فردي، تاریخ اروپا. م ۳۲۲.

انګلستان ته پر بلژیک باندې د فرانسې حکومت د منلو وړ نه دی. انګلیسان او هالنديان د پروس او اطریش ترمنځ د مذاکراتو لړۍ پیل کړه د ۱۷۹۲ ز کال د فبروري په لومړۍ نیټه فرانسویانو د هغوی سره د جګړې اعلان وکړ د بلژیک ټوله خاوره د فرانسویانو لاسته ورغله، په دې وخت کې د فرانسې د پراختیا غوښتنې او پرمختګ سیاسیت غوره کړ، د بلژیک، د رن چپې څنډې، ساوي او نیس یې د خپلې خاورې پورې وتړلې.

په خنیځ کې د فرانسې د قواو پرمختګ له امله د روسیې او پروس حکمرانانو یو د بل سره موافقه وکړه چې په ۱۷۹۳ز کال پولنډ بیا په خپل منځ کې وویشي-. اطریشیان چې په دې دویم ویش کې بې برخې او د خپلو ګټو لپاره په تشویش کې وو. اساسي علت، چې د فرانسې نوي جمهوریت چې د ټولې اروپا سره په جګړه کې وو، بریالیتوب ورکړ دا وو چې د مخالفینو د اتحاد د اړیکو سستوالی وو، څکه هالنډ او انګلیسانو چنداني ځمکنۍ قوه نه درلوده، پروس او اطریش یو بل ته فوق العاده بدبین وو او د پولنډ په ویش ګرم کې دومره وو چې د فرانسویانو پر ضد یې د ځواک لیږلو ته وخت نه درلود.[1]

د وخت په تیریدلو سره د کنوانسیون په داخل کې چې ټول ژاکوبینیان وه اختلاف منځته راغی، چې د مونتانیاران به یې ورته ویل د دې ګوند مشران عبارت وه له، ماکسیمیلین روبسپیر، دانتون، ژان پل مارا، کامیل دومولن او فابر دګلانتین څخه.

په ۱۷۹۴ ز کال د مونتانیارانو ترمنځ بې اتفاقي بیخې ښکاره شوه چې د روبسپیر له کړنو څخه یې سرچینه اخستله، روبیپیر د ترور په وخت کې د کنوانسیون دېکتاتور وه، نوموړی یو وطنپاله شخص وه اما د خپل فکر یې زغملی نه شو، څوک به چې هم د هغه له فکر سره موافق نه وه بیا به یې ځای ګیوتین وه. کنوانسیون د سیاسي خیانتونو د مسائلو لپاره یوه انقلابي محکمه او د خلاصون ملي کمیټه چې فوق العاده واک یې درلوده جوړې کړې. په دې توګه یې د اعدامونو لړۍ پیل کړه چې په ترڅ کې یې ګڼ شمېر مشران اعدام کړل.[2]

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۲۲۳-۲۲۵.

[2]. عباسقلي غفاري فرد، تاریخ اروپا. م ۳۲۶-۳۲۳.

**اتم) د (۱۷۹۳ - ۱۷۹۴) کنوانسیون (د ترور دستګاه)**

د هغه کنوانسیون کار چې روبسپیر یې په طرح کولو کې مرسته کوله، له دې څخه عبارت وه چې د ګډوډۍ، انارشیزم، طبقاتي جګړه، او د هېواد په داخل کې د انقلاب په وړاندې نهضت ته د پای ټکې کېږدي. کنوانسیون یې د اساسي قانون او دیموکراسۍ د اصولو مطابق جوړ کړ او د ټیټو طبقاتو لپاره یې د قوانینو بنسټ کېښوده، دغه کنوانسیون د دولت د چارو د اداره کولو لپاره یو لړ اختیارات د عمومي امنیت کمیټې ته ورکړي وه. د امنیت کمیټه له ۱۲ غړو څخه جوړه شوې وه چې پر کنوانسیون یې حکومت کاوه، د ریاست کولو طرز یې دوره یې ؤو، روبسپیر د دغې کمیټې یو قوي او پیاوړی غړی ؤو. د امنیت عمومي کمیټې او کنوانسیون د بغاوت او انقلاب د دفع کولو لپاره داسې تشکیلات جوړ کړي ؤو چې عامو خلکو د ترور د حکومت یا دستګاه په نوم یادولو. د عامه ساتنې په نوم یې یوه کمېټه تشکېل کړې وه چې په ټولو سیاسي دستګاوو یې د حکم چلولو واک درلوده.

ترور چې د داخلي دښمنانو په وړاندې د انقلابي جمهوریت د ساتنې لپاره رامنځ ته شوې وه، او هغه څوک یې هدف وه چې د جمهوریت په وړاندې متفق کېدل او ستونزې یې جوړولې. د ترور قربانیان د ماري انتوانت او د پادشاهي غوښتونکو څخه شروع شو او د انقلابي همکارانو (ژیروندیستیانو) په له منځه وړلو سره پای ته ورسیده، مخکې له دې چې ۱۷۹۳ او ۱۷۹۴ ز کلونه ختم شي، ځینې زاړه ژاکوپنیان چې په پیل کې یې د کنوانسیون د پروګرام په تطبیق کې همکاري کوله، ونیول شوه او له منځه یوړل شوه. اګر که د ترور په دوران کې چې د ۱۷۹۳-۱۷۹۴ ز کلونو کې څومره خلک وژل شوي د شمیر په اړه یې مبالغه کېږي خو په هر حال تقریباً د ۴۰۰۰۰ په حدودو کې خلک وژل شوي او ۱۰۰۰۰۰ په شمیر کې خلک نیول شوي او زنداني شوي دي.

د ترور دستګاه د خپلو قربانیانو نسب او درجې ته په احترام قایل نه وه او نه یې هم دغې چارې سره علاقه لرله، په سلو کې ۸ اشراف چې په سیاسي تحرکاتو تورن وه اعدام شوي وه، د ترور دستګاه د قربانیانو په سلو کې ۱۴ خلکو د بروژوازي طبقې تشکېلول، چې دا ټول د جنوبي شورشي ښارونو څخه وه، د مړو په سلو کې ٦ روحانیونو جوړاوه، په داسې حال کې

چې د قربانیانو په سلو کې ۷۰ د ځمکوالو او کارګرانو پورې اړه درلوده. د جګړې په جریان کې، د حکومت د اداره کولو لپاره د امنیت عمومي کمېټې د یو ډول اشتراکي دیکتاتورۍ او یا د جګړې کابینې بڼه خپله کړې وه، لوایح به یې تدوین او له کنوانسیون څخه به یې تېرول، د کنوانسیون د غړو په کړنو به یې څارنه کوله او همدارنګه د فرانسې په شورشي سیمو کې به یې د بغاوت د ارامولو لپاره دنده ترسره کوله.

د قوانینو د مجلې په نوم خپرونه یې پیل کړه تر څو خلک وپوهیږي چې کوم قوانین په کوم وخت کې باید اجراء شي. نوموړې کمیټې په جګړه کې د غلبې او کامیابۍ په موخه اعلان وکړ چې د هېواد ټول روغ او سالم خلک باید د سربازۍ خدمت ته ولاړ شي، د چارو د ښه پرمخ بیولو لپاره یې پوهان او دانشمندان استخدام کړل، د ترور په کال د پیسو په ارزښت کې نور کموالی رانغی، ځکه دولت د بازار کنترول په خپل لاس کې واخیست، چې دغې چارې د کنترول په مرسته د طلا د صادرولو، د سکې په ضبط، د فرانسوي اتباعو پواسطه د خارجي پیسو په نه کارولو، د احتکار د مخنیوي لپاره د قوانینو په تصویبولو، تمام شو.

د پوځي او جګړه یېزو ځواکونو او همدارنګه د غیر پوځي خلکو چې په ښارونو کې اوسېدل، خوراک او نور د ژوند اړونده اجناس او وسائیل د مصادرې د احکامو مطابق راټول او توزیع کېدل، چې دغه چاره د یو مرکزي واحد تر نظارت لاندې ترسره کېدله او دغه واحد د عمومي امنیت د کمیټې تابع ؤو، د قیمتونو او لاسي مزدوریو لپاره یوه نرخ نامه ټاکل شوې وه، چې د چارو د بحران په جریان کې د انفلاسیون او یا د پیسو د ارزښت د کموالي مخه ونیسي- مګر په عمل کې ډېر اغېز لرونکی نه ؤو چې تر څو د اسلحې او مهماتو په تیارولو کې مرسته وکړي.

نوموړې کمیټې د ۱۷۹۳ ز کال د جون په میاشت کې اساسي قانون تیار او د کنوانسیون له لارې یې په تصویب ورساوه. کمیټې خپل نیتونه داسې څرګندول چې غواړي د ټولنې بې برخې طبقې له لورې قوانین تدوین او د اجراء لاندې ونیسي-، اقتصادي نظام او قیمتونه یې کنترول کړل، د اربابي رژیم وروستنې پاتې شونې هم له منځه لاړې. دهقانان د غرامتونو د ورکولو د قید څخه خلاص شوه. دهقانانو لپاره د ځمکې اخستل اسانه شوه، د عمومي امنیت کمیټې تر دې اندازې مداخله کوله چې د شکمنو خلکو د مالونو د ضبط لپاره یې هم اقدامات

ترسره کړل. که دغه شکمن خلک به روحانیون او یا مهاجر شوي پادشاهي غوښتونکي وه، د دوی مالونه به یې وطن پالونکو ته ورکول. مګر دغه قوانین داسې تدوین شوي وه چې د اجراء کولو وړ نه وه، نو ځکه د حاکمې کمیټې له لورې د تائید وړ ونه ګرځیدل. په دغه وخت کې یو ډله د ترور د دستګاه په منځ کې جوړه شوه چې په هبرتیستیانو باندې مشهوره وه چې د ترور دستګاه د افراطي ډلو یوه ځانګه ګڼل کېده، دغه ډله د تاجرانو او بورژوازانو سخته مخالفه وه او د انقلاب ضد مذهبي ډلو څخه شمیرل کېدله.

مګر د دغې ډلې د حد څخه زیات افراطي کړنې د دې باعث شوې چې کمیټه له کوم شفقت او ترحم پرته د هبرتیستیانو په وړاندې اقدام وکړي او په ۱۷۹۴ ز کال د مارچ په میاشت کې یې د دغې دلې مهم غړي له منځه یوړل، او انقلابي اردو یې هم منحل کړه، په دغه وخت کې روبسپیر د کومون په مرسته د پاریس انقلاب له منځه یوړ او د چارو په رأس کې یې خپل طرفدار خلک وګمارل.

د ۱۷۹۴ ز کال د پسرلي پورې فرانسې د ۸۰۰۰۰۰ سپرو اردو خاونده شوه، چې تردې وخته پورې هېڅ اروپائي هېواد په دومره زیات شمیر کې ځواکونه نه درلودل، دغه انقلابي اردو چې د قوي روحیې درلودونکې وه د بلژیک د فلوور په جګړه کې بری حاصل کړ.

د سیل اسا جمهوري ځواکونه د هالنډ خاورې ته ننوتل، خو شپږ میاشتې وروسته د ځمکې مخ یخ وپوښه نو د دغه نظام سپاره ځواکونه امستردام ته ننوتل.

روبسپیر او د امنیت عمومي کمیټه د دومره کامیابیو سره سره د هېواد ټول ګوندونه د خپل ځان لپاره جوړ کړي ؤو، د پاریس پرولتاریا رادیکالونو نور د روبسپیر تر شاه نه ؤو او د دانتوان له مرګ څخه وروسته ملي کنوانسیون د حاکمې کمیټې څخه په ویره کې وه مګر بیا هم د روبسپیر او د هغه د یارانو سرنوشت د دوی د افراط، ترور او وحشت له امله داسې وټاکل شو چې د کنوانسیون له لورې ونیول شو او له منځه ولاړل.

د دوی او د ملګرو کړنې چې یو کال مخکې یې د ژیروندیستانو په له منځه وړلو سرته رسولې وې د دوی د افراطي کړنو د معیارونو څخه شمیرل کېږي.[1]

## نهم) مدیره هیئت (دیرکتور) ۱۷۹۵ - ۱۷۹۹ ز کال

د روبسپیر له وژلو وروسته، د مؤسسانو له مجلس څخه بورژواز چې انقلاب یې رهبري کاوه تصمیم ونیوه، چې مشروطه جمهوري وازمایي او نوی اساسي قانون یې ولیکلو چې د دریم کال د اساسي قانون په نوم شهرت لري، او په ۱۷۹۵ ز کال اجراء شو. نوموړي قانون د رایې ورکولو عمومي حق لغوه کړ او د رایې ورکولو حق یې یواځې مالیه ورکوونکو پورې محدود کړ. د قانون جوړونې واک یې د مقننه هیئت په لاس ورکړ چې د ۵۰۰ نفري شورا او بلې (۲۵۰ مشران) شورا څخه جوړه شوې وه او هر کال به نوې کېدله. د اجرائیه قوه واک پنځه نفري مدیره هیئت او څو وزیرانو ته ورکړل شو، چې له دغه هیئت څخه هر کال یو یو تن د قرعه کشی له لارې عزل کېدلو، دغه معتدل اساسي قانون مونتانیارانو ته او نه هم نورو ته د پاملرنې وړ وه. اما ملت ته د منلو وړ وو.[2]

د فرانسې لومړنی جمهوریت چې په رسمي ډول د مدیره هیئت په نوم شهرت لري جوړ شو یوازې څلور کاله یې دوام وکړ، دا ځکه چې دغې مدیره هیئت د اجتماعي لحاظه په ضعیفه موقف کې قرار درلود، کوم نوی اساسي قانون چې جوړ شوی وه له فرانسې سربیره بلژیک د خپلې خاورې برخه ګڼله، اساسي قانون جمهوریت په دې مکلف کړ چې په پوره توانائې سره د خپل هېواد د خاورې د پراختیا لپاره اقدامات وکړي، د ۱۷۹۵ ز کال په وروستیو کې د اساسي قانون په اساس قدرت مدیره هیئت ته چې له ۵ مدیرانو څخه جوړ شوی وه، انتقال شو.[3]

په دغه وخت کې دوه مجلسونو شتون درلود چې یو یې لاندېنی مجلس چې ۵۰۰ غړي یې درلودل او بل پورتنی مجلس چې ۲۵۰ غړي یې درلودل چې د لویانو شورا په نوم هم مشهور وه، نوموړو مجلسونو اجرائیه هیئت (چې د مدیره هیئت په نوم ایجاد شوی وه) ټاکلی وو چې

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۶۳۵-۶۲۸.
[2]. عباسقلي غفاري فرد، تاریخ اروپا. م ۳۲۶.
[3]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۶۳۵-۶۲۸.

له همدې امله ټول رژیم د دایرکتر (مدیره هیئت) په نوم شهرت پیدا کړ. له ټاکنو وروسته په ۱۷۹۵ ز کال د اکتوبر په ۲۶ نېټه کنوانسیون منحل شو او د اکتوبر له ۲۷ نېټې څخه مدېره هیئت په کار پیل وکړ چې د ۱۷۹۹ ز کال د نومبر تر ۱۹ نیټې پورې یې دوام وکړ.[۱]

ډیرې خلک په دې فکر کې شول چې د دویم ځل لپاره پادشاهي حکومت رامنځ ته کړي. کنوانسیون د خپلو غړو د ساتلو لپاره اعلان وکړ چې د ۵۰۰ نفري شورا او یا د پورتنۍ شورا لپاره چې غړي ټاکل کېږي باید دوه پر درې برخه یې د پخواني کنوانسیون غړي وټاکل شي، چې د دغې مداخلې پر وړاندې په پاریس کې پادشاهي غوښتونکو بغاوتونه پیل کړل.

مگر مدیره هیئت د خپل ځوان نظامي جنرال څخه چې ناپیلیون بناپارت نومیده غوښتنه وکړه چې د پادشاهي غوښتونکو د دفع کولو لپاره اقدامات وکړي نوموړي هم دغه چاره سرته ورسوله نو په دې توگه نوموړی مشروطه جمهوریت له پیل څخه د نظامیانو په ملاتړ تکیه وکړه.

نوي رژیم په ښي او کېڼ دواړو لوریو کې دښمنانان درلودل، په ښي اړخ کې یې دښمنان پادشاهي غوښتونکي وه، تر دې چې په پاریس کې د پارلمان دواړه مجلسونه د وضعیت په تشنج بوخت ؤو، او همیش به د ۱٦ لویي د ورور کنت درو پرانس سره په اړیکه کې وه او هغه ته به یې ۱۸ لویي وایه. ۱۸ لویي خپله قرارگاه په ایټالیا کې جوړه کړه او له هغه ځایه یې فرانسې د رژیم په خلاف تبلیغاتي مرکزو ته هدایات ورکول چې د دغې مصارفو لویه برخه د انگلستان له لورې تمویل کېدله.

کېڼ اړخې ډله د کاگرانو د نهضت څخه جوړه شوې وه، چون دغې ډلې د خپلو غوښتنو د پوره کولو لپاره په پارلمان کې هېڅ وسیله نه درلوده، نو په پټ او مخفي ډول یې د بل انقلاب د رامنځ ته کولو لپاره په توطېه پیل وکړ، چې تر ټولو مهمه نمونه یې د گراگوس بابوف په مشرۍ د مساوات غوښتونکو توطیه وه. نوموړی د داسې ټولنې طرفدار وه چې په هغې کې انفرادي ملکیت او پارلماني حکومت شتون نه درلوده، نوموړي داسې دعوه کوله چې دی کولې شي

---

۱. عباسقلي غفاري فرد، تاریخ اروپا. م ۳۲۷-۳۲٦.

خصوصي سرمائیه له منځه یوسي او پرځای یې د اقتصادي او اجتماعـي وضعیت د ښـه کېـدو لپاره یو ښه پروګرام جوړ کړي، د نوموړي د همـدې نظریـاتو لـه املـه لـه ده وروسـته کمونسـت لیکوالانـو د هغـه وینـاوې پـه لـوړ مقـام کـې ګڼلـې، مـدیره هیئـت بابوفیسـتیان د ځمکـې پـه اصلاحاتو او د شورش په توطیه تورن کړل په ۱۷۹٦ ز کال یې ونیول ځینـې یـې لـه دوی څخـه په ۱۷۹۷ ز کال اعدام کړل او ځینې نور یې له هېواد څخه تبعید کړل.[۱]

[۱]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ٦۳۹.

# څلورم څپرکی

## د ناپلیون قدرت ته رسېدل او د هغې دوره

په دې څپرکي کې به د ناپيليون قدرت ته د رسيدلو په څرنګوالي او د حکومت په ډول په تفصيلي ډول بحث وشي.

### د ۱۷۹۷ز کال سیاسي بحران

په ۱۷۹۷ ز کال د مارچ په میاشت کې په فرانسه کې لومړني ریښتیني ازاد انتخابات ترسره شول، ترڅو د مجلسونو د غړو درېمه برخه نوې شي، د ۲۱٦ دایمي غړي تقاعد شول چې د دې له ډلې ۱۵۰ نفرو د بیا ځلي غړیتوب غوښتنه وکړه، ۱۳ نفرې ترې وټاکل شوه.

ناپیلون په ۱۷٦۹ ز کال د فرانسې سره د کورس د جزیرې له یوځای کېدلو څخه لږ وروسته په یوه اشرافي کورنۍ کې زیږېدلی دی، نوموړي خپلې زده کړې د فرانسې په نظام کې ترسره کړې او د بوربون په اردو کې د افسرۍ تر درجې ورسېده، خو په پخواني رژیم ناشونې وه چې له دې پورته درجو ته ورسیږي. په ۱۷۹۳ ز کال د ژاکوبن له ډلې یو پر شوره افسر- وه چې له تولون څخه د انګلیسي قواو په وتلو کې یې ګټور رول ترسره کړی وو. چې د ترور حکومت نوموړي ته د ډلګی مشر (سرتیپه) مقام ورکړ، په ۱۷۹۵ ز کال بناپارت د کنوانسیون لپاره د سلطنت غوښتونکو پاڅونونه او مظاهرې ټکولې وې، په ۱۷۹٦ ز کال یې یې د لښکرو مشر- وټاکه چې په دوو جګړو کې نوموړی د آلپ له غرونو څخه تېر شو او په ایټالیا کې یې اتریش ته ماتې ورکړه او له ایټالیا څخه یې غنیمتونه پاریس ته راولیږل او په دې توګه یې پاریس په ځان متکي کړ، او د خپل ځان لپاره یې سیاستونه جوړ کړل، او د یو واکدار شهزاده په توګه یې

خپل دربار جوړ کړ. له هغې وروسته یې د مصر په لوري پام واوښت، کله چې له مصر ـ څخه بیرته راستون شو.

په عمومي توګه د مدیره هیئت قصد دا وه چې کـه چیرې اتـریش پـر بلژیـک بانـدې د فرانسویانو حاکمیت په رسمیت وپیژني، نو د ایټالیا شمال به ورته وسپارل شي، اما بناپارت بیا ټېنګار کاوه چې فرانسه باید دواړه (بلژیک او د ایټالیا شمال) په خپل واک کې وساتي، نـو پـه دې توګه ناپیلیون اړتیا لرله تر څو په مرکزي حکومت کې پراختیا طلبه جمهوري غوښتونکي قدرت ته ورسیږي، نو په دې توګه له ۱۷۹۷ ز کال ټاکنو څخه واوښت. چې له دې وروسته په فرانسه او اروپا کې یو لړ تغېرات منځ ته راغلل.[1]

## لومړی) د ۱۷۹۹ ز کال کودتا (ناپیلیون بناپارت قدرت ته رسېدل)

وروسته له دې چې مدیره هیئت یو ډول دیکتاتوري له لاس لاندې ونیوله، بغاوتونه او قیامونه یې وټکول، انتخابات یې باطل اعلان کړل، ګڼ شمیر چپي او ښي ډلې یې تصفیه کړې، خو بیا هم مدیره هیئت په دې ونه توانیده چې د خپل ځان په اړه د خلکو اعتماد راجذب کړي، دولت ونه شو کړای چې د هېواد مالي وضعیت ښه کـړي، پـه لویدیځـه برخـه او ټولـه فرانسـه کـې د جنګیالیو غیرمنظم فعالیتونه د دویم ځل لپاره شروع شول، مذهبي مشکلات تر ټولو سخت او شدید شوه، او همدارنګه مدیره هیئت د سرکښه ځیرو په اړه په جدي اقداماتو لاس پـورې کـړ. په دغه وخت کې ناپیلیون بناپارت د یو وړ فرصت او موقع په انتظار کې وه څرنګه چې نوموړی د یو قهرمان په نوم د ایټالیا څخه راستون شوی ؤو، تصمیم یې ونیوه چې په مصر حمله وکـړي وروسته له دې چې خپلې قواوې یې د مصر په لـورې پیـاده کـړې، چـې دغـه چـاره د روسـانو د ویرې باعث شو. ځکه روسانو هم نزدې ختیځ خیالونه په سرکې ګرځیدل، اطریش هم د المان په خاوره کې د فرانسویانو نویو ترتیبـاتو پـه ویـره کـې اچـولې ؤو. لـه همـدې املـه یـو نـیم کـال وروسـته د اطـریش، روسـیې او انګلسـتان تـرمنځ د (کـامپوفورمیو) تـړون لاسـلیک شـو چـې وروسته د دویم ائتلاف په نوم مشهور شو. په ۱۷۹۸ ز کال کې د انګلستان بحري ځواکونـو پـه

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۶۴۰- ۶۴۴.

رود نيل (ابوقير)کې ډېر برياليتوبونه لاسته راوړل او په دې ډول يې د فرانسوي ځواکونو اړيکې د بهرنيانو سره قطع کړې. په ۱۷۹۹ ز کال د مارشال سواروف په مشرۍ روسي ځواکونه د غرب په لورې وړاندې لاړل او تر دې چې خپلې جگړې يې په سويس او ايټاليا کې پرمخ بيولې.

په دغه وخت کې هغه فرصت او موقع چې ناپيليون ورته منتظر وه رامنځ ته شوه، ناپيليون بناپارت خپل عسکر په مصر کې پرېښودل او فرانسې ته راغی. يعنې په ۱۷۹۹ ز کال د نومبر په ۹ نېټه د مديره هيئت يوه غيرنظامي ډله د وضعيت د تغير په فکر کې وه، نو د خپل هېواد وضعېت يې خراب په نظر ورغی، مديريت هم خپل حېثيت له لاسه ورکړی وو او هېڅ محبوبيت يې نه درلوده، بالاخره د مديره هيئت درې تنو په ۱۷۹۹ ز کال استعفی ورکړه. د نومبر په نهمه نېټه يوه غونډه جوړه شوه چې ناپيليون هم په دې غونډه کې گډون وکړ، د نوموړې ادعا کوي چې د ده د عزت په وړاندې توطېه جوړه شوې وه، نو په دې غونډه کې يې وينا وکړه چې له سوړ هرکلي سره مخامخ شوه، د نوموړي مبهمو توضحياتو ته پاملرنه ونه شوه، او په دې لټه کې شول چې ناپيليون د قانون له ملاتړ څخه بې برخې کړي. د پنځه سوه نفري شورا غړي د سربازانو له لوري ډلې ډلې کړای شول، د مشرانو شورا د مديره هيئت په حذفولو رايه ورکړه، او دغه پريکړه د پنځه سوه نفري شورا څخه درې سوه حاضرو غړو چې د ناپيليون بناپارت د ورور لوسين بناپارت په مشرۍ جوړه شوې وه، تائيد کړه. نوموړو شورا گانو درې کنسولان په مؤقت توگه د اساسي قانون د تغېر لپاره وټاکل. دغه کودتا په ښه او ارامه توگه د ملت لخوا ومنل شوه، او هېڅا داسې گمان نه کاوه چې دا به د جمهوري د سقوط سريزه وي، د قانون طرحه جوړه شوه او کوم اصلاحات چې ناپيليون په دغه طرحه کې راوړي وه له هغې سره يوځای د ملت رايې ته وړاندې شول چې د رايو په غوڅ اکثريت سره تصويب شول، چې د همدې قانون پر بنسټ حکومت د درې کنسولانو ( ناپيليون، کامباسرس او لوبرن) لاسته ورغی. کنوانسيون د داسې شخص په لټه کې وه چې د دوی غوښتنې او اميدونه د هغه په شتون کې ترلاسه کړای شي. نو د دې کار لپاره يې ناپيليون بناپارت وټاکه، چې د ۳۰ کالو څخه ډېر عمر يې نه درلوده. ناپيليون او پيروانو يې د قهر په قوي پورې تړاو پيدا کړ. په ۱۷۹۹ ز کال د نومبر په نهمه نېټه لکه وړاندې چې يادونه وشوه د (Brumaire) يعنې مسلحو

سربازانو د قانون جوړونې د مجلس څخه د شورا غړي لیرې کړل او پر ځای یې نوی جمهوري نظام اعلان کړ، چې د ناپیلیون بناپارت د تصمیم پر بنسټ د هغوی حکومت یې کنسولي حکومت ونوماوه چې په رأس کې یې درې نفره کنسولانو شتون درلوده.

سره له دې چې ناپیلیون بناپارت ټوله میاشت په خپلو لنډو ویناوو کې ټولو ته اطمینان ورکاوه چې د خلکو د استازو د مقدسو اصولو څخه د دفاع تصمیم لري، اما دغې اخرۍ کودتاه انګیزه هماغه د دیکتاتورۍ استقرار وه. دغه کودتاه په هېڅ شکل په پاریس کې بغاوتونه او شوروشونه رامنځ ته نه کړل، په ټوله فرانسه کې خلکو دغه تغیرات په شوق او مینه سره ومنل، او د کنسولانو د کارونو نتیجو عملاً جمهوري نظام ته استحکام او قوت ورکړ، او د هغې نیمګړتیاوې یې رفع کړې.[۱]

## دویم) کنسولي حکومت

د کنسولي حکومت په دوران کې فرانسې یو ځل بیا د روشنفکرۍ سره یوځای استبدادي نظام رامنځ ته کړ، او کولای شو چې ناپیلیون بناپارت د وروستي مبارز روشنفکر استبدادي حکمرانانو څخه وګڼو. نوی رژیم له شک پرته له پیل څخه استبدادي ؤو، داخلي خپلواکي چې انتخابي هیئت له لارې صورت نیوه له کومې ملاحظې پرته له منځه لاړ، ناپیلیون ظاهراً د حاکمیت د حق په منځ ته راتګ سره ډېر علاقمند ښکاریده.

ناپیلیون د نورو ټولو مستبدو روشنفکرانو په څیر قوانین تدوین کړل، او د ټولو هغو قوانینو څخه کوم چې د رومیانو له وخت څخه راپاتې شوي دي، د ناپیلیون قوانین یې تر ټولو مشهور دي. د برومر څخه وروسته د څو هفتو په ترځ کې یې یو مدون اساسي قانون ریفرنډم(ټول پوښتنې) ته وړاندې کړ، چې د ملت لخوا تائید او د اعتماد رائیه ورکړل شوه. په ظاهري ډول نوی اساسي قانون حکومت په پارلماني ډول منځ ته راوړ. په هغه وخت کې په عام ډول یوازې نارینه ؤو د رائیه ورکولو حق درلوده، او خلکو یوازې د مبارزو اشخاصو د انتخاب حق درلوده په کنسولي رژیم کې تردې چې مبارزه کوونکو اشخاصو هم د خپل ځان د انتخاب حق نه درلوده،

---

۱. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۶۴۴—۶۴۶.

دغه ډله یوازې هغه خلک وه چې دولت کولې شو د هغوی له منځ څخه اشخاص په ځانګړي ډول مختلفو منصبونو او چوکېو ته وګماري، که چېرې دغه خلکو به د قانون جوړونې په مجلسونو کې ناستې کولې نو د طرحو او لوایحو د تدوین حق یې نه درلود او نه یې د قوانینو په اړه د بحث او خبرو کولو حق درلوده.

همدارنګه تریبوني(Tribunate) دستګاه شتون درلوده چې دنده یې مذاکرات کول وه مګر په هېڅ شکل یې د لوایحو د تصویب حق نه درلود. یو محافظه کاره سنا مجلس هم شتون درلوده چې په هغې کې ډیری د پاچا داسې طرفداران چې سرې او تودې ورځې یې لیدلې وې راټول شوي ؤو، او دنده یې په عمومي وظیفو باندې د مبارزه کوونکو اشخاصو ټاکل وه. په نوي حکومت کې تر ټولو مهم سازمان حکومتي شورا وه چې اصلاً په پخوانیو دورو کې جوړه شوې وه، دغې شورا مهم لوایح تیارول چې په غالب ګمان سره دغه چاره هم لومړي کنسول د نظارت او ریاست لاندې ترسره کېدله. د نویو قوانینو زیاترو برخو د فرانسویانو د کورني ژوند بڼې له پخواني دوران څخه منعکس کولې، او د فرانسې ممیز صفاتو ته یې هم شکل ورکړ، کوم چې له هغې ورځې څخه تر اوسه پورې پاتې دي، یعنې داسې یوه ټولنه یې منځ ته راوړه چې د اجتماعي له نظره بورژوازي، حقوقي اړخه مساوات غوښتونکې او په تشکېلاتي لحاظ د سلسله مراتبو غوښتونکې وه.

اجرائیه قوه یې په دریو کنسولونو باندې ویشلې وه چې د لس کالو لپاره به یې وظیفه ترسره کوله خو په بعضې وختونو کې کېدلی شو چې نوي اشخاص هم ورته وټاکي. د راتلونکو کنسولانو د انتخاب حق به د سنا سره ؤو خو په دغه وخت کې قانون په صریح دول د کنسولانو نومونه ذکر کړي ؤو. داسې چې لومړی کنسول: ناپیلیون بناپارت، دویم کنسول: کامباسرس، دریم کنسول: لوبرون، وه.

یوازې لومړی کنسول د حقیقي قدرت څخه برخمن وه، هغه کولی شو کوم وزیران چې یوازې ده ته مسؤل ؤو لیرې کړي او یائې وټاکي، دولتي مشاورین، سفیران، صاحب منصبان او نور کار کوونکي مقرر کړي، او یائې له دندو لیرې کړي. قاضیان هم استثناءً د سولې قاضي، د تمیز غړي په توګه د لومړي کنسول له لورې ټاکل کېدل مګر هغوی د لیرې کولو حق یې نه درلوده.

په جګړه کولو اقدام، او یا د تړونونو منعقد کول هم د لومړي کنسول د وظایفو څخه ؤو خو به دې شرط چې د مقننه هیئت لخوا مخکې له مخکې تصویب شوی وي.

مقننه قوه د لومړي قنسول او دري مجلسونو په لاس کې وه په دې ډول درې مجلسونه عبارت وه له دولتي شورا، تریبونا د سل غړو، مقننه هئیت د درې سوه غړو څخه تشکیل ؤو. یوازې لومړني کنسول کولای شو قانون پیشنهاد او یا تصویب کړي. د دولتي شورا وظیفه د قوانینو جوړول او د تریبونا مجلس کار مذاکره، د قانون ردول یا تصویبول وه.

د سنا مجلس چې د اساسي قانون له مخې د درې واړه مجلسونو څخه پورته ؤو. اصولاً سنا باید خپل غړي چې ۸۰ نفره وه، وټاکي. سنا دوه وظیفې لرلې، یو د کنسولانو، تریبونا، مقننه مجلس او د تمیز دیوان ټاکل، او بل د اساسي قانون ساتل چې د دې پر بنسټ سنا د کنسولانو یا تریبونا مجلس د اعتراض پر عنوان کولای شو چې قانون په دې شرط چې مخالف وي، رد کړي په دې شرط چې موافق وي ومني.

بله مسئله چې د ناپیلیون بناپارت موقعیت یې ټینګ کړ هغه دا چې د سولې زیرې یې وکړ، او په خپلو وعدو یې وفا وکړه. روسانو له جګړې لاس واخیسته. د جګړې په ډګر کې ایټالیا او ناپلیون د اطریش سره مخامخ ؤو، چې ناپیلیون یو ځل بیا د آلپ د غرو څخه په تیریدو په ۱۸۰۰ ز کال د جون په میاشت کې د مارنګو (Marengo) په جګړه کې اتریش ته ماتې ورکړه. د ۱۸۰۱ ز کال په فبروري میاشت کې اطریش د لونه ویل(Luneville) په نامه د سولې تړون لاسلیک کړ چې په هغې کې د کامپوفورمیو د تړون مقررات تائید شوي ؤو. یو کال وروسته په ۱۸۰۲ ز کال د مارچ په میاشت کې فرانسې د انګلستان سره هم سوله وکړه.

په ۱۸۰۲ ز کال کې د فرانسې جمهوریت د پاپ د دستګاه او ټولو اروپائي هېوادونو سره په سوله کې ژوند کاوه او سرحدونه یې د رن سیند پورې رسیدلی ؤو، په هالنډ او ایټالیا کې د فرانسې تابعیت کېده، د لومړي کنسول محبوبیت دومره زیات شوی ؤو چې په ۱۸۰۲ ز کال د خلکو رایو ته په مراجعې سره د کنسول تصدي په رسمي ډول ورکړل شوه. په ۱۸۰٤ ز کال نوي اساسي قانون د عمومي رایو له لارې جوړ او تصویب شو چې د هغې په واسطه جمهوري

حکومت یو امپراطور ته ورکړل شو. کنسولي حکومت د بناپارت په شخصي امپراطورۍ تبدیل شو.

د فرانسې په داخل کې هم سوله او ارامي رامنځته شوه. بناپارت دا کار تر یوې اندازې پورې د مخفي پولیسو د دستگاه پواسطه سرته ورساوه مگر دا کار زیاتره د مرکزي پیاوړي دستگاه له لوري وشو چې په هغې کې د هر ولایت لپاره یو نفر چې د داخلي وزارت د اوامرو لاندې ؤو، وټاکل شو. او په ښه شکل سره یې د خپلې حوزې څارنه کوله.

بناپارت د هېواد ریښتینی حکمران او واکمن ؤو. او هرڅه یې چې غوښتل کول به یې، د نوموړي تصمیمونه او تدابیر په پیل کې معتدل او سوله غوښتونکې وه. مالیاتي سیستم یې پلی کړ، د فرانسې په اداري جوړښت کې تجدید نظر وشو، بناپارت د عمومي عفوې وړاندیز وکړ مهاجرینو ته یې د بیرته راتگ بلنه ورکړه، د سلطنت ډېری طرفداران، اشراف او مسافر خپل هیواد ته راستانه شول. له دې چارې څخه د ناپیلیون موخه دا وه نر څو خلک د ده لپاره دنده سرته ورسوي او یو د بل پر وړاندې له مخالفت څخه لاس واخستل شي.

ناپیلیون بناپارت د کلیسا سره د جوړښت له لارې دغه ستونزه هم حل کړه، کلیسا بیا له سیاست څخه لاسون لنډ او د عبادت او مذهبي مراسمو لپاره ځانگړې شوې.

ناپلیون د فرانسې په لویدیځ کې سرکشه پاڅون کوونکي له ترحم پرته له منځه یوړل، د لاره وهونکو د ټکولو لپاره چې د خوشحالۍ په ورځو کې به یې خپل فعالیت ته پراختیا ورکوله، اوپه عین وخت کې د سلطان یو شمیر طرفداران د یو پروگرام له مخې ونیول شول او وروسته اعدام شول.

دولت او کلیسا بیا هم چندان ښه جوړ نه ول، ځکه یو شمیر روحانیون اوس هم دې ته حاضر نه وه چې جمهوریت په رسمیت وپیژني. بناپارت تصمیم ونیو د دې ستونزې د حل لپاره د پاپ سره مذاکرات وکړي، په ۱۸۰۱ ز کال د (کنکوردا) د تړون په لاسلیکولو سره د کاتولیک مذهب د فرانسې د اکثریت مذهب شو. د کلیسا سره د سولې په واسطه جوړښت رامنځته شو. حتې سخت سلطنت غوښتونکي هم د دې تگلارې سره یو ځای شول اگر که ناپلیون به په مصرکې ځان مسلمان، په فرانسه کې ځان کاتولیک او د پوهانو په ډله کې یې ځان د ازاد

فکر خاوند ګاڼه. د دې سره سره بناپارت دکلیسا اهمیت درک کاوه، د دویم ځل لپاره دکاتولیک مذهب بازار ګرم شو. په دې وخت کې د سرکشه خیرو یو شمیر چې د انقلابي ضد نهضتونو د پیدا کیدو سبب کېدل په دې اړه ناپیلیون بناپارت وویل: (چې نن ورځ پنځوس مهاجر اسقفان، د انګلستان په مالي مرسته د فرانسې د روحاني طبقې مشر- شوی دی، د ناپلیون په باور د هغوی قدرت باید مات شي. هغه ادعا وکړه چې د دې کار لپاره د پاپ قدرت ته اړتیا لري). لکه پورته مو چې ورځخه یادونه وکړه ناپیلیون په دغه چاره کې بریالی شو او د پاپ سره یې تړون لاسلیک کړ. چې دا کار قانوني روحانیون یا د انقلابیونو طرفداران د واتیکان د اداري دستګاه د انظباط لاندې شو. د کاتولیکانو تشر-یفاتو د عامه خلکو په حضور کې د هغې د جملې ځخه د ګروپونو حرکت نوې اجازه تر لاسه کړه. د کلیسا اړوند ښوونیزې مدرسې بیرته ازادې شوې مګر بناپارت او انقلابیانو زیاته ګټه وکړه. په حقیقت کې پاپ د جمهوریت سره په تړون لاسلیکولو سره فرانسه په رسیمت وپیژاندله، کلیسا تر دې پورې حاضره شوه چې د پخواني عشر او د کلیسا پخوانیو ځمکو په اړه هیڅ ډول یادونه ونه کړي. د پاپ استازي په مذاکراتو کې موافق راغلل چې مذهبی اسانتیاو بنسټ له منځه یوسي. د روحانیونو طبقې د عشر او هغه مالونو په بدل کې چې د لاسه یې ورکړي ؤو د حکومت له لوري د ثابت معاش خاوندان ؤو. مګر بناپارت د هېواد د رسمي کلیسا د مفهوم د له منځه وړلو لپاره پروتستانت کشیشان د حکومت ځخه د حقوقو اخیستونکي کړل.

ځرنګه چې سوله او نظم رامنځته شوه کنسولي حکومت د قانون جوړونې بحثونو او اداري چارو ته متوجه شو. نوي حکومت ځانته یو روښانه ښه غوره کړه چې په هر لحاظ د فیوډالي حکومت ضد ؤو. ټول عمومي اختیارات د دولت استازو ته ورکړل شوي ؤو په حقوقي لحاظ هیڅوک د چا فرمان لاندې نه ؤو. مګر په حکومت کې نور طبقاتي مجلس شتون نه درلوده، او نه هم حقوقي طبقات، امتیازات، محلي ازادي ګانې، میراثي منصبونه، د املاکو اصناف، قضات، دولتي مامورین او د اردو افسرانو معلوم حقوق درلودل، د نظامي رتبو او چوکیو، او د هیواد د مهمو شغلونو اخستلو او خرڅولو نور امکان نه درلود. په دولتي خدماتو کې یوازې د لیاقت او پوهې په بنسټ یو چا کولای شو چې رتبه واخلي. د دې ځخه وروسته مالیات سیمه

پېزو خلکو په واسطه نه راټوليدل، بلکې د مؤظفو مامورينو په واسطه چې همدا يې مسلک ؤو راټوليدل، اميد کيده چې ټول خلک خپل ماليات ورکړي، ډېر لږ شمير خلک په دې توانيدل چې د مالياتو له ورکولو څخه ځان بچ وساتي. نور نو ماليات د حرج او مرج کېسې نه وې، چې ډول ډول صندقونه به ورته ايښودل کېده. ماليه د هېواد د مالي چارو په خزانه کې راټوليدل، يو ډول بوديجه منځ ته راغله، چې مرکزي حيثيت يې درلوده، حکومت کولای شو چې مروجې پيسې ثابتي وساتي، د مالي چارو د مرستې لپاره حکومت يو بانک پرانيسته، او هغه د فرانسې د کاغذي پيسو خپروونکی بانک شو.

ناپليون بناپارت د نورو استبدادي روشنفکرانو غوندې د قوانينو په جوړولو پيل وکړ، د ټولو هغه قوانينو څخه چې د روميانو د وخت څخه پاتې دي تر ټولو مشهور قوانين د ناپليون قوانين دي، مدني قانون چې (اکثره به لنډ ول هغې ته ناپليوني قوانين وايي) د مدني محاکمو او جزايي محاکمو اصول، جزايې قانون او داسې نور. دغو قوانينو فرانسه په قضائي لحاظ سره متحد کړه، د حقوقو مساوي والی يې ايجاد کړ، په دې معنی چې د فرانسې ټول اوسيدونکي د يو ډول مدني حقوقو خاوندان شول چې دغه قوانين د عقل پر بنسټ جوړ شوي ؤو، ځکه دوی عقيده درلوده چې محلي رواجونه، عرف او عادات يوازې د قضايي سوابقو سره کافي ندي چې يو چاره په عمل کې قانوني کړي. او مثبت قانون بايد په يو ډول د طبيعي قانون سره منطبق وي. د ملکيت لپاره يې نوی قانون تدوين کړل، د قراردادونو قانون، قرضونه، سهامي شرکتونه او دې ته ورته مسائيل يې داسې ترتيب کړل چې د اقتصاد لپاره يو قضائي چوکاټ رامنځ ته کړي چې په تجارتي او خصوصي مؤسساتو بناء وي. د نورو پخوانيو رژيمونو په څير يې د کارگرانو اتحادېې ممنوع کړلې، د کارگرانو سره يې تيز رفتاري وکړه، داسې چې په محکمه کې د هغوی بيان د قضاتو په مقابل کې د قبول وړ نه ؤو، چې دا پخپله د قانون په مقابل کې د افرادو د مساوي حقوقو څخه ښکاره تناقض وه. جزائې قوانينو تر يوې اندازې پورې دولت سرّه د جرم د کشف د وسايلو په زياتوالي کې مرسته وکړه. همدارنگه افرادو ته د قانوني تورونو په وړاندې د دفاع حق تفويض شو، په کورنيو مسائيلو کې لکه (ودونه او عرفي طلاق) په نوي

قانون کې په رسميت وپيژندل شو، مګر د ښځو اختيارات يې د اموالو په مقابل کې ډېر محدود کړل او د پلار لپاره يې د کوچنيو ماشومانو د ساتنې او حمايت زيات اختيارات ورکړل.

د نويو قوانينو زياتې برخې د فرانسوي کورنيو د ژوندانه د پخوانيو رژيمونو د دوران منعکسونکي ؤو، او د فرانسې ځانګړي صفات يې څرګند کړه چې د هغې ورځې څخه تر ننه پورې باقي پاتې دي، يعنې داسې يوه ټولنه يې رامنځ ته کړه چې په اجتماعي لحاظ بورژوا، په حقوقي لحاظ مساوات غوښتونکي او په تشکيلاتي لحاظ د سلسله مراتبو او اداري نظام تابع وه. همدارنګه د ناپيليون بناپارت ټولنيز سياست د انقلاب د وخت د اصلاحاتو يوه برخه له منځه يوړه، د سلسله مراتبو استقرار او هدف د شتمنۍ له مخې وه. نو د مدني قانون په تدوينولو سره د هغې په بنسټ د شخصي- ازادۍ، برابرۍ او عقايد محترم وپيژندل شو همدارنګه په دې قانون کې بوروژازي څخه حمايت شوی ؤو.

د کنسولي حکومت د پيدايښت سره په فرانسه کې انقلاب پای ته ورسيد، هغه چا چې د انقلاب څخه ګټه اخيستې وه، د امنيت احساس يې کاوه، هېواد د دېموکرات دهقانانو او بووژوازانو څخه ترکيب شو، تر دې چې پخواني اشراف د حکومت د لواء تر نامه لاندې راټول شوي ؤو د پرولتاريا نهضت چې کوچنی نهضت ؤو او ټول انقلابي رژيمونه يې د لارې خنډ ګرځيدلی ؤو، د سياسي صحنې څخه وويستل شو، سربيره پردې په ۱۸۰۲ز کال د فرانسې جمهوريت د پاپ دستګاه، انګلستان او ټول اروپايي هېوادونه سره په سوله کې اوسيدل، سرحدونه يې د رن سيند ته رسيدلي ؤو، په هالنډ او ايټاليا کې يې د ځان تابع جمهوريتونه درلودل، د ناپليون بناپارت محبوبيت دومره زيات شوې ؤو چې په۱۸۰۲ ز کال يې د عمومي رايه ګيرۍ پر بنسټ د لومړي کنسول دنده د ټول عمر لپاره وساتله. په ۱۸۰٤ زکال يې نوی اساسي قانون د خلکوعمومي رايو ته وړاندې او تصويب شو چې د هغې په واسطه جمهوريت په يوه امپراطورۍ بدليده.[۱]

# پنځم څپرکی

## اروپا د ناپیلیون بناپارت په وخت کې

ناپیلیون بناپارت د فرانسې د اردو د یو افسر او دېکتاتور نوم دی، او ناپیلیون داسې یو نوم دی چې د اروپا په تاریخ کې به د تل لپاره شتون لري او له کرنو څخه به یې یادونه کوي. د فرانسې امپراتور ناپیلیون له بل هر چا به نسبت بریالی شو چې په اروپا کې سیاسي یووالی راولي، او حتی په دې لاره کې له اډلف هټلر څخه مخکی تللی وو.

د ناپیلیون د ۱۵ کاله برترۍ او قدرت دوره چې له ۱۷۹۹ ز کال څخه پیل او ۱۸۱۴ ز کال پورې رسېږي، له دوو عمده بحثونو لرونکې ده، یو یې د نړیوالو اړیکو دی یا په بل عبارت د ایتلافونو، جګړو او تړونونو، ځمکنیو او بحري قواو، د هېوادونو یو له بل سره نښلول او بېلول، د سرحداتو تغېر او تبدیل چې دا ټولې کړنې اروپا د ډول ډول اړیکو بیانوونکي دي. دویم بحث بیا د اروپایي ملتونو له کورنیو تحولاتو پورې اړوندېږي، ځکه د ناپیلیون قدرت او تسلط د هغوی ترمنځ ژور اغېز درلوده، او بیا دا اغېز د داسې اصلاحاتو په بڼه وو چې ناپیلیون پر هغوی تحمېل کړی وو.

په اسانۍ سره کولای شو ووایو چې له ۱۷۹۲ څخه تر ۱۸۱۴ ز کال پورې جګړې (نړیواله جګړه) وګڼو، ځکه په واقعیت کې هم همداسې وه، نوموړې جګړې نه یوازې په اروپا بلکې تر لیرې پرتو سېمو پورې یې هم اغېز درلوده، لکه د هسپانیې اړونده امریکایې سېمې، چې هلته یې هم د خپلواکۍ جګړې پیل کړې، یا د امرېکا شمالي برخې چې هلته متحده ایالات لویزیانا ۱۸۰۳ ز کال واخېست او په ۱۸۱۲ ز کال د کاناډا په فتحه کولو سره یې ملا وتړله. اما دلته

باید دا یوه خبره په یاد ولرو چې دغه نړیواله جګړه په واقعیت کې د یو لړ جګړو څخه دي چې زیاتره یې ډېرې لنډې، تیزې او مشخصې وې. یوازې انګلستان د یو کال لپاره له فرانسې سره په جګړه کې ښکېل وو، تنها یو کال له ۱۸۰۲ څخه تر ۱۸۰۳ ز کال پورې د دواړو هېوادونو ترمنځ سوله وه. تر ۱۸۱۳ ز کال پورې هېڅ داسې وخت نه وه چې څلور لوی اروپایي هېوادونه (انګلستان، اتریش، روسیه او پروس) دې یو ځای د یو واحد په توګه د فرانسې په وړاندې په جګړه کې نه وي.

که چېرې د اروپایې هېوادونه موخه له جګړې څخه د تجاوز پر وړاندې دفاع وای نو بیا د ناپیلیون د دورې تاریخ ډېر ساده وو، اما بحث دلته دی چې د هر اروپایي هېواد د تجاوز طلبۍ هڅې تر ناپیلیون پورې ور رسیدې، څویم وو چې انګلستان د یوې تجارتي امپراتورۍ جوړولو په بوخت وو، روسیه، پولېنډ او عثمانیان یې تر فشار لاندې نیولي وو، پروس د خپل قلمرو ټوله سره یو کړي وو، په شمال کې المان د پراختیا دعوه لرله، د اتریش پراختیا غوښتنه بیا لړه وه. د ناپیلون دورې په کلونو کې له دغو څخه یو هم له دغو جاه طلبیو څخه له منځه لاړ نه شول. دغه هېوادونه د خپلو موخو د ترلاسه کولو لپاره چې په کومه اندازه د ناپیلیون سره جګړې ته حاضر وو په هماغه اندازه یې یووالي ته هم تمایل درلوده. د وخت په تیریدو سره د تکراري تحرکاتو څخه دې نتیجې ته رسیدلي وو چې تر ټولو مهمه او اساسي موخه ګټه او موخه یې په دې کې ده چې د امپراتور (ناپیلیون بناپارت) شر له خپل سر څخه لنډ کړي. مګر د دې پخاطر چې د ناپیلیون د زمامدارۍ پر وخت نظامي وضعیت ښه روښانهرشي لازمه ده یو لنډه کتنه د (۱۷۹۲-۱۸۰۲) ز کال پورې پر نظامي تغیراتو او تحولاتو وشي.[۱]

## لومړی) د فرانسې د امپراطورۍ د سیستم تشکیل

د اروپایي دولتونو خپل منځي تضاد، د ټولو اروپایي دولتونو ائتلاف د فرانسې په مقابل کې ناممکن کړی وو. په ۱۷۹۲ ز کال کله چې لومړی ائتلاف جوړ شو، اطریش او پروس د پولېنډ د قضیې له کبله د یو بل او روسیې څخه په ویره کې ؤو، تر دې چې د فرانسې څخه په تشویش

---

[۱]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۶۶۰-۶۵۹.

کې ؤو، خپل ځواکونه یې په ختیځه اروپا کې وساتل. په حقیقت کې هغه نتیجه چې د لومړي ائتلاف څخه په لاس راغله د پولېنډ د حکومت انحلال ؤو، په ۱۷۹۵ز کال کې فرانسویانو ائتلاف گډوډ کړ انگلیسانو خپل ځواکونه د اروپا د خاورې څخه راوغوښتل، پروس د فرانسې سره په جداگانه ډول سوله وکړه، ځکه فرانسه حاضر شوه چې هغوی د المان د هغې برخې چې د من په سیند یې ځای نیولی وه، ساتونکي وپېژني. هسپانیې په ۱۷۹۵ ز کال د سولې په یو بیل تړون اقدام وکړ او هسپانیه بیرته د ۱۸ ز پیړۍ شکل ته واوښتنه او د فرانسې سره یې اتحاد وکړ، ځکه هسپانیه د انگلستان دښمنه وه، د جبل الطارق نیول او په مدیترانه کې د انگلیس نفوذ، ټول د هسپانیه دولت د تشویش باعث ؤو. په ۱۷۹۷ ز کال اطریش د کامپوفورمیو تړون چې د سولې تړون ؤو، لاسلیک کړ. لومړی ائتلاف بالکل له منځه لاړ. یوازې د فرانسې او انگلیس سمندري قواوې د جگړې په حال کې پاتې شوې د دویم ائتلاف سرنوشت د ۱۷۹۹ ز کال څخه ښه نه ؤو. روسیه هم له دغه ائتلاف سره یوځای شوه، ځکه په مصر باندې د ناپیلیون بناپارت لښکرکشۍ د روسیې مخالفت زیات کړ، ځکه چې روسیې هم د مدیترانې لپاره نقشې درلودې، په ۱۷۹۹ ز کال د روسیې جگړه ییزې کشتۍ د ترکیې څخه تیرې شوې، له یونان سره نژدې د ایوني ټاپوگان یې ونیول، د بلې خوا روسیې غوښتل چې د امکان په صورت کې د مالتا ټاپو ونیسي، مگر انگلستان د مالټا ټاپو کې پاتې شو. همدارنگه د فرانسې سمندري قوه یې د نیل په جگړه کې ماته کړه او د فرانسې د اردو اړیکې یې د مصر سره پرېکړې. مگر د انگلستان په اړه ویل کېده چې د عثماني امپراطورۍ په داخل کې، د روسانو لپاره یو رقیب گرځیدلی ؤو. نو روسانو خپلې عقیدې ته تغیر ورکړ. د انگلیس په ضد او د فرانسې په طرفدارۍ یې سیاست غوره کړ. او په ۱۸۰۱ ز کال د خپلو بیړیو د ساتلو لپاره د انگلیس د سمندري ځواک د تفتیش او نیولو په خاطر یې سربیره پر دې چې خپل ځواکونه یې د لویدیځې اروپا څخه په شا وتمبول، مسلحه بې طرفي یې غوره کړه. او د ( لونه ویل) د سولې تړون په منلو سره د اطریش لخوا په ۱۸۰۱ ز کال دویم ائتلاف هم منحل شو.[1]

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ٦٦١ ٦٦٢-.

## د ۱۸۰۲ ز کال لندمهاله سوله

کومه سوله چې په ۱۸۰۲ ز کال رامنځته شوه د فرانسې لپاره ګټوره وه. اطریش د کامپوفورمیو د تړون په شرایطو نوې موافقه کړې وه، انګلستان د امیان د تړون په اساس په ۱۸۰۲ ز کال فرانسې سره سوله وکړه.

فرانسې، بلژیک او د رن د سیند لویدیځ سواحل یې د جمهوري د خاوري د یوې برخې په توګه لاندې کړي وو او نور دولتونه یې د خپل هیوادونو په پیژندلو یعنې په هالنډ کې باتاوي، په سویس کې هل وتیک، د لیګوري جمهوري په ژن کې او د سزالپین جمهوریت، مجبور کړل. انګلستان موافقه کړې وه چې د مالت، مینورکا، الپ، ترینی داد، او د انتیل ټاپوګان دې فرانسه تخلیه کړي، او یوازې سیلان دې پخپل تصرف کې وساتي. مګر ناپیلیون بناپارت د امیان سولې ته وخت ورنه کړ همدارنګه د خپل پرمختګ لپاره یې د جګړې څخه کار اخیسته او سوله یې هم یو ښه فرصت ګاڼه، ناپلیون په ښکاره امریکا ته د ځواک په لیږلو وښودله چې دی غواړي په هائیتي کې ګډوډي ختمه کړي. مګر دا په داسې حال کې چې هسپانیې لوئیزیانا فرانسې ته سپارلې وه نو هدف یې په امریکا کې د فرانسوي مهاجرنشینې امپراطورۍ جوړول ؤو.

ناپیلیون بناپارت د الپ دې خوا ته جمهوریتونو شکل ته تغیر ورکړ او هغه یې په ایټالیائې جمهوریت باندې بدل کړ،چې خپله د هغې رئیس ؤو د کامپوفورمیو د تړون پر بنسټ الماني شهزادګانو د رن د سیند په لویدیځ ساحل کې خپل قلمرو فرانسې ته وسپاره او په مقابل کې یې هر یو په ختیځ ساحل کې د یوې برخې ځمکې خاوندان شول مګر په نتیجه کې د ګډودۍ څخه پرته د شهزادګانو تر منځ بل څه نه ؤو، او د زیاتې ځمکو د لاسته راوړلو لپاره یې خپل منځ کې رقابت کاوه هر یوه غوښتل په یو شکل د فرانسې سره اړیکې ولري. تر څو د ټولو الماني امرینو په مقابل کې د هغوی طرفداري ورسره مل وي. د المان اکثریت روحاني نشین ایالات او ۴۵ ازاد ښارونه د ۵۱ ښارونو څخه چې موجود وه، له منځه لاړل او د خپلو لویو ګاونډیانو په ځمکو پورې وتړل شو، د روم د مقدسې امپراطورۍ د ایالتونو د شمیر څخه څو

... د ایالتونو څخه، د وړاندوینې پر بنسټ نور د کاتولیک
ځلې کم شو خصوصاً د کاتولیک د ایالتونو څخه، د وړاندوینې پر بنسټ نور د کاتولیک
هابسبورک د ډلې یو هم د امپراطورۍ مقام د انتخاب چانس نلري، پروس باویر، ورتمبرگ او
بادن ټول سره یوځای شو او خپلو ځمکو ته یې پراختیا ورکړه، اوس چې المان د پراخه ایالات
درلودونکی دی نو د خپل نوي موقعیت د ساتلو لپاره یې په ناپلیون بناپارت تکیه درلوده.[۱]

## په ۱۸۰۵ ز کال د درېیم ائتلاف تشکیل

په ۱۸۰۳ ز کال کې انگلستان د مالت د خالي کولو څخه انکار وکړ. د فرانسې د انتقاد سره مخ شو په همدې کال د مئ په میاشت کې یې د روسیې سره د جگړې اعلان وکړ. څرنگه چې د ناپیلیون بناپارت موقیعت په هایتي کې ښه نه ؤو، په امریکا کې یې د فرانسوي امپراطورۍ د تشکیل څخه لاس واخیسته، انگلستان د دریم ائتلاف جوړولو په لټه کې ؤو، اطریش په ۱۸۰۵زکال د انگلستان سره د اتحاد تړون لاسلیک کړ چې په تعقیب یې تزاري روسیه چې په سرکې یې لومړی الکساندر ؤو. هم په دې ائتلاف کې شامل شو. هغوي موافقه وکړه چې د فرانسې قدرت باید په ایټالیا او المان کې پای ته ورسیږي، او د بلژیک د خاورې څخه دې وشړل شي. بلژیک او هالنډ باید د فرانسې په مقابل کې یو دولت جوړ کړي او د پروس موقعیت دې د رن په حوزه کې قوي شي. په نظر کې ؤو چې انگلستان د سمندر څخه اخوا ځمکې ونیسي، او الکساندر په دې فکر کې ؤو چې په راتلونکې کې دې مرکزي اروپا حکمران شیمگر الکساندر د عثماني ترکیې په باره کې د خپلو نظریاتو د ښکاره کولو څخه صرف نظر وکړي، مگر هیله مند ؤو چې وروسته د ناپلیون د سقوط څخه د عثماني ترکیې امپراطورۍ وویشي، قسطنطنیه ونیسي. د بلې خوا څخه انگلستان وعده وکړه که روسیې یو لک عسکر راټول کړل نو انگلیس به (۱۲۵۰۰۰۰) لیرې د روسیې حکومت ته ورکړي.

همدا راز ناپلیون د مانش د سمندرگي په ساحل کې قوه راټوله کړې وه چې زرگونه بېړۍ پکې شاملې وې چې ټولې د نظامي مانور په حال کې وې، او غوښتل یې چې وروسته په انگلستان حمله وکړي، مگر انگلستان خپل تیارې نیولی و. او په ټول ساحل کې یې د نظارت

[۱]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۶۶۳-۶۶۴

او لیدو پوستې جوړې کړې وې، ترڅو وکولای شي خپل سرحدونه کنټرول کړي. همدارنګه د چریکې قواو د ترتیب او تنظیم په حال کې ؤو. د هغوی دفاعي جبهې دوه اړخه درلودل د یوې خوا د اطریش او روسیې عسکر ؤو او د بلې خوا د انګلیس سمندري قواوې چې د لارد نلسون تر قوماندې لاندې وې.

د ۱۸۰۵ ز کال د اوړي په موسم کې د روس او اطریش عسکرو د لویدیځ خوا ته حرکت وکړ په دې وخت کې ناپیلون د انګلستان خوا ته قوه کمه کړه، او خپلې ۷ لښکرې یې د مانش د سمندرګي د سواحلو څخه د دانیوب د سیند پورتنۍ خوا ته ولیږلې. فرانسویانو د همدې کال د اکتوبر په ۱۵ نیټه د اطریش پنځوس زره کسیزه قوه په (اولم) کې چې معاصر( باویر) کې واقع دی محاصره کړ او تسلیمیدو ته یې مجبوره کړ. د اکتوبر په ۲۱ د (ترافالګار) د دماغې په جګړه کې چې د هسپانیې ساحل ته نژدې دی، انګلیسیانو د فرانسې او هسپانیې شریکو قواو ته ماتې ورکړه، او د فرانسې او هسپانیې سمندري قوه یې له منځه یوړه په دغه وخت کې ناپلیون د اولم څخه د ختیځ په لورې حرکت وکړ چې په (موراوي) کې د روس او اطریش د نظامي قواو سره مخامخ شو، او په دې ځای کې یې وکړای شو چې د دسمبر په دویمه نیټه د (استرلیتز) په نوم لوئ بریالیتوب ته ورسیږي. د روس ماته شوې قوه د پولنډ خوا ته په شا ولاړه او اطریش د سولې د لارې رامخکې شو، د پرسبورګ د تړون په بنسټ چې د (وینز) په ۱۷۹۷ زکال یې اطریش ته ورکړی ؤو د هغې څخه بیرته واخیسته، او په ایټالیا کې د خپل سلطنت پورې، چې د ایټالیا یوه زیاته برخه ځمکه چې د روم په شمال کې ده، وئې نښلوو. په ۱۸۰۶ ز کال په لومړیو کې د فرانسې امپراطورۍ په المان کې د باویر او ورتمبرګ امرین هر یو د سلطان مقام ته ارتقاء ورکړه. او د آن بادن په ځای (راګراند دوک) وټاکه په آخر کې د روم امپراطوري رسماً منحل شوه. او د هغې پرځای ناپلیون خپل تابع المانی ایالت د جرمني فدراسیون یا د رن د کنفدارسیون لاندې راوسته او ځان یې د هغه ساتونکی ونوماوه. پروس چې لس کاله د فرانسې سره په سوله کې ؤو، د دریم ائتلاف د اشتراک څخه ځان ساتلی ؤو. ناپلیون د پروسیانو مخه ونیوله، او په مختلفو وعدو یې مصروفه کړه، د هغې جملې څخه د هانور پرینبودل چې د انګلیس د سلطان پورې تړلي ؤو، مګر کله چې د استرلیتز د فتحې

څخه د ناپلیون نقشه د المان د نظارت لپاره جوړه شوه. په پروس کې نور چا د ناپلیون په مقابل کې مقاومت ونه کړ، په نتیجه کې د پروس حکومت چې غافل شوی وو یوازې د فرانسې جګړې ته لاړ فرانسویانو د ۱۸۰٦ز کال د اکتوبر په میاشت کې د (ینا) او (اورشتاد) په جګړو کې د پروس مشهورې اردو ته ماته ورکړه د فرانسې نظامي قوه د المان په شمالي برخو کې یوازې میدان کې پاتې ؤو. د پروس سلطان او د هغه دولتمردان ختیځ خوا ته وتښتیده. د (کوینګزبرګ) په منطقه کې ځای په ځای شو، او تزاري روسیې پناه ورکړه مګر ناپلیون روسان هم تعقیب کړل، د لویدیځ پولنډ او د ختیځ پروس له داخل څخه تېر شو د روسیې سپاهیانو سره مخامخ شو، د ایلو په سیمه کې سخته جګړه ونښته مګر بې نتیجې وه ۱۸۰۷ ز کال د جون په ۱٤نیټه فرانسویانو روسي ځواک ته په فریدلنډ کې ماته ورکړه، لومړی الکساند حاضر نه ؤو چې د روسیې خاورې ته په شا لاړ شي ځکه نوموړی ویریده که چېرې فرانسویان د روسیې په خاوره حمله وکړي، د هېواد اشراف به پاڅون وکړي تر دې چې سرفیان به شورش وکړي، ځکه د روسیې خلکو لا تر اوسه د پوګاچف قیام په یاد درلود، سربیره پر دې الکساندر ویریده هسې نه چې دا کار یوازې د انګلیسانو په ګټه تمام نشي، په همدې خاطر یې د ۱۸۰٤ ز کال له جګړه ییزو هدفونو څخه تیر شو، او د ناپلیون سره سولې ته تیار شو، په دې ترتیب دریم ائتلاف هم د دوو مخکینیو ائتلافونو په سرنوشت اخته شو.[1]

## د ۱۸۰۵ ز کال دریم ائتلاف (د تیلست Tilist سولې تړون)

ناپلیون بناپارت او د روس لومړي الکساندر د پروس په سرحد کې د نایمن په سیند کې یو د بل سره ملاقات وکړ، د هغوی ناستې یو څه ګټې درلودې. هغوئ انګلستان د اروپا د ټولو بدبختیو عامل وګاڼه الکساندر دختیځ امپراطور ونومول شوو، او وویل شوچې د روس امپراطوري به په راتلونکې کې، عثماني ترکیې، ایران، افغانستان او هندوستان ته متوجه وي. د هغوی د مذاکراتو نتیجه د ۱۸۰۷ ز کال د تیلست تړون ؤو. چې د ډیرو خواو څخه باید هغه د ناپلیون په بریالیتوب کې حساب کړو. د فرانسې او روسیې امپراطورۍ متحدې شوې، چې د

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ٦٦٦ – ٦٦٨.

هغوی لوی هدف د انګلستان سره دښمني کول ؤو. په ظاهره دې اتحاد پنځه کاله دوام وکړ، الکساندر ناپلیون د غرب د امپراطور په توګه قبول کړ.

د پروس په باره کې د ناپلیون نقشه داسې وه چې پروس بالکل د نقشې پر مخ له منځه یوسي، مګر د لومړي الکساندر په غوښتنه چې د پروس د سلطان له لورې یې وکړه، ناپلیون موافقه وکړه چې هغه هیواد دې په نقشه کې موجود وي. مګر د تحت التصرف ځمکو تر عنوان لاندې دې د روسیې او فرانسې په نیولو شویو سیمو کې وساتل شي. د دې سره سره پروس بیا هم ځینې سیمې له لاسه ورکړې، پروس د نیولو شویو سیمو څخه په لویدیځ کې د الپ سیند سره یو ځای د هسکاسل او برونسویک او د وستفالیا سلطنت رامنځته شو. او د ناپلیون د ورور ژروم په اختیار کې ورکړل شو، په پولنډ کې د پروس د نیول شویو ځایونو څخه هم ګراندویشه او ورشو جوړ شول، چې د رن په اتحادیه کې یې غړیتوب حاصل کړ. فرانسې خپل عسکر په برلین کې وساتل او د الپ په لویدیځ کې د پروس ټولې ځمکې یې په خپل واک کې واخستې، هغه ځمکې چې د هاتور د کورنۍ څخه جلا شوې وې، بیرته ورسره یوځای شوې، په نهایت کې د تیلست تړون د فرانسې برتري، اعتبار او مقام په اروپا کې نور هم پایدار او لوړ کړ. [1]

## پنځم) د ناپیلیون د لویو وچو سیستم ( کانتینانتال)

تر اوسه پورې د فرانسې او روس په اتحاد سره په دغه لویه وچه کې سوله راغلې نه وه چې ناپلیون یې د اساسي ستونزو سره مخ کړ، هغه تصمیم درلود انګلستان چې ارامه ژوند کوي،ګوښه کړي ځکه ناپلیون زیاته پاملرنه د اقتصادي وضعیت ښه والي ته وکړه، پریکړه یې وکړه د ځمکې د څواک په مرسته د انګلیس سمندري ځواک سره مبارزه وکړي. په دې معنی چې په اروپا د خپل سیاسي نظارت څخه په استفادې سره اروپایي ښارونو ته د انګلیسي بېړیو او مالونو د راتګ مخه ونیسي، سربیره پر دې یې غوښتل چې اروپا ته د انګلیس د صادراتو مخه ونیسي. او د هغوی ګټور صادرات هم د امریکا او هم د اسیا په بازارونو کې سست کړي. په دې ترتیب هیله مند ؤو چې د انګلیس تجارتي سیستم د افلاس سره مخ شي، تر دې پورې

---

[1] رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ٦٦٨- ٦٧٠.

چې دغه ستراتيژي په ۱۷۹۳ز كال كې جمهوري غوښتونكو هم غوره كړې وه، او هغوی هر ډول انګليسي جنس واردول منعه كړي ؤو، په دې ترتيب دغه امر په ټولو هغو سيمو كې چې ناپليون د واک لاندې وې د اجراء وړ ؤو. په ۱۸۰٦ ز كال د ينا د جګړې څخه وروسته يې په برلين كې امر صادر كړ، چې د برلين د امريې په نامه شهرت لري. د دې امر په بنسټ يې انګليسي مالونو واردول ټولو اروپائې هيوادو ته منع كړل، په دې ترتيب ناپليون د لويو وچو سيستم رامنځ ته كړ. د دې لپاره چې دا سيستم اغيزمن وي، ناپليون عقيده درلوده چې د استثناء څخه پرته د اروپا ټولې لويې وچې ته دې پراختيا وركړل شي. د تيليست د تړون پربنسټ روسيه او پروس هم د هغې په مراعت كولو مكلف ګڼل. دواړو هيوادونو د انګليس په تحريم موافقه وكړه څو مياشتې وروسته روسيې، پروس او اطريش دانګلستان سره د جګړې اعلان وكړ، په دې وخت كې ناپليون ډنمارک او پرتګال چې دوه بې طرفه هيوادونه ؤو، د دې چارې څخه د اطاعت په پار امر وركړ. ډنمارک د ټولې اروپا د صادارتو او وارداتو مركز وو. انګلستان خپله سمندري قوه چې په ګېنهاګ ګسيل كې يې درلوده، د څلورو ورځو په جريان كې يې ښار تيرباران كړ او د ډنمارک بحري قواوې يې په ونيولې، ډنماركيان چې د دې پيښې څخه ډير په غصه وو، ناپليون سره متحد شول. پرتګال چې د انګليس د تابع حكومتونو څخه ؤو، د ناپليون حكم ته يې غاړه كينښوده او ناپليون پرې حمله وكړه. د اروپا د ټولو سواحلو څخه د سن پطرزپورګ څخه تر ترسيت پورې د هسپانې بندرونو پرته په خپل نظارت كې راوستل، ناپليون څلورم شارل او د هغه ځوې فرديناند چې د بوربون د خلكو څخه وو د هسپانيا د تاج او تخت څخه استعفاء ته مجور كړل، او په ۱۸۰۸ ز كال يې خپل ورور ژوزف د هسپانيې سلطان كړ، مګر د فرانسويانو وضيعت په هسپانيه او پرتګال كې ښه نه ؤو، ځكه انګليس د هسپانيې نامنظمو جګړه كوونكو سره مرستې كولې، چې دا كار په هسپانيه كې د ۵ كاله جګړې د اوږديدو باعث شو. همدارنګه په پرتګال كې د ناپليون ځينې نظاميانو غوښتل د انګليس پوليسو ته تسليم شي. دا پيښې لږې لږې د اروپا نورو ساحو ته هم خورې شوې، د

تزار الکساندر اړیکې ظاهراً د ناپلیون سره ښې وې، مګر په اصل کې د ځینو مسایلو په سر دواړه خواوې چندان راضي نه وې.[1]

## د ۱۸۰۹ ز کال د اتریش د خپلواکۍ جګړه

په ۱۸۰۹ز کال د اپریل په میاشت کې اطریش د ازادۍ جګړه پیل کړه د المان امران چې د فرانسې قرضداره ؤو د المان د عمومي جګړې څخه ځان وساته، الکساندر په ټول دقت سره اوضاع څارله ناپلیون د واګرام په جګړه کې فاتح شو، اطریش سوله وکړه، په دې ترتیب سره جګړه پای ته ورسیده.

ناپلیون د اطریش د تنبیه کولو لپاره د دې هیواد زیاته برخه خاوره لاندې کړه، د پولنډ یوه برخه چې اطریش لاندې کړې وه د ګراندوک نشین ورشو د پراختیا لپاره یې په کار یوړه. او د المسي، اسلوني او کرورت سیمې یې د جنوب سره یوځای کړې. او یوه نوي سیمه یې رامنځته کړه چې د هغې نوم یې د ایلیرې ایالت کیښود. دې دواړو کړنو د ناپلیوني پولنډ پراختیا او د بناپارت ورتګ د بالکان غاړو ته د فرانسې امپراطورۍ او تزاري روسیې ترمنځ اړیکې خړې پړې کړې.[2]

## د ۱۷۸۹ ز کال څخه وروسته د فرانسې امپراطوري:

په اسپانیا کې د دایمي شورش ترڅنګ، د انګلیس پر ضد جګړه هم روانه وه، المانیانو د وطن پالونکو نهضت په موجودیت کې هېڅ وخت د فرانسې قدرت په هغه اندازه چې په ۱۸۱۸ ز او ۱۸۱۱ ز کلونو کې د دې دولت په نصیب ؤو، نه ؤو رسیدلې. نویو فتوحاتو د فرانسې امپراطورۍ ته لاپراختیا ورکړه پخوا چې د ایلیري ښارونه د اطریش د واک څخه وتلي ؤو، د پاپ واکونه (تبعید شوي پاپ) بلژیک، هالنډ، هانور، اولډنبورګ او هانساتیک ښارونه د فرانسې د امپراتورۍ سره یوځای شو، په دغه وخت کې فرانسه کې د ایټالیا پرته یو سل دیرش دیپارتمنتونه شامل ؤو. د ناپل او رن اتحادیه هم فرانسې پورې تړلې وه چې دغه کوششونه د

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۶۷۱- ۶۷۴.
[2]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاریخ جهان نو، مخ ۶۷۴ – ۶۷۶.

فرانسې د خاورې د پراختیا لپاره ترسره کېدل. مگر زیات هدف یې د محاصره کولو په برخه کې شدت ؤو، چې د انگلستان لپاره یې ډېر تاوان رساوه، پرته له دې څخه په شمال ختیځ کې متفقو هیوادونو شتون درلود چې مستقیماً د پخوانیو حکومتونو د فرمان لاندې ؤو. د هغې له ډلې څخه پروس، اطریش او روسیه همدارنگه ډنمارک او سویس دولتونه چې د انگلستان سره جگړه کې ؤو، اگر که پخپله یې په جگړه کې لاس نه ؤو، هغوئ څخه د دې توقع کېده چې د لویو وچو سیستم له مخې د انگلیس اجناسو څخه کار وانه خلي، مگر ناپلیون د هغوی په داخلي چارو کې هېڅ ډول قانوني نفوذ نه درلوده. له بله پلوه ناپلیون د انگلیس مالونو ضد مبارزې ته پام شو چې بندرونه باید د خپل کنترول لاندې ولري، په همدې خاطر یې د آلمان ساحل د بالتیک تر لویدیځ پورې او د ایټالیا ساحل چې روم هم پکې شامل ؤو مستقیماً د فرانسې امپراطورۍ سره یو ځای کړ.

په دې وخت کې نوي څلور سلطنتونه جوړ شوي وه چې عبارت وه له: ساکسوني، باوير، ورتمبرگ او وستفالی څخه. وستفالی مکمل ساختگي او نوی هېواد ؤو چې د هانور او پروس د کورنیو د ځمکې او د پخواني آلمان د مختلفو ځمکو څخه جوړ شوی ؤو، د هغې سلطان ژروم د ناپلیون ورور ؤو. په دې وخت کې ناپلیون خپل زیاتره خپلوان د اکثرو هیوادو په رأس کې ټاکلي ؤو. بل ورور یې لومړی ژوزف په ناپل کې او د ۱۸۰۸ ز کال څخه وروسته د هسپانیه سلطان شو. لوی بناپارت شپږ کاله د هالنډ پادشاه ؤو، کارولین د بناپارت خور د ناپل ملکه وه.

په عمومي توگه د ناپلیون د زمامدارۍ په دوره کې د لویې امپراطورۍ په ټولو هیوادو کې د فرانسې د انقلاب د مهمو اصولو څخه کار واخیستل شو، د دې اصولو مهمه استثناء د داخلي استقلال نشتوالی ؤو. چې د انتخاباتي مجالسو له لارې ټاکل کېده. په ټولو هیوادونو کې یو زیات شمیر بومي خلک خصوصا د تجارانو، حرفه یې او اربابو طبقو افرادو د ناپلیون څخه طرفداري کوله. دوی داسې خلک ؤو چې د روشنفکرئ د وخت لیکوالانو د آثارو سره یې آشنایې درلوده اکثره د روحانیت د دستگاه سره مخالف ؤو، غوښتل یې چې د دوئ او اشرافو ترمنځ دې زیات مساوات مراعات شي د بلې خوا د ناپلیون څخه طرفداری په نورو سیمو کې لکه روسیه او جنوبي آلمان کې موجود وه. د ناپلیون د نفوذ علت دا ؤو چې د هغې زیاتې رایې

په حقيقت کې د پخواني استبدادي نهضت او روښنفکرۍ د افکارو څخه حسابيدلو په ظاهره کې يې د فرانسې د انقلاب ټولې ګټې پرته د وارخطايۍ او ګډوډۍ څخه نورو هيوادو ته تعريف کولې، ناپليون د (ګوته) په نظر کې د هر هغه څه ښکاره کونکې وه چې د انقلاب په نهضت کې شمير کېدل معقول، مشروع او اروپايي وه.

د بلې خوا په فرانسه کې هغه څه چې رامنځته شوي ؤو، په باوير، بادن يا ايټاليا کې حکومت د افرادو او خپلو مادي منابعو څخه په استفادې زياته آزادي لاسته راوړه، څرنګه د فيوډالانو نقش ضعيف شوی وه. مساوات ترسره شو، مګر تابع هيوادونه مکلف ؤو ناپليون ته پيسې او نفر واستوي څکه آلمانيان، هالنديان، بلژيکيان، ايتالويان او هسپانيويان د هغه په لښګرو کې جنګيدل. تابع هيوادونو د فرانسې د لښکريانو زياته برخه لګښتونه، چې د فرانسې د خاورې څخه د باندې اوسيدل، هم ورکول.[1]

## شپږم) د ناپليون امپراطورۍ دړې وړې کېدل

د ۱۸۱۱ ز کال په اخير کې د اروپا وضعيت داسې ؤو چې د انګلستان او د اروپا د اطراف شيندلي ټاپوګانو څخه پرته نور ټول د ناپليون د لاس لاندې ؤو، روسيه او عثمانی ترکيه د دانيوب په حوزه کې په جګړه اخته وې. په هسپانيه کې څلور کاله جګړو بې نتيجې دوام درلود مګر په نوره ټوله اروپا کې سوله وه، انګلستان د دې سيستم په منفي اړخ کې تاوان ليدلی ؤو. په دې معنی که سيستم يې موجود نه ؤو، مګر انګلستان صادراتو په دې کلونو کې اروپا ته په ډيره چټکۍ ترقي کړې وه، په دې وخت کې په انګلستان کې صنعتي انقلاب روان ؤو. د زياتو ملي شتمنيو په جمع کولو اخته ؤو ترڅو د ناپليون پر ضد اروپايې هيوادونو ته مرستې ورسوياو د هغوی سره د ملي ازادۍ په لاسته راوړلو کې مرسته وکړي، مګر د ناپليون د اضمحلال شرايط ميسر نه ؤو. او د هغې د نظامي ځواک د ماتې له لارې چې دا کار نه پيسو او نه د انګلستان د سمندري ځواک او نه د اروپايې وطن پرستانو يا د پروس او اطريش د مسلح قواو په مرسته امکان درلود، مګر ډېر وخت کېده چې لومړي الکساندر د فرانسې څخه په

[1] رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاريخ جهان نو، مخ ۶۸۱ - ۶۸۳.

اتحاد کې ناراضي ؤو. ځکه د دې کار څخه يې څه فايده په لاس نه ورتله، د عثماني ترکيې سره په جګړه کې د فرانسې څخه هېڅ ډول مرسته تر لاسه نکړه، نو مجبور ؤو چې په خپل قلمرو کې د پولنډ شته والی ومني، چې د فرانسويانو په لاس جوړه شوې وه، په روسيه کې د سرف مالکان د فرانسې د اتحاد څخه راضي نه ؤو، ځکه هغوی د انګلستان د نوي تجارتي اړيکو غوښتونکي ؤو. همدارنګه د ناپليون بناپارت ځينې مخالفين په تدريج سره په سن پطرزبورګ کې راټول شو، او هميشه يې تزار ته د ناپليون پر ضد د مبارزې انګيزه ورکوله.

د ۱۸۱۰ ز کال په دسامبر کې روسيه د لويو وچو له سيستم څخه رسماً ووتله، د انګلستان او روس ترمنځ لويې تجارتي اړيکې فعاله شوې ناپليون بناپارت تصميم ونيو، چې تزار له خپل مخې څخه ليرې کړي. خپله لويه اردو چې شمير يې (۷۰۰۰۰۰) تنو ته رسيده په ختيځ آلمان او پولنډ کې راټوله کړه. په هغې وخت کې د دومره لوی ځواک برابرول د نظامي عملياتو لپاره يو نوی او بې سابقې کار ؤو، دا اردو د رن کنفدريشن، پروس او اطريش څخه چې د ناپليون سره يې اتحاد کړی و، په ۱۸۱۲ ز کال د جون په مياشت کې د ناپليون بناپارت اردو روسيې ته داخله شوه، د نوموړي مقصد لنډه او سخته جګړه وه، په همدې خاطر يې د درې هفتو اذره قه د ځان سره واخيسته، مګر روسانو د عقب نشينی په وخت کې خپل ټول پاتې شيان له منځه يوړل، په نتيجه کې په بوردينو کې چې د مسکو سره نژدې سيمه ده، جګړه پيل شوه، په دې جګړه کې ناپليون بريالی شو، روسانو له ګډوډۍ پرته عقب نشيني وکړه. د ۱۸۱۲ ز کال د دسامبر په څوارلسم، ناپليون بناپارت مسکو ته داخل شو چې په داخليدو سره يې د مسکو ښار بلکل وران شو.

ناپليون د اب هوا او موقعيت د خرابوالي له امله غوښتل چې عقب نشيني وکړي مګر سوړ ژمي او د خوراکي موادو کمبود د بناپارت نظامي قواوې د تلفاتو سره مخ کړې. د بلې خوا ځينې قواوې يې د روسيې تر چريکې حملو لاندې راغلې، په نتيجه کې د (۶۱۱۰۰۰) تنو سربازانو څخه چې په مسکو کې يې قدم ايښی ؤو (۴۰۰۰۰۰) تنه د جګړې په ميدان کې د سړو او لوږې له امله د منځه ولاړې او يو لک تنه نور يې د روسانو لخوا اسير شول.

اوس د ناپلیون بناپارت اتحادیه په تیزی سره راټوله شوه، روسانو د لویدیځ خوا ته په مرکزي اروپا حمله وکړه د پروس او اطریش حکومتونه د ناپلیون بناپارت د اتحادیې څخه بیل او د روسانو سره یو ځای شول، په پروس کې دا حرکت ډېر ژر تر سره شو، د آلمان په ټوله خاورو کې وطن پرستان د آزادۍ د جګړې لپاره په حرکت کې شول، په ایټالیا کې د فرانسې پر ضد خلک راپورته شول په هسپانیه کې د فرانسې ضد ځواک پرمختک وکړ، د ۱۸۱۳ ز کال څخه تر ۱۸۱۵ز کال پورې د انګلیس دولت ۳۲ میلیونه لیرې د مالي کومک په ډول اروپا ته ورکړې وې، لوی غیرمتجانس اتحاد د انګلیس د کاپیټالیستانو، د ختیځې اروپا د ځمکوالو فیودالانو، د انګلیس د سمندري ځواک، او روس د ځمکني ځواک، د هسپانیې د روحانیت غوښتنې، او د آلمان د ملیت غوښتونکو، لیبرالانو، دموکراتانو، ټولو یو بل ته سره لاسونه ورکړل تر څو د ناپلیون په له منځه وړلو کې فعاله برخه واخلې.

په ۱۸۱۲ ز کال کې د دسامبر په میاشت کې ناپلیون خپله اردو روسیه کې پرېښوه او پاریس ته راغې، په فرانسه کې یې نوی لښکر جوړ کړ، مګر نوې اوردو چندان د کار نه وه. د اکتوبر په میاشت کې یې د لیپزیک په جګړه کې د هغې اوردو ماتې وخوړه، متحدینو ناپلیون فرانسې ته شاته کړ. هر څومره چې د هغې ماتې نژدې کېده د ائتلافی قواو تر منځ ویره او بدګمانی زیاتیدله، وروسته له دې د ایتلافي قواو تر منځ مختلف بحثونه روان ؤو، چې د فرانسې په مقابل کې څه ډول سیاست غوره کړي، د روسې الکساندر غوښتل چې بناپارت د قدرت څخه لیرې شي، مګر مترنیخ د مرکزي اروپا څخه د فرانسویانو د شړلو وروسته غوښتل چې خپله ناپلیون یا د هغې زوئ د فرانسې امپراطور کړي. مګر کاسلري د نوي پروګرام سره میدان ته راغی، ځکه انګلستان او اطریش دواړه په اروپا کې د روسانو د حاکمیت څخه په ویره کې ؤو، د بلې خوا انګلستان یوازې د متحدینو څخه پرته د فرانسې په ماتولو قادر نه ؤو. بالاخره په ۱۸۱۴ زکال د مارچ په میاشت کې د شومون تړون روسې، پروس، اطریش او انګلستان لاسلیک کړ.

هر هېواد تعهد وکړ چې تر شل کلو پورې د فرانسې پر ضد د دې تړون په مراعتولو مکلف دي او هر یوه موافقه وکړه چې د فرانسې خلاف به ۱۵۰۰۰۰ عسکر برابروي. د څلورو دولتونو

ايتلاف د فرانسې پر ضد جوړشو. درې هفتې وروسته ايتلاف کوونکي پاريس ته داخل شو او د اپريل په څلورمه نېټه ناپليون په (فونتن بلو) کې استعفاء وکړه، اگر که زيات نظارت کېده چې جمهوري حکومت دې جوړ شي بعضې د امپراطورۍ طرفداره ؤو، يو شمير د مشروطه پارلماني حکومت طرفدار ؤو، او ځينې د پخواني رژيم غوښتونکي ؤو مگر په نتيجه کې د بوربونيانو لړۍ د دويم ځل لپاره رامنځته شوه.

اتلسم لويي (کنت د پرو وانس) په فرانسه کې په قدرت کښيناست او مشروطه فرمان يې صادر کړ، تر څو د با نفوذه خلکو طرفداري تر لاسه کړي، زيری يې ورکړ چې ټول خلک به د قانون په وړاندې مساوي حقوق لري، دولتي او عمومي منصبونو به پرته د طبقاتي توپير څخه د ټولو په خدمت کې وي او هېواد به پارلماني حکومت لرونکې وي چې دوه جدا مجلسونه به لري. ۱۸ لوېي د دې فرمان په واسطه د ناپليون قوانين او د کليسا سره جوړښت په رسميت وپيژانده، او د املاکو نوې توزيع چې د انقلاب په وخت کې د مالکانو په واسطه شوې وې ومنلې، او د کليسا سرواژ امتيازات او عشريې يې لغوه کړې او د اربابي حقوقو او عوارض يې ټول تصريح کړل.[1]

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد اول، تاريخ جهان نو، مخ ٦٨٦ - ٦٩١.

# شپږم فصل

# د ۱۸۳۰ او ۱۸۴۸ ز کلونو انقلابونه او د کنګرو نظام

## لومړی) د وین کنګره ۱۸۱۴

د فرانسې انقلابي دولت خپل منځي مبارزو د کلونو په اوږدو کې، او وروسته د اروپایی قدرتونو امپراطوریو په خاص ډول د ناپیلیون د حکومت په وروستیو کلونو کې پرته له دې چې فرانسه د ټولو دولتونو دښمن ګڼل کیده، یو لړ نورو مشکلاتو هم شتون درلود. برتانیې او اطریش په خپل منځو کې داسې توافق کړئ وه، چې روسیه باید په اروپا تسلط ونه لري، همدارنګه انګلستان ډیر کوشش کاوه، چې د اروپایی دولتونو په منځ کې هغه ستونزې له منځه یوسي، کوم چې د دوی د اتفاق او یووالي په وړاندې مانع ګرځیدلی، ځکه پرته د یووالي فرانسې ته ماتې ورکول امکان نه درلود، بالاخره په ۱۸۱٤ ز کال د مارچ په نهمه نیټه د انګلستان، روسیه، پروس او اطریش تر منځ یو تړون لاسلیک شو، د دې تړون د لاسلیک څخه وروسته څلورو لویو دولتونو داسې توافق وکړ چې د نورو مسایلو د حل کولو لپاره به د ناپیلیون له ماتې وروسته د وین کنګره جاري کوي، د وین کنګره د ۱۸۱٤ ز کال د سپتمبر څخه د ۱۸۱۵ جون پورې دایره وه.

ټولو اروپایی هیوادونو دغې کنګرې ته خپل استازي لیږلي وه، اما موضوعاتو ته یې د رسیده ګۍ داسې ترتیب جوړ کړی وه، چې د مهمو مسایلو حل یوازې د څلورو هیوادونو تر څارنې لاندې صورت نیولو، د لویو هیوادونو استازي عبارت وه له، کاسل ري او د روسیه استازی الکساندر وه او همدارنګه په دغه کنګره کې د فرانسې استازی تالیران وه.

د وین په کنګره کې سیاستمدارانو د اروپا نوې نقشه رسم کړه، او داسې عقیده یې لرله چې نور باید د فرانسې د انقلاب په څیر انقلابونه شتون ونه لري، او د آزادی غوښتنې (لیبرالي) عقاید او نظریات باید سمدستي له منځه لاړ شي، څکه د انقلابیانو د زیاتیدلو امکان شته دی. د دغه وخت د سیاست بنسټ او هدف دا وه چې اروپا بیرته د هغه وخت اعتدال او محافظه کارۍ ته راوګرځوي، کوم چې د ناپیلیون څخه یې مخکې شتون درلود.

د روسیې، اطریش او پروس امپراطوران په دې عقیده وه چې د دوی وظیفه د اروپا او بشري تمدن په وړاندې دا ده چې تل د انقلابي نظرئي په وړاندې متحد وي او په هر ځای کې چې انقلاب رامنځ ته کیږي له منځه یې یوسي.

انګلستان چې د ناپیلیون د جګړو د دوران څخه د یوې نوې صنعتي امپراطورۍ په توګه سر راپورته کړی و. په اروپا کې د سولې د برقرارولو، د دولتونو تر منځ د یو عادلانه قدرت رامنځ ته کول یې د ځان پسې لرل. روسیې په خپله بهرنۍ پالیسۍ کې هغه پخواني هدفونه چې د بالکان او بالتیک په طرف پراخوالي، او تر ټولو مخکې یې پولنډ تعقیباوه. پروس غوښتل چې خپل هغه حیثیت او قدرت چې د ناپیلیون څخه په ماتې خوړلو یې د لاسه ورکړی وه، یو ځل بیا تر لاسه کړي. مګر دوی په داسې وضیعت کې نه وه چې خپله پخوانۍ خاوره بیرته ترلاسه کړي، یا نوي خاوره په جګړه کې لاسته راوړي، یوازې کولای یې شو چې داسې یو امید او ارزو ولري چې د نورو قدرتونو د سیاستونو څخه د ځان په ګټه په لوړه کچه استفاده وکړي.

مترنیخ په دې لټه کې وه چې په ایټالیا کې څو دولتونه د اطریش د واک لاندې راولي، او ټینګار یې کاوه چې دغه چاره په اروپا کې د هابسبورګ خاندان د نفوذ لپاره یوه اساس دی. سره له دې چې فرانسې او اطریش په آلمان باندې د نفوذ لپاره یو اساس دی، په داسې حال کې چې فرانسې او اطریش په آلمان باندې د نفوذ د حاصلولو په مورد کې رقابتونه درلودل، مترنیخ د اطریش په اړه په دې عقیده وه چې په دغه وخت کې دوه دولتونه په بهرني سیاست کې ګډې ګټې لري، نو د فرانسې د سولې څخه یې حمایت کاوه چې د دغه چارې د کنګرو په نظام کې د فرانسې د حضور معنی درلوده.

سره له دې چې د وین د معاهدې زیاتې برخې د لو یو قدرتونو په منځ کې د رقابتونو او اهدافو تر منځ یو توافق او جوړښت دی، مګر د کنګرې د اهدافو او اصولو په اړه یو کلي توافق شتون درلود، اروپایې سیاستمدارانو دې ته اړتیا درلوده، چې (پخوانی اروپا عمومي حقوقو) ته د بیرته ګرځیدلو لپاره یو له بل سره یو ځای شي، او په داسې ډول مسایلو د حل او فصل کولو غوښتونکی وه چې اروپا ته یو ځل بیا ثبات راوړي او د یو بل عمومي جګړې څخه مخنیوي وکړي.

اطریش دغه وضیعت څخه ګټه پورته کوله، دغې دولت د سولې په ټینګولو او یو نړیوال توافق په تر لاسه کولو کې زیاتې ګټې درلودلې، ځکه له دې پرته دغه امپراطوري د له منځه تللو او ټوټو کیدلو له سخت ګواښ سره مخامخ وه، نور دولتونه هم دې ته تیار وه چې تر څو د اطریش امپراطوري پرمختګ لپاره له خطر څخه د محافظت په عنوان دې یې پر مختللې، ارامه او سوله ییزه اروپا رامنځ ته کیدو لپاره تقویه کړي او ویې ساتي.

سره له دې چې اروپا باندې د فرانسې واک او سلطه پای ته رسیدلې وه، خو دغه کار تر ۱۸۱۵ پورې د منلو وړ وه، او متحدو هیوادونو تر دې وخته پورې فرانسې ته د داسې دولت په سترګه کتل چې اروپا یې په ۱۷ پیړۍ کې په ګڼ شمیر تجاوز کارانه جنګونو کې را ګیره کړې وه، دغو دولتونو غوښتل چې خپل ځانونه د دغسې ستونزو څخه لېرې وساتي، نو بناءً په دې لټه کې وه چې تر څو د فرانسې خاورې چاپیره داسې مخکنۍ ترتیبات ونیسي- چې په اروپا باندې د هر ډول تجاوز مخ ونیسي، د دې دولت قدرت او نفوذ بیا رامنځ ته نه شي، په همدې بنسټ یې یاد شوي هیوادونه د ختیځې سیمو څخه احاطه کړ ترڅو اروپا مهمو هیوادونو څخه یې بیله کړي وي، او نور دولتونه له انقلاب څخه وساتي.

بلژیک او هالند (اطریش، هالند) د یو خپلواک دولت بڼه خپله کړه، په دې خاطر تر څو یو د بل پواسطه تقویه شي. او وتوانیږي، چې د فرانسې احتمالي حملې په وړاندې یو مانع ایجاد کړي، پرته له دې د راین او شلت (schelt) سیندونو په غاړه کلي او قریې یې یو بې طرف هیواد ته وسپارلې، د سویس دولت چې یو بی طرفه دولت وه، او له ۲۲ ایالتونو څخه جوړ شوی وه، او ټول اروپایې هیوادونو د دغه هیواد بې طرفۍ د ساتلو عهده په غاړه لرله.

په جنوبي اروپا ایټالیا کې د ساردنی پادشاهي چې د ساوا، نیس او وه پیه مون او د هغې چار چاپیره ځمکو څخه جوړ شوی وه، نوره هم تقویه شوه. چې د هالنډ او ساردنيي ترشاه دوه لوی دولتونه جوړ شوي وه، نور هم تقویه شوه. چې په ایټالیا او آلمان باندې د فرانسې د فشار مانع کیده. د اطریش دولت د ایټالیا پر وړاندې د دویمې قوي او مانع په عنوان وګڼل شو، چې د ایټالیا په خاوره کې د فرانسې په وړاندې د دویمې قوي او مانع په عنوان وګڼل شو. په شمالي اروپا کې ناروي هم له ډنمارک څخه بیل او د سویډن سره یو ځای شو. او د اسکاندیناوي په ټوله جزیره کې یې د یو دولت بڼه خپله کړه چې دغه انتقال د برتانیې په ګټه هم وه ځکه چې نور د بالتیک مدخل د یو دولت د کنترول لاندې نه واقع کیده .

په ختیځه اروپا کې هم عمده شکلونه لیدل کیده، روسیې سترګې د لهستان په طرف وې، د تزاري روسیې الکساندر په دې باور وه چې وضیعت باید لومړني حالت ته راوګرځي، داسې چې په لهستان کې نوی سلطنت رامنځ شي، او دې یې قانوني پادشاه شي، د پولنډ د بیا یووالي لپاره اړینه وه چې اطریش او پروس چې د لهستان کومې ساحې نیولی، بیرته یې مسترد کړي. پروس دغه کار سره په یو شرط موافق وه، چې د دې په مقابل کې د ساکسوني ټول قلمرو دوی ته ورکړل شي. او دغه شرط روسیې ته د منلو وړ نه وه، مګر هم اطریش له دغه ترتیب سره موافق نه وه، ځکه اطریش نه غوښتل چې د دوی رقیب یعنې پروس دې ډیره پراختیا وکړي، ځکه د پروس سره د ساکسوني په یو ځای کیدو سره د دولتونو سرحدات غوړیږي. او له دې پرته که چیرې د لهستان پادشاه الکساندر شي او د پروس څخه یې حمایت زیات شي نو بیا به په اروپا کې د روسیې نفوذ زیاتوالی وکړي، انګلستان هم د روسیې د نظر سره مخالف وه، ځکه دغه د فرانسې سره په دې خاطر نه وه جنګیدلی چې اروپا دې د تزاري روسیې د سلطې لاندې راشي. فرانسې هم د ازاد لهستان څخه ملاتړ کاوه. بناءً د وین کنګرې د مذاکراتو په جریان کې انګلستان، اطریش او فرانسه د ۱۸۱۵ ز کال د جنوري په دریمه نیټه داسې یو توافق ته ورسیدل، چې د دغه توافق پر بنسټ دې ته متعقد شول چې د ضرورت په وخت به د روس او پروس سره جګړې ته داخلیږي.

کله چې تزاري روسیې د دې توافق څخه معلومات حاصل کړل، دېته حاضره شوه چې د لهستان په اړه یو سازش وکړي. بناءً د وین د کنګرې پر بنسټ د لهستان دولت د هغه مساحت څخه کم چې روسیه یې غوښتونکې وه، منځ ته راغی، او تزار یې پادشاه شو. پروس هم د ساکسوني ځینې برخې او د رن سیند کیڼ اړخ ټولې څنډې یې خپلې کړې، په دې هیله چې په لویدیځ جهت کې د فرانسې پر وړاندې او په ختیځ جهت یې د روسیه په وړاندې ځای ونیسي، د پروس د تقویت څخه پرته په حقیقت کې د اطریش د پخوانۍ امپراطورۍ زوال پیل شو.

د وین په کنګره کې د موضوعاتو د حل و فصل کولو د اصولو او بنسټونو څخه یو هم د مشروعیت اصل وه، د مشروعیت څخه موخه دا وه کوم تغیرات چې ناپیلیون په اروپا کې د پادشاهانو په برخه کې رامنځ ته کړي وه، له منځه یوسي، او اروپا پخوانیو پادشاهانو او ځای ناستو (جانشینو) ته یعنې ۱۷۹۲ز کال حالت ته بیرته وګرځوي، دغه نظریه د فرانسوي سیاستمدار تالیران لخوا مطرح شوه تر څو د فرانسې د هر ډول تجزئي او یا د ځمکو د لاس ورکولو پر وړاندې مانع شي چې دغه اصل اطریش ته هم د منلو وړ وه.

د مشروعیت د اصل پربنسټ بوربنیان د فرانسې او هسپانیې سلطنت ته بیا ورسیدل، او د سیل قدرت یې بیا په لاس کې واخیست، همدارنګه د براګانذا کورنۍ په پرتګال کې بیا قدرت ته ورسیده. او د ساردیني پادشاهي هم په همدې بنسټ تثبیت شوه، په عمومي توګه اروپایي دولتونو په فرانسه کې د بوربنیانو د سلطنت په بیا رامنځ ته کیدو کې مصلحت لیدلو، ځکه د دغه کورنۍ پادشاهانو په هیڅ شکل د جمهوري دورې او د ناپیلیون د دورې د تصرفاتو د بیا لاسته راوړلو خیال په سر کې نه درلوده، د څلورو نویو قدرتونو ترمنځ د معاهدې پر بنسټ کوم نوی دولت چې د بوربنیانو په واسطه په فرانسه کې جوړ شوی وه، سرحدات یې د ۱۷۹۲ ز کال په حدودو کې ټاکل شوي وه.

په هغه صورت کې چې د مشروعیت اصل په منطقي توګه پلې شي لازمه ده چې ټول دولتونه د ناپیلیون د حکومت دوران ختم او پخواني وخت ته وګرځي، مګر لویو قدرتونو داسې ونه کړل، د وین په کنګره کې د روم د مقدسې امپراطورۍ د ژوندي کولو لپاره کوم اقدام ترسره

نه شو او په عمومي توګه ناپیلیون چې کوم سازماني نوی والی المان ته ورکړی وه، د تائید وړ وګرځید. په المان کې د مشروعیت د اصل څخه په استفادې په المان کې تقریباً ۳۰۰ حاکمیت لرونکي دولتونو پخواني وضیعت ترلاسه کړ، مګر کوم دولتونه چې د ناپیلیون په لاس له منځه تللي وو پاتې ۷ دولتونه یې بیا ژوندي نه شول. ښاري اورسیدل چې ناپیلیون منځ ته راوړی وه، په خپل حال پاتې شوه، الماني ژبې دولتونو یوه اتحادیه جوړه کړې وه، چې د ۳۹ هیوادونو څخه ترکیب شوي، نوموړي دولتونه په دریو ډلو ویشل شوي وه:

دولتونو د اتحادیې د منځ ته راوړلو او د سلګونو دولتونو او آزادو ښارونو د بیا نه راژوندي کولو څخه چې پخوا یې شتون درلوده، هدف او مقصد دا وه چې تر څو د دې مخه ونیول شي چې دغه کوچني دولتونه د فرانسې د نفوذ لاندې واقع نه شي. په ایټالیا کې هم د مشروعیت اصل په پوره ډول اجراء نه شو ځکه په دې کې باید دولتونه بیا ژوندي شوي وي په داسې حال کې چې ساردیني د هغه وخت د فرانسې سره پیوسته شوی وه.

د اروپا په ویش کې بل عامل (د غرامت اصل) په خپل ځای باقي پاتې شو، د دولتونو د فعالیتونو او په خاص ډول بریالیو اروپایې قدرتونو قصد درلود چې غنیمتونه د غرامت (تاوان) پر بنسټ وویشي، د دې اصل پر بنسټ بریالیو دولتونو قصد درلود، چې خپل قلمرو زیات کړي او خپل د ملي کیدو احساسات (ناسیونالیزم) په ښه ډول تقویه کړي.

د فرانسې د انقلاب او د ناپیلیون د حکومت د جګړو په دوران کې د برتانیې د هغه وخت بحري ځواکونو په دې وتوانیدل چې زیات منافع ترلاسه کړي لکه د فرانسې، هسپانیې او هالینډ مستعمرې چې د دښمن له لورې استعمال شوی وې، ترلاسه کړي، انګلستان نوموړي ځایونه د امت بنسټ په پخپل تصرف کې واخیستل، همدارنګه نوموړي دولت د وین په کنګره کې په دې ټینګار کاوه چې د درباریانو د اتسمالک په موضوع بحث ونه شي. دولتونو سره د یو لړ جدا موافقتنامو په وسیله حل شي، دغه دولت د هالنډ مستعمرې چې ستراتیژیک ارزښت یې درلود خصوصاً د ختیځو تجارتي لارو د حفظ او ساتنې لپاره د ځان سره وساتلې، د مالت او ابوایی جزیرې چې ناپیلیون د مصر د تسخیرولو لپاره ترې کار اخیستی وه، په مدیترانیه کې د انګلستان د موقیعت د تقویې لپاره وساتل شو. د هلي ګولند جزیره چې شلزویګ او

هلشتانیی پورې اړه درلوده. انقلاب او د حکومت د جګړو په دوران کې ناپیلیون په خپل تصرف کې راوستي وه او په دغه وخت کې د بحر په شمال کې ستراتیژیک ارزښت درلود، وسائل شو، د انګلستان دهقانانو د ټینګار په نتیجه کې د هالنډ مستعمرې او په جنوبي امریکا کې ډیره سرمایه ګذاري کړې وه، دا ټولې سیمې وسائل شوې د انګلستان په عنوان وویل شوې.

لکه څرنګه چې ورته اشاره وشوه د وین په کنګره کې ملي پالنې (ناسیونالیزم) تـه توجـه ونـه شوه. او کارونه داسې سرته ورسیدل چې د اروپـا کامیـابي د ملتونـو د توجـه وړ او موافقت لـه لارې نه، بلکې یواځې د قانوني زمامدرانو د تابعیت لـه لارې تـامین شـو. دغـې کنګرې د اروپـا امنیت د یو داسې مشترک نړیوال نظام پر بنسټ چې د قواو توازن وساتي، رامنځ ته کړ. څکـه د قواو توازن د اصل رعایت د وخت د لویو قدرتونو د بهرنیو سیاستونو او ګټو سره موافق وه.

فرانسې او انګلستان د وین د معاهدې د پوښښ لانـدې سیمو کـې تعـرض ونـه کـړ، پـه هغـه وخت کې فرانسې او اطریش د المان او ایټالیا اړونده د حل لارې ومنلې، سره له دې چې دواړو په دغه سیمو کې ګټې لرلې، د توجه وړ نقطه دا ده چې په هر حال د وین په کنګره کې ګډون کوونکو د ملګرو ملتونو په څیر د یو بنسټ د جوړلو فکر نـه درلـوده، بلکـې توافـق یـې کـړی وه چې د اروپا د ګـډو ګټـو، د سـولې او ارامښـت لپـاره پـه ټاکـل شـویو وعـدو او غونډو کـې بـه د مذاکرې لپاره راټولیږي.

برتانیه په اروپا کې د قواو د توازن د ساتلو غوښتونکی وه، څکـه دوی غوښـتل پـه پښـو ولاړ، سوله (عادلانه تعادل) د دولتونو د قدرت په منځ کې برقرار شي چې دغې چارې د انګلستان د عمومي افکارو سره همغږي لرله او د نوموړي هیواد ګټې یـې هـم تـامینولې، انګلسـتان چـې د اوږدې مودې لپاره په جګړه کې ګیر ؤو، د ازادۍ او سوله یېزې اروپا په لټه کې وه او له دې اړخه یې د خپلې لوی امپراطورۍ لپاره کومه ویره نه محسولوله، په داسې یو وضیعت کې انګلستان کولی شو، له کوم مانع پرته د بین المللي تجارت چې د یو صنعتي کیدونکي هیواد پـه عنـوان، چې باید د هغې سره ژوند وکړي لټه کوله، د دغې منافعو د تأمین لپاره یـې خپلـو بحـري غـوره والي ساتنه کوله او پرې متکي وه، دغه دولت نه غوښتل چې خپل هیواد تـه د اروپـا پـه داخـل کې پراختیا ورکړي، د دوی استعماري سیاست هدف ډیرو طبیعي منافعو پـه سـاتنه او برخمن

کيدلو کې وه، تر څو مهاجر مېشتې سيمې ايجاد کړي لکه هغه څه يې چې په شمالي امريکا کې د لاسه ورکړي وي.

فرانسې او اطريش هم د قواو توازن په اصل تاکيد کاوه. دوی ادعا کوله چې تايلينـد (د اروپا ازادي ګانې) دې بيا برقرارې شي. د دغې خبرې څخه يـې غـرض دا وه چې اروپائي دولتونو د واحد دولتي فوقيت د بند څخه خلاص شي. دوی په نظر کې لرلـه چـې (د نړيوال پادشاهۍ حکومت) دغه اصطلاح ديپلوماتانو د ناپيليون د حکومت د معرفي کولو لپاره په کار وړلـه، د خطر د مخنيوي لپاره د قدرت توزيع بايد داسې وي، چې سياسي قدرت د ګڼ شمير خپلواکو اروپايي هيوادونو په منځ کې ويشل شوی وي. او توازن وسـاتلی شي. اروپـايی هيوادونـو هيلـه لرله چې د دولتونو ترمنځ د قواو سمه او درسته موازنه، دايمي او پايداره سـوله مـنځ تـه راوړي، په دغه وخت کې د سولې لپاره عمده او لوی خطر د فرانسې له لورې محسوس کيده.

که چېرې د وين کنګره په خلاصه ډول نتيجه ګيري کړو، لاندې نقاطو ته متوجه کيږو: پولنډ د درې هيوادونو په منځ کې وويشل شو (پـروس، روسـيې او اطـريش)، ايتاليـا پـه څـو کوچنيو هيوادونو وويشل شو او د بوربنيانو کورنۍ حکومت په فرانسه، هسـپانيه او د ناپـل پـه ايـالتونو کې بيا راوګرځيد.

د هالنډ جمهوريت يې بيا راژوندی نه کړ او د هغې پرځای يې هالنـډ او بلژيـک د يـو بـل سره يوځای کړل. او د (نيدرلنډ پاچاهي) يې منځ ته راوړه، همدارنګه د ساکسوني يوه برخه د پروس پـورې وتـړل شـوه، د اطـريش پـه مشرۍ پـه المـان کـې د ۳۹ ايـالتي کنفدراسـيون ايجـاد، د لومباردي د استرداد او د هغې تحويل هم اطريش ته، او په پارما هم د کنترول حق اطريش ته، مودنا، توسکاني د دوک ورشو په ګډون روسيه ته ورکړل شوې، ناروې له ډنمارک څخه سويډن ته منتقل شو، فنلنډ د سويډن څخه روسيې ته انتقال شو.

د پاريس په (۱۸۱۵)د نومبر په دويم قرارداد کې د فرانسې هيواد سـيمې د ۱۷۹۰ ز کـال تـه وروګرځيدلې په واقيعت کې داسې څه نه و پاتې شوي چې الزاس او لوران هم د لاسـه ورکړي، په دغه کنګره کې ټول تصميمونه د څو فاتحو هيوادونو په واسطه ونيول شوه. پـه داسـې حال کې چې د خلکو اراده او ميلان يې په نظر کې نيولی نه وو، او غالباً هغوی يـې مجبـور کړي وو

چې په داسې ژبه خبرې وکړي چې د هغوی خپله ژبه نه ده، په دې توګه یې د جګړې او مشکلاتو تخم اینده لپاره کرلی وه. د ۱۸۱۴ او ۱۸۱۵ز کلونو کنګرې چې کوم عمده کار سرته ورساوه هغه د ناپیلیون د لویې امپراطورۍ له منځه وړل، د انقلاب څخه د پخوانیو سلسلو بیرته راګرځول، لکه هومنزلرن یان په بسبورک، بورین او غیر روحاني امیران په آلمان کې خپل قلمرو ته، او د قواو توازن پخوانی حالت ته ورته وخت په څیر استقرار، د بل لوري د اروپا د پادشاهانو د خاطر اسوده کول، د هغه وحشت څخه چې د فرانسې لوی انقلاب د هغوی لپاره منځ ته راوړی وه. په عین وخت کې د روسیې پواسطه د مقتدر اتحاد جوړیدل، چې اطریش او پروس د هغې په وسیله خپل ځان او خپل اروپایې شاهان وساتي. چې هدف یې د روشنفکرۍ او انقلابي افکارو په وړاندې دعقیدې جګړه په لاره اچول وه، پس لوړو قدرتونو تصمیم درلوده چې زوړ نظم هر چیرې چې لازم وي، د خشونیت سره یې یو ځای اعاده کړي. او هغه سیاسي ځواک چې په اروپا کې یې انقلاب کړی وه، مهار کړي.[1]

## لومړۍ) په لویدیځه اروپا کې ناسیونالیزم

ناسیونالیزم د ډیرو پیاوړو حکومتونو په وړاندې د غبرګون په عنوان منځ ته راغی، په لویدیځه اروپا کې یعنې انګلستان، فرانسه او هسپانیه چې پخوا یې د خلکو په منځ کې ملي وحدت موجود وه، هلته طبعاً ناسیونالیزم یو عادي کار ګڼل کیده، په ټولو ځایونو کې، مثلاً په ایټالیا، المان، پولنډ، اطریش، عثماني ترکیه یعنې په هغه هیوادو کې چې هلته د ملت واحد تابعیت درلود، مګر په سیاسي لحاظ یو له بله بیل وه او یا د خارجي حکومت د تسلط لاندې وه، ناسیونالیزم د هغوی د اهدافو او امرونو د سرلوحې ځای نیولی وه. له شک پرته دغه ډول هیوادونو لکه څرنګه چې لویدیځ دولتونه (انګلستان او فرانسه) یې بریالي لیدلي او دغه چاره یې د هغوی د ملي وحدت نتیجه ګڼله، دوی هم علاقه لرله چې متحد شي.

---

۱. ملیحه حسن، لکچر نوټ تاریخ سیاسی جهان، پوهنتون کابل.

د ۱۸۱۳ ز کال څخه وروسته په آلمان کې د ملت د حقه حقوقو د ترلاسه کولو د تلاش او قیام وخت او په ایټالیا کې د ملي پاڅونونو او په ختیځه اروپا کې د ( اسلاو) د عظمت ژوندي کول.

د دغې نهضت زیاتره غړي د روشنفکرو د طبقې څخه وه، معمولاً د دوی د کار شروع د فرهنګي ناسیونالیزم سره یوځای وه، په دې معنی چې ویلي به یې چې هر ملت د ژبې تاریخ او د خپل خاص فرهنګ لرونکی دی. چې هغه باید وساتي او تکمیل یې کړي، دغې ډلې خپله توجه معمولاً د سیاسي ناسیونالیزم طرف ته ګرځولی وه او په دې عقیده وه چې د خپل ملي فرهنګ ازادۍ او عدالت د ساتنې لپاره د هر ملت افراد او ټولنه باید د خپل ځان لپاره مستقل حکومت جوړ کړي، چې د حکومت کارکوونکي هم باید د هماغه ملت وي او یا په یوه ژبه خبري کوي.

له هغه ځایه چې د دغه ډول کار د تحقیق لپاره یې ټوله اروپا د فرانسې له ختیځ څخه په بر کې ونیوله، او د ټولو دولتونو لپاره تاثیر لرونکي وه، د ناسیونالیزم ټول معیارونه اصلاً د انقلاب د مرامونو څخه ګڼل کیدل، ناسیونالیستانو چې د خپلو عقایدو د ښکاره کولو څخه یې ویره درلوده د دولتي مقاماتو د تعقیب لاندې واقع شول، په دې ترتیب دوی ګڼ شمیر په یو لړې ځای کې راټول شوه، پټ او سري انجمنونه یې جوړ کړل، چې له دې جملې څخه کولی شو د کاربوناري جنسیتي نوم واخلو چې د ناپیلیون په وخت کې په ایټالیا کې منځ ته راغی، او همدارنګه نور مثالونه یې هم شتون لري لکه وایي ایټالیایي انجمن، اپوفاسي منیس او نور...

په لویدیځه اروپا کې تر ټولو مشهور ناسیونالیست فیلسوف ایټالوي جوزف مازیني وه چې په ځوانۍ کې د ۱۸۰۵-۱۸۷۲ ز کال د کاربوناري سري انجمن سره ملګری شوی وه، مګر په ۱۸۳۱ ز کال یې خپله د یو انجمن بنسټ کینښود. چې د ( ایټالیا ځوان) نومیده، د نوموړي له نظره ملت او انقلاب یو سپیڅلی او مقدس کار وه.

په ۱۸۳٤ ز کال مازیني د ساردني د حکومت په ضد غیر مجاز مبارزه پیل کړه، او هیله یې درلوده چې د ایټالویانو ټول خلک راپورته شي او د ده سره به متحد شي. دغه کار د عمومي ماتې سره مخامخ شو د مازیني په نظر انقلاب او ملیت سپیڅلی وه، چې له لارې یې باید لوی

او بهترین خصوصیتونه چې د بشر د ځیدلو سبب وګرځي ترلاسه کړي، مازیني د ملتونو د عمومي امیدونو د تحقق سره موافق وه، مګر احساسات یې په ځانګړي ډول د خپل وطن ایټالیا لپاره وه او عقیده یې لرله چې دا هیواد د بشري ټولنې د هدایت لپاره ځانګړی ماموریت په غاړه لري.

د هیګل په فلسفه کې(۱۸۳۱-۱۷۷۰) د ملیتونو مسئله شاید تر ټولو لوی نظریات وه چې په ۱۹ ز پیړۍ کې وځیدل، د نوموړي له نظره حکومتي دستګاه د عقل او ازادۍ ښکاره کوونکې ده، او که چېرې ملت وغواړي د نظم، حیثیت او ازادۍ څخه برخمن وي نو باید د یو قوي مقتدر او مستقل حکومت لرونکی وي، د نوموړي له نظره حکومت د عقل او ازادۍ د ښکاره کولو او بیانولو دستګاه ده.

لئو پلد فن رک(۱۸۸٦-۱۷۹۵) ز کال د تاریخي مطالعاتو د علمي مکتب بنسټ ایښودونکی وه نوموړي عقیده درلوده چې اروپا باید خپل بې مثاله عظمت د څو مشخصو ملیتونو د متقابلو اعمالو څخه ناشي وګڼي، چې تل د دې مانع شوي چې یو اروپایي ملت ټول ملتونه د خپل ولکې لاندې راولي، رنک به ویل چې المانیان د خدای له لورې په دې ګمارل شوي چې یو فرهنګي او سیاسي سیستم، چې د فرانسویانو حکومت څخه کاملاً بیل او جدا وي، رامنځ ته او وټاکي، (المانیان دې د خالص آلماني قلمرو په جوړلو اقدام وکړي چې د ملت د نبوغ سره موافق وي). رنک په شدید ډول د فردیت اصول مشروط او پارلماني حکومتونه چې د المان د ملي ارزښتونو سره جوړیدونکي وي، ردول. المانیانو لویدیځ چې ځانونه یې د فرانسویانو د معنوي نفوذ لاندې ګڼل په مرموز ډول د انقلاب ضد وه، چې دغه چاره له هغه ځایه پیدا شوه چې د دغه ملت د فیلسوفانو نظریات د فرانسې د لوی انقلاب او د هغې نتایج په جرمن میشته سیمو کې په بر کې نیسي.

فرید رغ لیست په خپل کتاب (ملي اقتصاد او سیاسي سیستم) په عنوان یې په ۱۸٤۱ز کال لیکلی، د انګلستان اقتصادي وضعیت بیان کړ چې د انګلستان د پرمختګ باعث شو، او د المان اقتصاد لپاره یې هم نظریات ارایه کړي.

په کوم شکل چې سیاسي اقتصاد په انګلستان کې تدریس کېده د انګلیسانو د ملي عقیدې بنه یې لرله، چې دا ډول اقتصاد یوازې د انګلیس د وضیعت سره جوړ راته. دا موضوع یو انفرادي حقیقت نه شو ګڼلی، بلکې دا باید په تاریخي مرحله کې د یو لړ عقایدو سلسه وګڼو، په ځانګړې ډول هغه هیوادونه چې خاص تکامل یې کړی، نوموړي ویل چې د انګریزانو د ازاد تجارت فلسفه د په داسې ډول طرح کړي وه، چې ټول هیوادونه د خامو موادو د تهیه کولو په حالت کې ساتي او انګلستان د نړۍ په صنعتي مرکز بدل کړي. نوموړي زیاتوي او وایې که چېرې هر هیواد وغواړي چې متمدن شي نو خپل ملي فرهنګ باید تکمیل کړي. باید خپل ښارونه، کارخانې او سرمایه ولري، او له هغه ځایه چې نن ورځ بل هیڅ هیواد نشي- کولی چې په انګلستان کې نوې کارخانې جوړې ګړي او له دې لارې له انګلستان سره رقابت وکړي. نو د انګلستان د صنعتي قدرت په مقابل کې د خپل ځآن د ساتلو لپاره مجبور یو، چې ګمرکي مالیات په مؤقت ډول زیات کړو، تر څو د انګلیسي تجارتي اجناسو د واردولو څخه مخنیوی شوی وي، او په دې توګه داخلي صنعت رشد او انکشاف وکړي.[۱]

## دویم) د ختیځې اروپا ناسیونالیزم

په ختیځه اروپاکې د پولنډیانو او مجاریانو فعالو ناسیونالیستي ډلو د اوږدې مودې لپاره مبارزې کړې وي، د پولنډیانو هدف دا وه چې ویشل شوي ځمکې بیرته پولنډ ته ورکړل شي او په دې توګه د پولنډ حکومت ایجاد شي، مجاریانو په همدې ترتیب ټینګار کاوه چې د دوی وطن مجارستان دې د هابسبورګ د امپراطورۍ په داخل کې یو خپلواک هیواد وي. مګر باید ووایو چې د ختیځې اروپا ناسیونالیزم د سیاسي بڼې څخه زیاته فرهنګي بڼه درلوده.

د پیړیو تحولاتو د چکیانو، رومانیانو، صربیانو، کراوتیانو او حتی په ټیټه درجه د پولنډیانو او مجاریانو د قدرت او فرهنګ په له منځه وړلو تمام شوي وه، د دوی لوړو طبقو په الماني او یا فرانسوي ژبه خبرې کولی، بومي ژبې د دهقانانو په منځ کې رواج وې او د دغه قومونو فرهنګونه یوازې دهقانانو په منځ کې رواج درلود. چې د اروپا متحدو ملتونو د هغوی د احوالو

[۱]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد دوم، تاریخ جهان نو، مخ ۷۷۰ - ۷۷۶.

په اړه چنداني معلومات او پیژندنه نه درلوده، ظاهراً داسې ښکاریدله چې دغه ژبې به په مکمل ډول له منځه لاړې شي لکه څرنګه چې د ایرلینډ بومي ژبه په تدریجي توګه انګلیسانو په مقابل کې له منځه لاړه.

مګر په ۱۹ پیړۍ کې وطن پالونکو په تدریجي توګه د خپلو پخوانیو اثارو، فرهنګ د ساتنې لپاره لکه څرنګه چې پخوا د اولیت څخه برخمن وه، خپل فعالیتونه یې شروع کړه، د محلي عامیانه افسانو، ترانو په راټولو یې پیل وکړ، د ژبې د ژوندي کولو او تدوین لپاره یې د لغاتونو قاموسونه چې په غالب ګمان د لومړي ځل لپاره دوی سرته ورساوه، له دې پرته د دغه قومونو په مورنۍ ژبه د کتابونو تالیف رواج وموند. وطن پالونکو د خپل هیواد تحصیل یافته طبقې دې ته وهڅولې ترڅو پردي عادتونه ترک کړي، تاریخونه لیکي چې په منځنیو پیړیو کې نوموړي قومونو د برجستو فتوحاتو شواهد خپل افرادو ته ارائه کړي.

یونانیانو د منځنۍ پیړۍ د امپراطورۍ د بیا رامنځ ته کولو خیال درلود (چې په اروپا کې یې په بیزانس سره شهرت درلود)، او هیله من وو چې څرنګه دغه امپراطوري نوی ایجاد کړي، همداراز د بالکان د شبه جزیرې اکثریت خلک په یوناني ژبه خبرې کوي او د یونان د ارتدوکس مذهب پیرو ول.

د ختیځې اروپا نهضتونو څخه تر ټولو اغېزمن نهضت د رستاخیز نهضت وه. اسلاویان عبارت وه له: اسلونیان، صربیان او بلغاریانو څخه. دا هم باید له یاده ونه باسو د تزار لومړي الکساندر د سلطنت په وخت کې روسیې هم لویدیځ ( اروپائې) رسم او رواج ته میلان درلوده، مګر د خپل عمر په وروستیو کلونو او له مرګ څخه وروسته یې د اسلاویانو په طرفدارۍ رسم او رواج او عقیده په تدریجي توګه رواج شو. او د دوی تمایل دې ته وه چې د پان اسلاویزم اسانه شي چې په کلي توګه د ټولو اسلاوي ملتونو لپاره یو ډول مسلم مساوي حقوق ولري، مګر د ۱۸۴۸ ز کال څخه مخکې پان اسلاویزم شتون نه درلوده.[1]

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. جلد دوم، تاریخ جهان نو، مخ ۷۷۷ – ۷۷۹.

## دویم: د اکسلاشاپل د ۱۸۱۸ ز کال کنګره

له جګړې څخه وروسته لوی دولتونه د لومړي ځل لپاره د اکسلاشاپل (یا آخن) په کنګره کې سره راټول شوه، د ټولو موضوعاتو څخه چې په دغه کنګره کې مطرح شوې، یوه هم د فرانسې د خاورې څخه د متفقینو د قواو وتل وه، فرانسویان په دې باور وه تر څو پورې چې ۱۸ لوېي د کوم بهرني ځواک ملاتړ د ځان سره ولري هیڅکله به هم د فرانسویانو په منځ کې محبوبیت ترلاسه نه کړي په دې توګه متفقینو خپل فوځونه د فرانسې د خاورې څخه وویستل، همدارنګه داسې یې وکړل چې د فرانسې قرضونو د تاوان عهده دې خصوصي بانکداران په غاړه واخلي. چې دغه تاوانونه (هماغه ۷۰۰ میلیونه فراک وه چې متفقو دولتونو د پاریس د دویمې عهدنامې په سبب په فرانسه تحمیل کړي وه) بانکدارانو دغه قرضونه متفقینو دولتونو ته ورکړل او فرانسویانو هم د ورځو په تیریدو سره یاد شویو بانکدارانو ته خپل قرضونه ورکړل. په هغه کنګره کې چې امیر ټاکل کېده هس (Hesse) غوښتنه وکړه، څرنګه چې د روم سپیڅلې امپراتوري منحل شوې او پرځای یې پخواني امیران (باویر، ساکسوني) او (هانور) هر یو خپل ځان پاچا کړی، دوی هم د هس سلطان په نوم وپیژني. د دوی دا غوښتنه ونه منل شوه، همدارنګه په دې کنګره کې د ناپیلیون بناپارت مور غوښتنه کړې وه، دا چې ناپیلیون لیرې کړی شوی دی، باید فرانسې ته د دوهم ځل راتګ چانس ورکړل شي، مګر دغه موضوع هم د قبول وړ ونه ګرځیدله. کنګرې تصمیم ونیوه چې ناپیلیون لکه څرنګه چې پخوا وه هماغسې د سن هلن په جزیره کې وساتل شي. د روسیې الکساندر په دغه کنګره کې د یو ډول دایمي اتحادئې د جوړولو طرفدار وه، نوموړي عقیده درلوده، چې داسې نړیوال قوانین منځ ته راشي چې د هر ډول تغیراتو پر وړاندې د حکومتونو رسمي ضمانت ولري، چې په زور سره تر سره شي. د نوموړي عقیده داسې وه چې که چېرې دغه هیوادونه د انقلاب په وړاندې اطمینان پیدا کړي د مشروطه او لیبرال اصلاحاتو ته به مایل وي. مګر ټولو په ځانګړي ډول لرډ کاسل دې د انګلستان د بهرنیو چارو وزیر مشکلات پیدا کول. په دې معنی چې د هر ډول غیر منتظره پیښې د واقع کېدلو په وړاندې، په ځانګړي ډول د فرانسې له لوري د ګواښ او یا د

تجاوز په صورت کې خپل ځان د بین المللي تعاهداتو په پوره کولو ملزم ګڼي. مګر د هغو نا ټاکبو پېښو پر وړاندې چې د هغې پیشبیني کول امکان نه لري، پر وړاندې یې د هېڅ ډول تعهد قبلولو ته حاضر نه یم. انګلیسانو په بهرني سیاست کې د نظر د ازادۍ حق د خپل ځان لپاره وساته، بله موضوع چې د کنګرې د توجه وړ وه، د اطلس اوقیانوس په حوزه کې د تجارت د غلامۍ مسئله، او د شمالي افریقا د سواحلو په لورې د غلو د مزاحمت مسئله وه، چې تل پېښیدله.د کنګرې استازو د رأیو په یووالي سره اتفاق وکړ، چې دغه دواړه مسئلې بیخي حل کړي. مګر د دغه دواړو مسئلو له منځه وړلو د دې ایجاب کاوه، تر څو بحري ځواکونه جوړ شي، مګر دغه قدرت یوازې انګلستان په واک کې درلوده، له دې علاوه باید د کشتیو پالونکو ته اجازه ورکړل شوه، تر څو هره کشتۍ په دریاب کې ودروي، وئې څاري او یا یې وپلټي. اروپائې هیوادونو چې د انګلیس د بحري ځواکونو د لا قوي کېدلو څخه ویره او تشویش درلوده، د انګلیس بحري ځواکونو ته د داسې اختیار ورکولو ته حاضر نه وو، اروپائې دولتونو د بحرونو د ازادۍ د ناحیې څخه ویره درلودله، مګر انګلیس حاضر نه وه په داسې مذاکراتو کې ګډون وکړي چې په پایله کې یې نړیوال بحري ځواکونه تشکېل شي، چې د انګلستان کشتۍ د داسې تشکېلاتو په اختیار کې وي او یا د انګلستان یو شمیر کشتۍ د بین المللي هیئت د فرمان لاندې راشي.

په دې ډول هېڅ کار تر سره نه شو، غلام تجارت دوام درلوده. او د شمالي افریقا غله د یوې ستونزې په توګه باقي پاتې شو، تر څو ډېر کلونه وروسته کله چې فرانسویانو د الجزائر خاوره ونیوله او د ځان پورې یې وتړله، د بین المللي مؤسساتو انکشاف یې د خپلواکو هیوادونو د جدا منافعو په واسطه سره وتړلې.[1]

## لومړی) سپېڅلی اتحاد

سپېڅلی اتحاد چې د فاتحو هیوادونو له لورې منځ ته راغی، د اروپا د ساتنې او د انقلابي افکارو د بیا پراختیا د مخنیوي لپاره یې هېڅ توجه نه درلوده، دغه اتحاد چې د تزاري روسیې

[1] . رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري، تاریخ جهان نو، جلد دوم، مخ ۷۹۲ - ۷۹۳.

په ۱۸۱۵ ز کال د سپتمبر په میاشت کې منځ ته په ټینګار د روس، پروس او اطریش ترمنځ، د یادو شویو هیوادونو د پادشاهانو په نظر دغه راغی، د مذهبي عقایدو څخه یې الهام اخسته، د یادو شویو هیوادونو د پادشاهانو په نظر دغه اتحاد د دوی د ملتونو په خیر او مصلحت ؤو، دغه تړون په ځانګړي ډول د تزاري روسیې د خوشحالۍ باعث شو، دغه سپیڅلی اتحاد په تدریجي توګه په داسې یو اتفاق بدل شو، چې د انقلابیانو د له منځه وړلو او د ازادۍ غوښتونکو (لیبرالانو) د فعالیتونو مخنیوی یې کاوه.

مترنیخ چې ډېر واقع بینه وه، د دغه اتحاد څخه یې د سیاسي معاهدې په توګه د ازادۍ غوښتونکو د افکارو د مخنیوي لپاره استفاده وکړه، چې تقریباً په هر ځای کې د رشد په حال کې وه، دغه درې متحدو پادشاهانو، فرانسه د هر ډول انتقامي فعالیت د تر سره کولو څخه منعه کړله، او په هغه هیوادونو کې چې انقلاب هغوی تهدیدوي د مداخلې تصمیم ونیوه.

هغه کنګرې چې جوړېدلې، نوموړو پادشاهانو پکې ګډون کولو، تر څو د اروپا وضعیت د بررسی او مطالعې لاندې ونیسي، لومړنۍ کنګره چې په ۱۸۱۸ ز کال په اکسلاشاپل کې دایره شوه انګلستان او فرانسې هم پکې استازي درلودل، دې کنګرې داسې تصمیم ونیوه، چې متحدین دې د فرانسې خاوره پرېږدي او فرانسه دې په اینده کې د لویو دولتونو په مذاکراتو کې ګډون وکړي.

د تروپو (Troppau) کنګره په ۱۸۲۰ ز کال د هسپانیا او ناپل وضعیت ته د رسیدګۍ لپاره چې انقلابي شوې وه، تشکېل شوه. او د اروپا د لویو دولتونو پادشاهانو ته یې په هسپانیا او ناپل کې د مداخلې کولو اجازه ورکړه.

د لي باخ( Laibach) کنګره په ۱۸۲۱ ز کال همدغه مسائیلو ته جوړه شوه، او اطریش ته یې په ایتالیا کې د مداخلې کولو حق ورکړ، مګر د یونانیانو د شورش او بغاوت په اړه سره توافق ته ونه رسیدل، ځکه په ختیځ کې د روسیې سیاست د اطریش د سیاست مخالف وه.

د ورون (Verone) کنګرې فرانسې ته ماموریت وسپاره چې هسپانیې ته ځواکونه واستوي او په نوموړې سیمه کې استبدادي حکومت برقرار کړي، انګلستان له دې نیتې څخه وروسته د سپیڅلي اتحاد سره خپلې اړیکې پرې کړې، او مخکې له مخکې یې ( ازادۍ غوښتنې) روش

په مخکې ونیوه. وروستی کنګره په سن پطرسبورګ کې جوړه شوه، چې تزاري روسیې په بوازې دول په دغه کنګره کې ګډون وکړ په دغه کنګره کې د یونان اړوندو مسائیلو مذاکرات له کومې نتیجې تر لاسه کولو پرته صورت ونیوه، او د سپیڅلي اتحاد کار هم په ۱۸۲۵ ز کال په همدغه کنګره پای ته ورسیده.[۱]

## څلورګونی اتحاد (پنځه ګونی)

کله چې په اروپایي هیوادونو کې متوسطه طبقه د حاکمانو له محافظه کارۍ سره په ټکر کې وه، نو د سپیڅلي اتحاد په طرف لاړل، او د دې مسلطو حکمرانانو د نظام ساتنې لپاره په وین کنګره کې یو نخیر وګنډله، مګر په واقیعت کې د یادو کنګرو د تصمیمونو پلې کولو دوه اتحادو شکل ونیوه، یو سپیڅلی اتحاد او بل څلور ګونی اتحاد، لمړنی اتحاد د هغه وخت د اروپا د روشنفکرانو باورونو ته انعکاس ورکاوه، هغه روشنفکران چې خپل ارمانونه یې د مسیحیت د نظام په رامینځ ته کولو کې لرل، دغه اتحاد د مترنیخ د سیاستونو په اثر په هغه څه بدل شو چې یوازې په خبرو کې یې شتون درلود، مګر د هغه وخت د لیبرالانو په ذهن کې زور واکې او هرڅه ارتجاعي وو، همدارنګه د ازادۍ غوښتونکو (لیبرالیزم) ته توطیه او د ښار د خلکو څخه د همدغو په وړاندې د اتحادیو جوړول وه.

د وین کنګره د تصمیمونو په عملي کولو کې برعکس مؤثر عامل د اطریش، انګلستان، روسیه او پروس څلور ګونی اتحاد وه، دغه معاهده د څلورو بریالیو قدرتونو په منځ کې (په محرمانه توګه د خپلو نظامونو د ساتنې لپاره په همغږۍ اقدام کولو لپاره) د لاسلیک کوونکو په منځ کې وتړل شوه، تر څو د بریالیتوب د ساتنې لپاره یو قوي تضمین شي، انګلستان قصد درلوده چې دغه اتحاد د سپیڅلي اتحاد په وړاندې واقع شي او یوازې هغه څلور لوی قدرتونه چې نا پیلیون ته یې ماته ورکړې وه، پکې برخه واخلي، په دې اتحاد کې باید کوچنې دولتونه غړیتوب وانه خلي، تر څو روسیه هغه تهدید نه کړي، او یایې له خپل نفوذ لاندې رانه ولي، او له دې لارې خپل سیاستونه د پورتنې اتحاد په چوکاټ کې پلي نه کړي، په مقابل کې روسیې

۱. ملیحه حسن، لکچر نوټ تاریخ سیاسی جهان، پوهنتون کابل.

غوښتل چې د دغه اتحاد اړوند ترتیبات چې د سولې څخه اخستل شوي، او همدارنګه په دغه اتحاد کې چې کوم مسائیل تر بحث لاندې نیول کېږي، دغه محدود کړي. مګر انګلستان غوښتل چې هره اروپایي مسئله په همدغه اتحاد کې مطرح کړي او دغه نظر د قبول وړ وګرځید، انګلستان او روسیه یو د بل د اختیاراتو د محدودولو په هڅه کې وه، او هر یو غوښتل د امکان تر حده په اتحاد کې د عمل ازادي او د اروپا په چارو کې د مداخلې امکان د ځان لپاره وساتي، په عمومي توګه څلور ګونی اتحاد د بین المللي همکارۍ پر مخ بیولو لپاره منځ ته راغی، مګر هغه عملي توګه له دغې کار لپاره پیشبینې شوې نه وه، وروسته له دې چې فرانسې خپله وفاداري ثابته کړه، د فرانسې ماتې خوړلې دولت هم په ۱۸۱۸ ز کال په دغه اتحاد کې ومنل شو، او نوموړي اتحاد په پنځه ګونې اتحاد بدل شو، په دې توګه د اطریش هغه غوښتنه چې د وین په کنګره کې یې کړې وه، چې فرانسه دې د لویو دولتونو په جرګه کې برخه واخلي تحقق ومونډ.

په هر صورت لیبرالانو د محافظه کارۍ د بریالیتوبونو مخالفت، په طبعي توګه ددې دواړو اتحادونو (مقدس او څلورګونی اتحاد ) یو د بل سره اشتباه کړ، او په قهر سره یې د مقدس اتحاد څخه د دښمن په عنوان خبرې وکړي، په داسې حال کې چې د دوی ریښتینی دښمن دویم اتحاد وه، دا اشتباه له هغه نظره چې په عمل کې واقع شوه، اهمیت نه لري. مګر د وین د ۱۸۱۵ ز کال د کنګرې څخه وروسته د هرې بررسۍ په اړه یوه نقطه د ځان سره په ذهن کې ولرۍ، کله چې د ازادۍ غوښتونکو ویناوال او ورځپاڼې د هغه وخت مقدس اتحاد ته اشاره کوي، په واقیعت کې د هغوی حمله څلور ګونې اتحاد ته متوجه وه، چې د هغې په اړه یې نیمګړې معلومات لرل.[1]

## دریم) د ۱۸۱۵ ز کال څخه وروسته د اروپا او نړۍ وضیعت

د دې لپاره چې د اروپایي او د نړۍ د نورو هېوادونو د وضعیت په اړه معلومات په ښه توګه ترلاسه کړو، نو د هر هېواد په وضعیت باندې په جداګانه توګه په لنډ ډول بحث کوو.

[1] ملیحه حسن، لکچر نوټ تاریخ سیاسی جهان، پوهنتون کابل.

## فرانسه

د ناپیلون له استعفی څخه وروسته اتلسم لوی په تخت کېناست، نوموړی مستبد، هوښیار او شکایت کوونکې شهزاده وه، اتلسم لوی د یو فرمان په واسطه ملت ته د دوه مجلسه پارلمان د جوړولو اجازه ورکړه، د پادشاهی غوښتونکو له خوا غبرګون وښودل شو، او د ناپیلون د طرفدارانو په وژنه، جمهوري غوښتونکي او پروتستانتان ډیری نظامیان او لویان تېر باران او یا تبعید شوه. څرنګه چې ځانګړي مالیات چې د رائې ورکولو او یا انتخابولو له پاره پیشبینې شوې وه، د نجباؤو په ګټه تمام شو له دې وروسته اتلسم لوی د اعتدال او منځلاری لاره غوره کړه.

د ۱۸۱٦ ز کال انتخاباتو مرتجعین د اکثریت څخه محروم کړل، د نوې مجلس استازې عبارت وه له: افراطیانو، د مطلقه حکومت او د عمل د شدت طرفداران او معتدله پاچاهي غوښتونکي چې ازادي غوښتونکي تمایلات یې درلودل او دوی د اکثریت لرونکي وه. ازادي غوښتونکي سره له دې چې پاچاهي حکومت یې قبول کړی وه، د جمهوري حکومت څخه یې کرکه کوله، دوک دوریشیلو لومړي وزارت ته ورسید. دمذهبي او سیاسي مسایلو په اړه یې مهم مذاکرات سرته ورسول. په ۱۸۱۸ ز کال تر ټولو معتدل دولتي هئیت د (دکاذ) په مشری د چارو د اداره کولو واک په لاس کې واخیسته.

۱۸۲۱ ز کال د سختو قوانینو د ایجاد او د افراطینو په واسطه د قدرت د تر لاسه کولو سره برابر دی. ۱۸ لوی په ۱۸۲۴ ز کال مړ شو، ورور یې لسم شارل ( کست دار توا ) چې د اتلسم لوی څخه ډېر مرتجع او سنتي سړی وه، قدرت ته ورسیده.

مجلس د هغو خلکو لپاره چې د مقدساتو بې احترامي کوي. یو ډول تنبیهي قوانین وضع کړل، د مهاجرانو لپاره یې جریمې او غرامات په نظر کې ونیول، چې د خلکو د نارضایت سبب وګرځیده، د ۱۸۲۷ ز کال انتخابات چپ لاسو په ګټه تمام شو، او یو منځلاری دولت منځ ته

راغی، مګر د افراطیانو د اختلافاتو په اثر د دغه دولت پادشاه له واکه لیرې شو، په[1] دې ترتیب د خلکو عدم رضایت د موجودیت سره سره ارتجاع په ظاهره په فرانسه کې بریالی شو.

## انګلیس

کوم غبرګون چې د ۱۸۱۵ ز کال څخه وروسته رامنځ ته شو نورو هیوادونو په نسبت په انګلستان کې کم او ضعیف وه. څرنګه چې پادشاهي حکومتونه پرځای وه، توریانو د لارد لیورپول، کاسلرې ارګانیک په رهبرۍ د حکومت اختیار په لاس کې درلوده، مګر د ملت د رضایت لپاره یې چې د ازاد انتخاباتي قانون او د مالي وضعیت د ښه والي غوښتونکي وه، کوم کار ترسره نه کړ. د دریم ژر ژر له مرګه وروسته د هغه زوی څلورم ژر ژر په ځای کېناست. د نوموړې په قدرت ته رسیدو سره د توري حزب په عقایدو او افکارو کې په تدریج سره تحول رامنځ ته شو، نوموړي حزب تر ټولو معتدله لاره ونیوله، د کاسلره له مرګ څخه وروسته د بهرني سیاست رهبري د کانینګ لاس ته ورغله، نوموړي د خو ازادۍ غوښتونکو نهضتونو په ملاتړ تردې چې په امریکا، پرتګال، او یونان کې انقلابونه وکړل او په دې توګه مقدس اتحاد، چې د سقوط په حال کې وه، د انګلیس د اړیکو له قطعه کولو وروسته هغه هم له ماتې سره مخ شو. د لیور پول او کانینګ له مرګ څخه وروسته ولینګتون لومړی وزیر شو نوموړي سره له دې چې د توریانو د حزب رهبري یې هم په غاړه درلوده، ازادي غوښتونکي قوانین تصویب کړل، په ځانګړي توګه د پروتستانتانو لپاره چې د انګلیس د رسمي کلیسا مخالف وه، د کاتولیکانو سره یې مساوي حقوق درلودل، څلورم ژر ژر هم په ۱۸۳۰ ز کال کې مړ شو.

## المان

د جرمنې اتحادیه چې په ۱۸۱۵ ز کال جوړه شوه، تقریبا د هماغه مقدس اتحاد د ځمکنی پراختیا او حدودو ته شامل وه. مګر د هیوادونو شمیر یې کم شوی وو، په دغه وخت کې په المان کې یوازې ۳۹ هیوادونو شتون درلوده. پروس او اطریش په ریښتینې توګه لوی دولتونه

---

[1]. ملیحه حسن، لکچر نوټ تاریخ سیاسی جهان، پوهنتون کابل.

وه اگرکه هر څه به هغوی جوړول، هر څه به یې چې غوښتل کولای یې شول، چې سرته یې ورسوي، چې دغه وضیعت په دغه ټوله دوره کې جریان درلوده. د پروس دریم پادشاه فردریک گیوم چې د ناپیلون د جگړو په دوران کې د اصلاحاتو لپاره کومي وعدي ورکړې وي، په هغې یې وفا ونه کړه. قدرت د نجباو په لاس کې باقي پاتې شو، د خلکو څخه ازادي سلب شوه، په مالي وضیعت کې اصلاحات ترسره شوه، تعلیم او تربیې پراختیا پیدا کړه، اداري سازمان د دقیقو اصولو او مقرراتو په رعایتولو سره وظیفي تر سره کولې، یو بل گټور گام د داخلي گمرک له منځه وړل وه، مگر د دې سره بیا هم د خلکو په منځ کې په ځانگړې ډول د محصلینو په منځ کې چې سیاسي انجمونه یې جوړ کړي وه یو ډول ویرې او اضطراب شتون درلوده.

## اطریش

پروس تر ټولو په بد وضیعت کې قرار درلوده، د اطریش امپراطور فرانسوا چې یو منځلاری سړی وه، دحکومت واک یې د مترنیخ ته په لاس ورکړی وه. مترنیخ د نوی فکر د خپرېدلو د مخنیوي او د ازادۍ غوښتونکو د ټکولو او له منځه وړلو په فکر کې وه، نوموړي په اطریش کې په مکمل ډول محافظه کاره حالت رامنځته کړ، او د هر ډول پرمختگ ممانعت یې کاوه، نوموړي پټ پولیس، یوه لویه مفصله او غیرمسؤله اداري دستگاه په اختیار کې درلوده، مالي وضیعت خراب وه. ازادۍ شتون نه درلوده، د ملتونو متنوع والی او میشت قومونه چې د اطریش او هنگري څخه وه او مختلفي ژبې او مذاهب یې درلودل.

د جنوبي المان هیواد، د پروس او اطریش په نسبت ازادۍ غوښتونکی او پرمختللی وه. مگر د دوی قدرت ډېر لږ وه او د مترنیخ د غوښتو په مقابل کې هېڅ او په تسلیمیدلو مجبور وه، څرنگه چې مترینخ ۱۸۱۹ ز کال د کارلسباد د کنفرانس په بنسټ نوموړي امیران د ډېرو بې حده ازادیو د ورکولو څخه منع کړي وه.

**روسیه**

د تزاري روسیې لومړی الکساندر، چې د ازادۍ غوښتنې د عقایدو څخه یې خپل لاس ویستلې وه مترینخ په مرسته په اروپا کې د ارتجاع اصلي ملاتړی وو، په دغه وخت کې تزار په مشخصه توګه د استبدادي رسومو، تشریفاتو، او اصولو پابند وو. په داسې کارونو یې لاس پورې کړ چې د نارامۍ سبب وګرځېدل، په دې معنی چې په کلیو او باندو کې یې د سربازانو څخه نظامې کوچ نشین جوړ کړل، دغو سربازانو په کلیو او مزارعو کې وخت تیرولو، او دا په داسې حال کې وه چې د کلیو اوسیدونکو نارضایت کومه پایله ورنکړه. په مذهبي او علمي چارو کې نور سختوالی هم رامنځ ته شو، ارتودوکس او د نورو ټولو مذاهبو پیروانو د عمل ازادۍ نه درلوده، غربي اروپا ته سفر کول بیخي نا ممکن وه، مګر د دې ټولو حالاتو سره سره ازادۍ غوښتنې پراختیا کوله او پټ انجمنونه د رامنځ ته کېدو په حال کې وه.

لومړی الکساندر په ۱۸۲۵ ز کال لاړ او پر ځای یې ورور لومړی نیکولای د هغه ځای ناستی شو. نوموړی یو با اراده، مستبد، صرفه جو، پر کار، او منظم حکومت غوښتونکې او د انقلاب او ازادۍ غوښتنې سخت دښمن سړی وه، د نوموړي د سلطنت په پیل کې ځینې بغاوتونه رامینځ ته شوه. مګر څرنګه چې شورشیانو منظم پروګرام نه درلوده، نو له ماتې سره مخامخ شول، او خپله غوښتنه، چې د سلطنتي حکومت په لاره اچول وه، عملي نه شوه. ځینې یې په زندان کې واچول او ځینې یې ( سیبریا ) ته تبعید کړل. لومړی نیکولای چې د روسیې د مطلق اختیار درلودونکې شوی وه، د مخالفو ازادۍ غوښتونکو په وړاندې یې سخت اقدامات وکړل، مګر د تجارت په پراختیا او اړیکو په لارو کې یې کوشش کاوه، د اداري جوړښت کې یې اصلاحات رامنځ ته کړل. نوموړي د لهستان د پادشاه په نوم هم تاج په سر کېښود، او د نوموړي هیواد د خلکو سره یې ښه رویه کوله. د نوموړې په دوران کې سره له دې چې د انقلابي افکارو سره سخته دښمن وه د سیاسي او مذهبي علامې له مخې یې د ترکانو په وړاندې د یونانیانو حمایت او ملاتړ کاوه.

## پرتګال او هسپانیه

په هسپانیه کې د فرانسویانو وتلو او د اووم فردیناند بیرته راتګ د وحشتناکو غبرګونونو پیل وه، د ازادۍ غوښتونکو استازي یې په زندان بندیان کړل، اساسي قانون یې لغوه کړ، او د انګیزوسون (د عقایدو پلټنه) دوېم ځلي شروع شوه، په ټولنه کې یې د روحانیونو معنوي او سیاسي ځای بیا را ژوندی کړ، فردیناند په نهائې استبدادي شکل حکومت کاوه، او په هسپانیه کې استبداد په قدرت ته رسیدو سره پوهانو په ډېر بد وضیعت کې ژوند کاوه، په عین حال کې د هسپانیه او امریکا په مستعمرو کې سخت بحران منځ ته راغی، د نظامي افرادو شمیر کم او په هیڅ حساب وه، او امریکا ته د شورشیانو د ټکولو لپاره د نورو کافي قواو لیږل غیر ممکن وه، وضعیت هره ورځ بدلیدلو داسي چې په ۱۸۲۰ ز کال شورش رامنځ ته شو، چې ټولې هسپانیه ته یې سرایت وکړ، پادشاه ورته تسلیم شو. او ۱۸۱۲ ز کال اساسي قانون یې جاري کړ، د هسپاني د مجلسونو غړو خپل جلسات جوړ کړل، کوم طرزالعمل یې چې مالي چارو وضعه کړی وو په پلي کولو یې پیل وکړ، انګیزوسون یې لغوه کړه، یو نوی جزايې قانون یې وضع کړ. منظم سازمان یې د تعلیم او تربیې لپاره په نظر کې ونیوه، اما ازادۍ غوښتونکي په دوه ډلو ( افراطي او معتدلو ) ویشلي شوي وه، ارتجاعي ډلو د موقع څخه استفاده وکړه داسي شورشونه یې منځ ته راوړل، چې په داخلي جګړو بدل شول، په دې وخت ۱۸۲۳ ز کال کې مقدس اتحاد د مداخلي تصمیم ونیوه او فرانسې ته یې دنده وسپارله تر څو د مطلقه سلطنت د بر قرارولو لپاره هسپانیه ته قواوي ولیږي.

د متحدینو ځواکونو په لومړي سر کې فرانسویان وه، د سخت مقاومت سره مخامخ، او ازادۍ غوښتونکي د دولت د کارونو څخه لرې شو، او پادشاه چې د عمومي عفوې وعده کړې وه په سخت غبرګون یې لاس پورې کړ، په زرګونو خلک یې ووژل، بندیان او یا یې تبعید کړل.

د پرتګال هېواد په اقتصادي لحاظ ډېر تر فشار لاندې وه، او د سختو ستونزو سره مخامخ وه، د پرتګال پادشاه شپږم ژان په برازیل کې وه، په ۱۸۲۰ زکال په پرتګال کې شورش رامنځ ته شو، چې د دوی د بریالیتوبونو سره ملګری وه، نوی اساسي قانون یې وضع کړ، په دې حالت کې شپږم ژان اروپا ته لاړه. د شپږم ژان له مرګه وروسته د ازادۍ غوښتونکو او مر تجعینو ترمنځ

د استبداد غوښتونکو رهبري يې پر غاړه داخلي جګړې پيل شوې، د ژان زوى دوف ميګل چې د اووم فرديناند طريقه د لاس لاندې درلوده، سلطنت ته ورسيده او د حکومت په کولو کې يې د اووم فرديناند طريقه د لاس لاندې ونيوله.

**ايټاليا**

د ۱۸۱۵ ز کال څخه وروسته ايټاليا د انقلاب څخه مخکې کلونو په څير په ګڼو برخو ويشل شوه، مګر سارډنې د سلطنت په څير باقي پاتې شو، اطريش چې د لومباردي مالک وه، نو په واقيعت کې د ټولې شبه جزيري باندې حاکم وه وروسته يې وينز ونيوه، چې دغې عمل د سارډنې په سلطنتي هيوادونو کې مودن او هغه هيوادونه چې د کليسا جز وه، سخت غبرګونونه را وپارول، د سيسيل سلطنتي هېواد کې هم غبرګونونه رامنځ ته شول. مګر دغه غبرګونونه بيا په تو سکان کې کم وه. د نارضايتۍ موجونو ټول ځايونه ونيول او ازادۍ غوښتونکي د انجمنونو به جوړولو سره را پورته شوه. په ۱۸۲۰ ز کال په اطريش او ناپل کې شورشونه وشول، چې سيسيل ته يې هم سرايت وکړ، د سيسيل پاچا لومړي فرديناند نوى اساسي قانون تر اجرا لاندې ونيوه، مګر مقدس اتحاد مداخله وکړه او يو اطريشي۔ مشر۔ يې د ازادۍ غوښتونکو د ټکولو لپاره وټاکه، بل انقلاب په بيه مون کې ښکاره شو، پادشاه د کار څخه کناره شو، مګر په شورشيانو د اطريش د غلبې وروسته بيا استبدادي سلطنت رواج شو، په ۱۸۲۱زکال د لمباردي او ونسي۔ په هيوادونو کې د دولت لخوا يو شمير توقيفونه او محکوميتونه تر شره شول، او د سري انجمونو سره يې مبارزه کوله، ورځپاڼو خپرونې يې منع کړلې، په مودن او روم کې هم همدغه وضيعت جريان درلوده، اما هغه هيوادونه چې د کليسا برخې وې، د نورو هيوادونو د مادي رفاهيت او سهولتونو څخه خبر نه وه، فقر، رشوت خوري او لاره وهنې په دغو ځايونو کې حکومت کاوه.

**سويس**

له کله راهيسې چې په سويس کې د تابع هيوادونو موضوع له منځه لاړه، د سويس ټول کانتونونه د حقوقي لحاظه سره برابر وه فقط اريستوکراسي، ټول خپل پخوانې امتيازات په

ټولو ځایونو کې بیا ترلاسه کړل، او د شوراګانو زیاتره چوکۍ یې په اختیار کې واخستې. نورې اغېزې د مطبوعاتو په ازادۍ، د مذهبي مراسمو په ترسره کولو کې ازادي، ټولنې، صنعتي او تجارتي فعالیتونه نه وه، په دې حالت کې د ازادۍ سره هم علاقي شتون درلوده، چې له دې امله علمي او وطن پالونکې ټولنې جوړې شوې، چې د ملي روحیې په تقویې سره یې د فدرالي قوي دولت جوړیدل اسانه کړل، او بیرته قدرت ته ورسیده.

## بې با (نیدرلینډ)

د بې با سلطنت د وین د کنګرې پر بنسټ د هالنډ او د بلژیک له اتحاد څخه منځ ته راغی او لومړی ګیوم د دغې خاورې د سلطنت لپاره وټاکل شو. کوم نوی اساسي قانون چې د نوموړي د حکمرانۍ په جریان کې جوړ کړ، د ازادۍ غوښتنې کمزوري بڼه یې درلوده، چې د هالنډیانو لخوا د قبول وړ وګرځیده، مګر د بلژیکیانو د اعتراض لاندې راغی. له همدې وخت څخه د دوه ملتونو ترمنځ اختلافات پیل شول، د حکومت مرکز په هالنډ کې وه. او له خپلو خلکو طرفداري یې کوله او له همدې امله یې د بلژیک خلک د مذهبي، ژبنې، مالي او تجارتي عواملو له امله ناراضه وه، د بلژیک روحانیونو زیات قدرت درلوده، او د مذهبي چارو په تر سره کولو کې ټولو خلکو ته د مساوي حقوقو ورکولو مخالف وه، خلکو نه غوښتل هالنډي ژبه، چې د دولتي کارونو لپاره لازمه وه زده کړي. دوی د له درنو مالیاتو د ورکولو څخه شکایت درلوده، څرنګه چې د هالنډ د قرضونو اندازه د بلژیک په نسبت زیاته وه. بلژیکیان د داخلي تجارت طرفدار ؤ. موجود ګمرکي حقوق یې لنډ او په هېڅ شمیرل. پادشا د هغوی د رضایت د جلبولو لپاره تصمیمونه ونیول خو متآسفانه کافي نه وه، نوموړي د وزارت مقام او لوړې سیاسي او نظامي چوکۍ هالنډیانو ته ورکولي چې دغه چاره هم د دوی ترمنځ د اختلاف یوه عمده عامل وه.

## ډنمارک او سویډن

په ۱۸۱۸ ز کال برناروت د څوارلسم پادشاه په نوم د سویډن پادشاه شو. نوموړي د هېواد په اداره کولو کې له ستونزو سره مخامخ شو. همدارنګه نوموړي استبدادي روش ته مخه کړه،

ناروي چې د سويډن د اتحاد څخه ناراضه وه، غوښتل يې چې د خپل ځان لپاره ځانګړي قوانين جوړ او وساتي. همداراز د خپلواکۍ هم ورسره وو، پادشاه د مالي او قضايي وضيعت د اصلاح او پراختيا ، د تعليم او تربيه، صنعت او تجارت لپاره په دواړو هيوادو کې فعاليتونه سرته ورسول.

په ډنمارک کې هم شپږم فردريک په استبداد سره حکومت کاوه، او د مالياتو اصلاح ته يې ځانګړي توجو درلوده، په شلسويک کې چې د المان يوه برخه وه، او همدارنګه په هلشاين چې په تمامه معنی الماني وه، او د جرمنۍ د اتحاديه غړي وه، حکومت کاوه، چې دغه وضيعت د پادشاه لپاره مشکلات رامنځ ته کړل.

## عثماني ترکيه

دويم سلطان محمود چې يو باعزمه او قوي پادشاه وه د امپراطورۍ د يووالي او د خپل وحدت د زياتوالي لپاره يې کوششونه وکړل، د نوموړي په دوران کې قوي او مجرب ځواکونه په مستقيم شکل رامنځ ته شول، بي نظمه او نا فرمانه سربازان يې ووژل، اسيائي پادشاهانو چې نيمه استقلال يې درلوده خپل اطاعت لاندې راوستل او د پانينا او علي په پادشاهۍ يې حمله وکړه، او ويې نيول.

د عثماني امپراطورۍ مسيحيان تل د دې امپراطورۍ لپاره لوی خطر ګڼل کېده، څرنګه چې (مونته نګرو) د ۱۵ ز پيړۍ څخه د ځان سره يې د خپلو فرمانبردارانو اطاعت درلوده، د ترکانو د حملو په وړاندې په شدت سره ودريده، د ۱۹ پيړۍ په شروع کې صربيان چې د درنو مالياتو څخه په تنګ راغلي وه د ( قره ژرژ) په مشرۍ يې په شورش لاس پوري کړ، مګر له يو څه وخت مقاومت وروسته په ۱۸۱۳ ز کال يې د ترکانو له لوري شکست وخوړ. يو کال وروسته ميلوخ او برنو ويچ mihikh obrenovtich يو ځل بيا صربان بغاوت ته و هڅول او د روسانو په مرسته يې د عثمانې ترکانو څخه د ازادۍ غوښتنه کوله .

**یونان**

ترکان وروسته له دې چې خبر شوه چې ایپ سلانتي رومانیې ته اردوکشي- کړي، نو خپلې قواوي یې هلته ورولیږلې، شورشیان یې په خپل ځای پرېښودل، مګر یونانیانو له دې موقع څخه په استفادي شورش وکړ او پرمختګونه یې وکړل، ترکانو د شورشیانو په وژلو پیل وکړ او یونانیانو خپل ځان مستقل اعلان کړ.

ترکانو چې تازه قواوي راوستې وي، یا نښای ونیو علي پادشاه یې و واژه، او وروسته یونان ته لاړل، د یونانیانو په وژلو، د ډېرو تاوانونو په اړولو سره هم ترکان د شورشیانو په ټکولو ونه توانیدل. مګر یونانیان په خپل منځ کې بي اتفاقه شوه، او په جګړه کې وه، او ترکان هم دا مهال ضعیفه او ناتوانه شوي وه، کافي پیسي او سربازان یې اختیار کې نه درلوده، چې له دغې وضیعت څخه استفاده وکړي، سلطان محمود په ۱۸۲۵ زکال د مصر له پادشاه (محمد علي) څخه چې د دلاس نیالګی وه مرسته وغوښته نوموړی خپل زوی ابراهیم د څو کشتیو سره د سلطان مرستي ته ولیږه، ابراهیم پادشاه په پلوپونیز کې پیاده شو، او د هغې یوه برخه یې ونیوله، د یونانیانو د کومک غوښتنه چې له اروپایي هیوادونو څخه یې کړې وه، کومه نتیجه نه درلوده، مګر یوازې روسیه مداخلې ته حاضره شوه. د (یوناني دوستانو) نهضت چې د مذهب، ازادۍ غوښتنې او پخوانیو خاطرو سره یې علاقه لرله هرځای پراختیا وکړه، دغه نهضت اروپایان هم دې ته حاضر کړل چې مداخله وکړي، ترکان آتن د نیولو وروسته میسولونقي هم ونیوه، هبته یې وینې وبهولې، یونانیان د دغې وضیعت په درک کولو سره د بې اتفاقی څخه لاس په سر شوه، او د خپل ځان لپاره یې رئیس او رهبر د (کاپودیستریا) په نوم وټاکه. نوې تزاري روسیې پادشاه اول نیکولای د ترکانو په نسبت تهدید امیزه تګلاره غوره کړه، په انګلستان کې د مداخلې زیات ګمان ښکاریده، بالاخره روسیه، انګلستان او فرانسه سره یو لاس شوه او د جګړې د متارکې طرحه یې وړاندې کړه، چې دغه پیشنهاد یوازې یونانیانو ومانه. په همدې بنسټ ذکر شویو درې دولتونو خپل قوتونه یونان ته ولیږل. په ۱۸۲۷ ز کال مصریانو او ترکانو بحري ځواکونه یې په ناوران کې له منځه یوړل، په ۱۸۲۸ ز کال روسیې د جګړې اعلان وکړ، مولداوي او والاشي یې ونیول، روسانو د ترکانو د سخت غبرګون سره سره د بالکان

د غرونو او دانوب څخه تېر شول، او ترکان يې په ۱۸۲۹ ز کال د اندراينوبل معاهدي لاسليک ته اړ ويستل، چې پرېنسټ يې يونانيا مستقل شوه او ترکانو د ارمنستان يوه برخه او د دانوب قريي د روسيې په اختيار کې ورکړلې.

## د امريکا د متحد هېوادونه

په ۱۸۱٦ ز کال جيمز مونرو د امريکا پنځم رئيس جمهور د جمهوريت غوښتونکو لخوا جمهوري رياست ته ورسيده، نوموړي رئيس جمهور په وخت کې هېواد په اقتصادي لحاظ مناسب وضعيت درلوده، او د فلوريدا په اخستلو او د نويو هيوادونو را منځته کول يې د ايندياانا، بي سي سي پي، ايلي نويز، الباما په نومونو خپله پراختيا نوره هم زياته کړه، او په دې توګه د ۲۲ هيوادو درلودونکي شو، په دې وخت کې د شمال چې پرجمعيته او فعال وه، او جنوب چې زيات شتمن او غلامان يې درلرل، ترمنځ اختلافاتو شتون درلوده، د غلامۍ د له منځه وړلو زمزمې شروع شوي، په ۱۸۲۳ ز کال اروپايي هيوادونو په امريکا کې د مداخلې او په هسپانيه کې شورشونو د ټکولو لپاره مذاکرات ترسره کړل امريکايي هيوادونو اعلان وکړ چې هېڅ ډول مداخله ورته د منلو وړنه وه.

## د هسپانيه د مستعمراتو شورش

د مکزيک، پيرو او چيلي لومړي بغاوت څخه مخنيوی وشو مګر په بونوس ايرس کې شورشونه شروع شوه، او د ار جنټاين جمهوريت يې منځ ته راوړه، شورشونو په چټکۍ سره ټول ځايونه ونيول، جنرال بولپوار هسپانويانو ته ماتي ورکړه، بوګوتا يې ونيوله، او په ۱۸۱۹ ز کال يې د کولمبيا جمهوريت رامنځ ته کړ. مکزيک او چيلي هم ځانونه د هسپانيا د تسلط څخه خلاص کړل. اووم فردیناند چې له لاسه تللو مستعمراتو د بيرته نيولو لپاره کافي پيسې او سربازان په اختيار کې نه درلودل د مقدس اتحاد څخه يې مرسته وغوښته مګر د مقدس اتحاد غړو هيوادونو، د امريکا د متحده ايالاتو او انګليس د مخالفت له ويري کوم اقدام ونه کړ، او د دغه انقلاب له تيريدو وروسته هسپانيه په ۱۸۲۰ ز کال د فردیناند د نقشو مانع شول. په

مکزیک کې جنرال اتیوربید واک تر لاسه کړ او ځان ته یې د امپراطور لقب ورکړ، نوموړی له دې مقام څخه لرې شو، چون د یو انقلاب په ترڅ کې ونیول شو نو تیرباران یې کړ له دې تاریخ وروسته مکزیک په ۱۸۲۴ ز کال د یو جمهوریت په توګه پاتې شو.

مرکزي امریکا چې تر دې وخته پورې یې سوله او په امن کې وخت تیرولو په دغه وخت کې په دغه سیمو کې د ازادۍ غوښتونکو نهضتونه منځ ته راغلل په کولمبیا کې سیمون بولیوار اخرۍ ډله هسپانوي قواوي بیرون کړې، پیرو کې هسپانویانو زیات مقاومت وکړ، د ارجنټاین د قواو د حملې خطر یې دفع کړ، ولې وروسته دغو هیوادو د داخلي هرج او مرج کې ګرفتار شو، بالاخره بولیوار دغو ستونزو ته د پای ټکی کېښود، او د هسپانویانو لاس یې لنډ کړ، د خپل قلمرو څخه یې دوه جمهوریتونه د پیرو او بولیوي په نومونو منځ ته راوړل. هسپانیا نوي تاسیس شوي جمهوریتونه په رسمیت وپیژندل او د هر ډول مداخلې څخه یې لاس واخیست بولیوار قصد درلود چې ټول امریکائي جمهوریتونه د یوې واحدې لوأ تر چتر لاندې راولي، مګر دغه مقصد ته ونه رسیده، څرنګه چې نوموړی له حد څخه زیات مستبد وه، او هر هېواد د خپلو ځانګړو قوانینو په ساتنه ټینګار کاوه، کولومبي یې په درې جمهوریتونو (ونزویلا، کولمبیا او اکوادرو) وویشل شو. او په ۱۸۳۰ ز کال کې بولیوار مړ شو. نوموړی د امریکا او هسپانیا د ازادۍ اصلي عامل وه نوموړي نوي دولتونه د مبارزو په حال کې پرېښودل او له دې پرته یې د هر دولت په داخل کې مختلفې ډلې او احزاب چې یو د بل مدعي او مزاحم ول پرېښودل، له دې وروسته یوازې کېوبا، پور تریکو او نیمه ختیځ سن ووینګ د هسپانیه په لاس کې پاتې شو. د دې جزیرې په نیمه غربي کې هاېټ جوړ شو او په ۱۸۲۵ ز کال یې د نوموړي هېواد ازادي هم په رسمیت و پېژندله.

**برازیل**

د پرتګال پادشاه شپږم ژان په ۱۸۲۱ ز کال اروپا ته لاړ، او د برازیل حکومت یې خپل زوی دم پدرو ته وسپاره. لیکن برازیلیانو چې نور یې نه غوښتل د پرتګال تابع وي، نوموړی یې مجبور کړ چې د برازیل د امپراطور نوم په ځان کېږدي، او اساسي قانون دغه هېواد ته ورکړي.

بالاخره د بې فایدي تهدیدونو وروسته په ۱۸۲۵ ز کال پرتگال د برازیل خپلواکي په رسمیت وپیژندله. د برازیل دولت د اروگوئد د نیولو لپاره د ارجنټاین سره جگړې وکړلې او په ۱۸۲۸ ز کال اروگوئد د یو خپلواک جمهوریت په توگه منځ ته راغی.

## اسیا

په عربستان کې د مصریانو او وهابیانو ترمنځ جگړه له کومې نتیجې پرته دوام درلوده، ایران او ترکستان هم په بې نظمۍ او ضعف کې وخت تیرولو روسانو ټوله سابیریا ونیوله، د برنگ له تنگي څخه تېر شول او په الاسکا کې ځای پر ځای شوه.

په هند کې انگلیسانو نوي ځایونه (کنگان اسام) ونیول راجیوت یې د خپلې حمایې لاندې راوست، دغه اقدامات چې د زیاتو مالي لگښتونو او اوږدو جگړو لرونکې وه د څو تنه نایب السلطنه گانو په دوره کې تر سره شوه. په هند، چین او برماني د هندوستان د انگلیسانو سره جگړه وکړ څرنگه چې ماتي یې وخوړله خپل لویدیځ ښارونه یې انگلیس ته پرېښودل او هېواد یې په پادشاهۍ وویشه. هالنډیانو په مالیزیا کې خپلې مستعمرې وساتلي او په جاوه کې یې خونړۍ شورش دفع کړ او په لویدیځو ناحیو کې یې د استقرار نوې زمینې برابرې کړې.

چین او جاپان د پخوا په څیر خپلې دروازې د بهرنیانو پرمخ تړلې وې، او په ارامۍ کې یې ژوند کاوه او چینایانو په ترکستان کې د شورشیانو بغاوت له څو کلونو جگړې وروسته مات کړ.

## افریقا

څو اروپایي سیاحت کوونکي د افریقا داخلي ناحیو ته لاړل، څو فرانسویان د صحرا سېمو له دگینه څخه تر مراکش پورې ورسیدل او انگلیسانو د چاد ناحیه ولیدله.

د الجزیره حکومت د (بې ها) په لاس کې وه او د دغه خلکو به د لاره وهنې لپاره علامات برابرول، په همدې بنسټ اروپایانو څو ځلې په دغه حدودو کې مداخلې وکړې، په ۱۸۲۹ ز کال د الجزیري او فرانسي ترمنځ اختلافات رامنځ ته شوه فرانسویانو د الجزیرې بندر ونیوه.

په مصر كې محمد علي پادشاه د صنعت په پراختيا، زراعت، تعليم او تربيه او فوځ په پراختيا لګيا وه، او د زمه وارۍ په شكل يې په دغه هېواد حكومت كاوه، نوموړي د عربستان او وهابيانو سره وجنګېده، د نوې برخه يې ونيوله خپل زوی ابراهيم پادشاه يې عثمانيانو ته د مرستي لپاره وليږه چې د يونانيانو سره په جګړه كې ښكېل وه .

د افريقا په داخل كې تور پوستي يو د بل سره په جګړه مشغول وه او اروپايانو يوازې څو بندرونه په دغه حدودو كې په اختيار كې درلودل. په ۱۸۲۰ ز كال د متحده امريكا هيوادونو يوه ډله غلامان ازاد كړل او د ګينه سواحلو ته يې انتقال كړل، او د هغوی لپاره يې د ليبريا جمهوري كړ. كومې سيمې چې د هالنډيانو په واک كې وه په دغه وخت كې د انګلسيانو په لاس كې ولويدې، او د دوی ګڼ شمير مهاجرين او كډه كونكي دلته راوړل، ميشتو كافرانو ناتال ته ماتې وركړه (بو ئريان) د هالنډ مهاجرين چې د انګليس د تسلط څخه ناراضه وه شمال لوري ته كډه وكړه.

## اقيانوسيه

د انګليسانو د استعمار كار په استراليا كې كوم خاص پرمختګ نه كاوه، علت يې داوه چې د آب او هوا د نامساعدوالي، او طبعي منابع له اړخه د ډېرو ستونزو سره مخامخ وه، اروپايانو د اقيانوسيه جزاير وپيژندل مګر د هغې د پيژندلو فكر يې نه درلوده، يوازي مذهبي هيئتونو دغو جزايرو ته تګ راتګ درلوده .[1]

## څلورم: د ۱۸۳۰ ز كال د ازادۍ غوښتونكو د نهضت انقلاب

په اروپا كې د ۱۸۳۰ ز كال انقلابونه په حقيقت كې د ازادۍ غوښتونكو د كاميابيو څپې وې چې د هغې وړانګې مو د ۱۸۲۰ ز كال د ليزمي د پيل په شورشونو او اغتشاشونو كې مطالعه كړل، دغه انقلاب د پاريس څخه وروسته شروع شوه، د فرانسې د سياسي ټولنې په منځ كې تضاد (د بوربنيانو د كورنۍ د پادشاهۍ بيرته راتګ چې له حد څخه زيات د استبداد بوی

[1]. مليحه حسن، لكچر نوټ تاريخ سياسي جهان، پوهنتون كابل.

متحوله بولنه له بل لوري د لسم شارل په وخت کې چې له ورځخه تللو له یوه طرفه او د هېواد ناست وه) له حده زیات ډېر والی وکړ.
۱۸۲۴ زکال څخه د ۱۸ لوی پرځای
د شارل استبدادي روش او ترلي سیاسي نظام د عامه ملاتړ پایې سستي کړې، د ۱۸۳۰ ز کال د انقلاب بله جنبه د فرانسې د ملت اعتراض وه. د وین کنګرې په ترتیباتو او د اروپا په کنسرت کې فرانسې په لار نه ورکولو باندې د فرانسې خلکو د انقلاب په جامو کې د خپل هېواد په اړه د بین المللي تحمیلاتو او د بهرنیو د مداخلې په اساس د پادشاهۍ د بیا راتګ په غرض اعتراض وکړ، او په اروپا کې د فرانسې انقلاب د لومړۍ درجه د ښکاره کولو غوښتونکي وه، چې د ناپیلون افسانې بیا د انقلاب روح ته د جسم ورکولو او ازادۍ د مدافع په عنوان د روحي بیانونکي و. د بوربنیانو سلطنت د دوو علتونو له امله د فرانسې ملت ته د منلو وړنه وه، یو دا چې ۱۸ لوی او لسم شارل د هماغه پیل څخه ازادۍ غوښتونکو او د دوی روحیې ته بې اعتنا وه. او دغه خلک په خپله د دوی د ریښو د بیخه ویستلو تصمیم درلوده. تر دې چې تالیران هم ویلي وه، چې بوربنیانو د درې رنګه بیرغ (لوی انقلاب بیرغ) په لیري کولو او د سپین بیرغ په غوره کولو کې چې د فیوډالیزم د ژوندي کولو نښه وه، په حقیقت کې د خپل ځان لپاره د ګور کنده وویسته، بل دا چې د فرانسې خلکو د بوربنیانو بیا ځای پر ځای کول د بهرنیانو د توطیو نتیجه ګڼله.

وروسته له دې چې د لسم شارل او په پارلمان کې د کښې لاسو مخالفو مشرانو ترمنځ اړیکې خرابې شوې، شارل د خپل قانوني حق له مخې پارلمان منحل اعلان کړ، او د هغې د نوې کولو امر یې ورکړ. په ۱۸۳۰ زکال د فرانسې د مجلس ټاکل د ازادۍ غوښتونکو په ګټه تمام شو، مګر لسم شارل فرمان ورکړ او نوی مجلس یې منحل کړ، د مطبوعاتو ازادي یې سلب کړه، د ټاکنو قانون یې داسې تغیر کړ چې یوازې بانګ لرونکي، د صنایعو خاوندان او تجارانو د رایې ورکولو حق درلوده په دې توګه د رایې ورکولو حق د پخوانیو اشرافو په لاسو کې متمرکز شو. او نویو انتخاباتو په کولو یې اقدام وکړ.

چې دغه کار د فرانسې د خلکو غصه را وپاروله او شورشونه پیل شوه، چې درې ورځې یې دوام وکړ (۲۷ ــ ۲۹) جون پورې شورشیانو سنګرونه ونیول او جګړه یې پیل کړه، څرنګه چې

سربازانو د دولت د حمايت څخه لاس واخيست نو لسم شارل مجبوراً د فرانسې څخه ووت او بريالي شورشيان په دوه ډلو وويشل شوه، مگر پادشاهي غوښتونکي په ازادۍ غوښتونکو بريالي شوه، او (دوک د ورلځير) يې د لوی فيلپ په نوم پادشاه کړ ( نوموړي د فيلپ دولځير له کورنۍ څخه وه او د څوارلسم لوی ورور وه) د لوی فيلپ حکومت چې په مشروطه ژوئن مشهور شوی، ډېر ازادۍ غوښتونکي وه، په دغه حکومت کې نجباؤو خپل قدرت د بورژوازانو په گټه له لاسه ورکړ په اساسي قانون کې تغيراتو صورت ونيوه، ( رايي ورکونکو شمير زيات شو) د اورلځير طرفدارانو په مجلس کې اکثريت درلوده او په دوه ډلو عاطفه کار او ترقي غوښتونکو وويشل شو.

مخالف استازي د جمهوري غوښتونکو څخه عبارت وه چې د (بوربنيانو اولاد ته د سلطنت د حق د ورکولو طرفدار وه، سياسي وضعيت يې د اطمنان وړنه وه، څرنگه چې د لسم شارل دوېم ځلي د يو توطيه په لټه کې وه، خو بي نتيجې پاتې شو د بل لوري نور جمهوري غوښتونکي په ۱۸۳۲ ز کال په پارس او په ۱۸۳۴ ز کال په ليون کې په شورشونو لاس پورې کړ. درېمه ډله مخالفين د بناپارتيانو څخه عبارت وه د لوی ناپيلون د لومړي ناپيلون وراره وه او د هالند پخوانې پادشاه د زوی په مشرۍ چې دوباره د قدرت د نيولو په لټه کې وه خو مقصد ته ونه رسيده.

د درې رنگه بيرغ په دوران کې انقلابيون بريالی شوه اساسي قانون په هماغه شکل چې په ۱۸۱۴ ز کال وه برقرار شو تر ټولو مهم تغير هغه د سياسي طريقي تغير وه په دې معنی چې نور استبداد نه کاريده ښکاره وه چې د هېواد پادشاه نور قانوني تضمينات او معاهدات لغوه کړي. بل دا چې د اعيانو په مجلس کې غړيتوب نور ميراثي نه وه، او د لاندې مجلس د استازو د ټاکلو حق تر ډېره حده د انتخاب کوونکو په غاړه وه، چې د انتخاب کوونکو شمير په ۱۸۳۰ ز کال ۱۰۰ زرو ته رسيده اوس تقريبا ۲۰۰ زرو ته رسيده.

لوی فليپ سره له دې چې يو با عزمه پادشاه وه، د بورژوازانو څخه حسابيده د تاج او تخت د ساتلو لپاره يې توقعات ترسره کېدل نوموړې په عين حال کې مطلقه سلطنتي حکومتونو سره مناسب د معقول او سوله غوښتونکي اړيکي درلودې او د انگليس سره نزدې اړيکو په لټه کې

وه، فقط د دواړو دولتونو لیدلوری یو ډول نه وه همدا د دوی ترمنځ د اختلافاتو باعث گرځیدلي وه. کومه جگړه چې د لوی فیلپ په وخت کې وشوه هغه د فتح الجزیره وه.

## انگلیس

په انگلستان کې څلورم گیوم د خپل ورور څلورم ژان ځای ناستی شو. کوم انقلاب چې په ۱۸۳۰ ز کال په فرانسه کې رامنځ ته شو په ټوله اروپا کې یې غبرگون درلوده، د انگلیس ملت هم د اصلاحاتو غوښتونکې شو، د توري حزب د چارو زمامداري د ویگ حزب په اختیار کې ورکړلې. دغه حزب د زیات شمیر راېې ورکونکو، د رایه ورکولو حق له کلیو تر لویو او وړو ښارو کې چې څو استازي به یې مجلس ته لیږل، او په هغه کې رایه خرڅول رواج ول، واخیستې. (په داسې حال کې د ښار لویو برخو په مجلس کې استازې نه درلوده) د تور پوستکو خرڅول او اخستل یې منع کړل او ټولیز قوانین یې وضع کړل. په دغه وخت کې د انگلیس بهرنی سیاست د لار پالرستون له خوا اداره کېده. نوموړي د ختیځ په چارو کې مداخله کوله او د فرانسې سره یې اړیکي خړې پړې وې.

څلورم گیوم په ۱۸۳۷ ز کال له منځه لاړ، تاج او تخت یې وریري ویکتوریا ته ورسیده د (۱۸۳۷ـ ۱۸۷۷) ز کال نوموړی د ٦۳ کالو څخه زیات د لوی متحده بریتانی او ایر لیند ملکه وه او د برتانیه په ټول تاریخ کې تر ټولو طولانې د پادشاهۍ دوره یې تیره کړې، د نوموړې د حکومت دوره د لویې برتانیې د غوړیدلو سره ملگرې وه. ویکتوریایي دوره د انگلستان د صنعتي انقلاب د اوج په دوره کې وه چې په اقتصادي، اجتماعي او صنعتي برخه کې یې لوی تغیرات رامنځ ته کړل. د نوموړې په دوره کې قدرت بیا د توریانو لاس ته ولویده، نوموړې معتدل روش د لاس لاندې ونیوه، د نوموړې په دوران کې حقوق کم شو، مگر په دې ونه توانیده چې د ایرلینډ مسله حل کړي چې یوه ډله ایرلنډیانو د ازادۍ غوښتونکي اقدامات ترسره کړ او د بحري تگ راتگ فرمان لغوه شو.

**المان**

د۱۸۳۰ ز کال انقلاب د ازادۍ غوښتونکو د لازیاتو امیدونو سبب شو، چې په همدې مناسبت شورشونه شروع شو، مګر مترنیخ په خپلو سختو تصمیمونو سره د شورشیانو پښې ونړولې. د پروس او درې الماني هېوادونو (زول، وراین) ترمنځ په ۱۸۳۴ ز کال ګمرکي اتحادیې ایجاد، د تجارتي مالونو د بدلولو د پراختیا سره ډېره مرسته وکړه. په ۱۸۳۴ ز کال څلورم فردیک ګیوم چې نوی شهزاده وه، قدرت ته ورسېده. نوموړي د اصلاحاتو لپاره خلکو ته ډېرې زیاتې وعدې ورکړې، مګر د هغې ډېره لږه برخه یې عملي کړه چې همدغه کار د بورژوازانو د ناراضۍ سبب شو. په اطریش کې تر دې وخته پورې قدرت د مترنیخ په لاس کې وه او د نویو افکارو سره یې په ډېر شدت سره مخالفت کاوه، نوموړي د۱۸۳۰ز کال څخه وروسته د پروس او روسیې سره نژدې اړیکې ټینګې کړې. د اطریش امپراطور د فرانسوا له مړینې وروسته د هغه زوی فرانیاند د پلار ځای ونیوه نوموړی یو بې کفایته شخص وه، او د هېواد په اداره یې لږ اغېز نه هم درلوده.

حکومت د هماغه پخواني وضعیت سره یعنې پرته د فعالیت څخه د استبداد، تجزیې او نفاق په حالت کې باقي پاتې شو. یوازنۍ وسیله چې د قدرت د اجرا لپاره ورسره وه. هغه د پولیسو د دستګاه په واسطه د حالاتو کنترول وه. د دې حالت په شتون سره د خلکو نارضایتي په مختلفو ډولونو ښکاره کېدله. تحصیل یافته کړیو او په آزادۍ مینو وګړو د ناتوانۍ په اساس کوم عمل نشو ترسره کولی.

په دې وخت کې په ډېرو بانډو کې بانډه چیانو په انقلاب لاس پورې کړ. چکیان او کرواتیان د اسلاویانو د وحدت یعنې پان اسلاویزم طرفدار وه. په هنګري کې یې د اطریش د مطلقه قدرت برعکس قدرت نه درلود اما آزادۍ غوښتونکو داسې وضعې څخه هېڅ ګټه نه شوه پورته کولی. ځکه اشرافي طبقې چې هر څه غوښتل، کولی یې شول. بانډه چیان یې په تشویش کې ساتل او مجاریانو د اسلاویانو یا رومانیانو سره چې په هنګري کې میشته وه، بده رویه کوله. په دې برسېره کومو اختلافاتو چې د هنګري او وین د سیمو ترمنځ شتون درلود. د اصلاحاتو د عملي کولو پرمخ مانع وګرځېدل.

## روسیه

د دې سره سره د ۱۸۳۰ کال انقلاب په روسیه کې کوم اغېز نـه درلـوده، مگـر پـه پولنډ کې وضع بل ډول وه. دغه هېواد چې نشو کولی د تزاري روسېې تسلط پـه ځـان ومنـي. د ۱۸۳۰ ز کال په وروستیو کې یې په شورش لاس پورې کړ. لهستان د لومړي نـېکلای سره خپلې ټولې اړیکې ختمې کړلې. کوم لښکر چې نېکلای د شورشیانو د مقاومت د ماتولو لپاره لېږلي وه. په دوه جگړو کې بریالي او په څو نورو کې د ماتې سره مخامخ شو. د دې حالت سره سره یې ځان ورشو ته ورساوه، او ښار یې محاصره کړ او د خپلـواکۍ هـر قسـم آثـار یـې خـتم کـړل. د پولنډ اساسي قـانون یـې ملغـی او اوردو یـې منحـل کـړه. ادارات پـه روسـیې ادارو بـدل شـوه. ډېرې پولنډیان سیبرې ته تبعید شول، او ډېر یې بهر ته وتښتېدل. په روسیه کـې لـومړي نـیکلای د خپل ملي او اسـتبدادي سیاسـت پـیروي کولـه هغـه د آرتـودوکس کلیسـا او نظامیـان د خپلې خاصې پاملرنې لاندې ونیول. د دې سره سره ادارات د فساد او تباهۍ په ولکه کې ښکېل وه. د چارو د ادارې قدرت یې نه درلوده، او د دې سره سره چې کلیوالو تـل د ظلـم او تـیري لـه کبلـه فریاد کاوه. د خپلو کارونو د اصلاح لپاره یې هېڅ کوم گام اوچت نه کړ، او هر قسم مخالفت او مقاومت یې په شدت سره مات کړ. د دې حالت سره سره اوضاع د ترقـۍ او پرمختـگ پـه حـال کې وه. په دې وخت کې د روشنفکرانو یوه ډله رامنځته شوه چې د پولیسو د تعقیب سره سره د لویدیځ په لور متوجه وه. یو تعداد د هغوی څخه چـې د بـې انصـافۍ او بـې عـدالتۍ تجمل ی.ې نه درلوده د هېـواد څخـه بهـر لاړل، او یـوې ډلـې د پـان اسـلاویزم د فرضـیو پـه تـدوین او انتشار هغه فرضیې چې اسلاو د ټولو ملتونو اتحاد یې د روس د قیادت لانـدې غوښـته، شروع وکړه.

## اسپانیا او پرتگال

په اسپانیا کې د ۱۸۳۰ کال د انقلاب په پایله کې شورش رامنځته شو. چې د قهریه قوې په واسطه خاموش شو، اوم فردیناند چې د یو وخت لپاره په دې هېواد کې حـاکم وه او د سـلطنت دوره یې د دې هېواد د سلطنت له ناوړه دورو څخه شمېرل کېږي، په کال ۱۸۳۳ ز کال مړ شو،

او د هغه لور چې درې کاله عمر یې درلود، د خپلې مور (ماري ګریسین) د قیومت لاندې د هغه ځای ونیوه. ولې دون کارلوس د فردیناند ورور چې د تاج او تخت مدعي وه، په همدې دلیل یې په اسپانیا کې جګړه پیل کړه، چې د اوه کلنې جګړې په نامه یادېږي، دون کارلوس د مرتجعانو رهبري په غاړه درلوده او ماري ګریسین په ناچارۍ سره د آزادۍ غوښتونکو څخه چې په دوه ډلو میانه رو او افراطیانو وېشل شوې وه، مرسته وغوښته، د هغې طرفدارانو په کاستیل او جنوبي اسپانیا کې اکثریت درلود او د کارلوس طرفدارانو په شمال او ختیځ کې شتون درلود، په نتیجه کې د دواړو خواوو ترمنځ جګړه ونښته د اسپانیا حکومت د دې وضعې د پای ته رسولو لپاره څلور ګونی اتحاد رامنځته کړ، چې فرانسه، انګلیس او پرتګال یې غړیتوب درلود. د دې سره سره هم حکومت ضعیف پاتې شو، ولې په ۱۸۳۹ ز کال کې کالیستیانو ماته وخوړه، له لږ څنډ وروسته ترقي غوښتونکو په مخالفت لاس پورې کړ او ماري ګریسین هسپانیه پرېښوده، او پر ځای یې اسپارترو په استبدادي، نظامي حکومت کولو لاس پورې کړ. ولې د انقلاب اور ټوله هسپانیه ونیوله اسپارترو په ۱۸۴۳ ز کال له هسپانیه څخه ووت. ماري ګریسین هسپانیا ته راغله او د هسپانیا د حکومت چارې یې د هسپانیا تکړه سیاست پوه ناروانز ته وسپارلې په ۱۸۳۲ ز کال یې دم پدرو د پرتګال څخه برازیل ته راغی او د خپل ورور دم میګل په وړاندې یې په جګړه پیل وکړ، دم میګل ماته وخوړه او تبعید شو. دویمه د ناماریا د دم پدرو لور د پرتګال د ملکې په حیث وټاکل شوه. د دې تاریخ ته وروسته پرتګال د آفتونو او آشوبونو په محراق کې را ګیر شو، چې د ګوندونو په واسطه رامنځته شوې وه، چې په دې لړۍ کې کله آزادي غوښتونکي او کله محافظه کاران بریالي کېدل.

## ایټالیا

د ۱۸۳۰ ز کال انقلاب په ایټالیا هم اغېزه وکړه. په شروع کې شورشونه په مودن او پارم کې او کلیسایي هېوادونو کې بریالي شو، اما د اطرېش د اوردو څخه یې ماته وخوړه. ایټالیایي آزادۍ غوښتونکي د دې سره سره چې بده رویه ورسره کېدله، د تلاش څخه لاس په سر نشوه او ملي نهضت د دوه متفاوتو عقایدو سره رامنځته شو. منځلارو د امید سترګې پاپ یا د

ساردني پادشاه لورې ته کېدلې. د هغه انقلاب چې جمهوري غوښتونکي مازني يې رهبري په غاړه درلودله، دويمه ډله يې په راتلونکو کلونو کې د ايټاليا په مختلفو سيمو کې د نافرمانۍ د بروز سبب وګرځېدله، ولې د خپلو اقداماتو څخه يې کومه نتيجه وانخيسته، حکومت په توسکان سيسيل او ساردني کې، چې شارل آلبريي پادشاه وه، اصلاحي اقدامات ترسره کړي وه، چې د رضايت وړ وه. کليسايي ممالکو په ناوړه حالت کې شتون درلود، اما نوي پاپ چې په ۱۸۴۸ کال يې د سلطنت واګی په لاس کې واخيستلې د خپلو آزادۍ طلبه روشونو په واسطه يې شهرت او محبوبيت ترلاسه کړ او د هغه نفوذ او قدرت په ساردني او توسکان کې هم خپور شو.

## پې با (نيدرلند)

په فرانسه يې د انقلاب بريالیتوب د دې سبب شو، چې بلژيکيان په شورش لاس پورې کړي، او د خپلواکۍ غوښتونکي شي. د بهرنيو هېوادونو لاس وهنې او د لندن کانفرانس د بلژيک او هالند جدايي تصويب کړه، بلژيکيانو د خپل نوي اساسي قانون چې د ازادۍ غوښتنې بڼه يې لرله، په اجرا پيل وکړ، او لومړي ليوپلد چې د ساکس بورګ د کورنۍ پورې يې اړه لرله، د خپل پادشاه په توګه وګماره. هالنديانو د دې عمل د منلو څخه انکار وکړ، او پر بلژيک يې حمله وکړه او په نتيجه کې هغه لښکر چې د فرانسې څخه د بلژيک د مرستې لپاره راغلې وه، هالنديان يې دې ته اړ کړل، چې بلژيک پرېږدي. د سولې خبرې اترې د دواړو هېوادونو ترمنځ د يو وخت لپاره روانې وې، او په کال ۱۸۴۲ ز کال موافقې ته ورسېدل، د دې نه وروسته دواړو هېوادونو د سولې په فضاکې ژوند ترسره کاوه، په هالند کې دويم ګيوم چې په ۱۸۴۰ کال پادشاهۍ ته رسېدلې وه، اصلاحات يې رامنځته کړل، په بلژيک کې شديد شورشونه د ليبرال او کاتوليک حزبونو ترمنځ چې په نوبت يې قدرت ترلاسه کاوه، روان وه، اما په هر حال د اوردو تربيې، تعليم، سوداګري او صنعت د ترقۍ په حال کې وه.

## د بالکان هېوادونه

د یونان هېواد چې د ترکانو د اطاعت د قید څخه خپلواکه شوې وه. د یو وخت لپاره په ګډوډۍ کې را ګیر وه، او د یونان د حاکم له قتل څخه وروسته اروپایي هېوادونو د کورنۍ جګړې د مخنیوي لپاره ددې هېواد په کورنیو چارو کې په لاس وهنه پېل وکړ، او تون دوباوير ۱۸۳۲ ز کال سلطنت ته ورسېده، اما د نظر وړ آرامي منځ ته رانغله، بهرني هېوادونه د یو بل د مدعي او مزاحم په توګه په خپلو کې په شخړه مصروف وه، په ۱۸۴۴ ز کال د یونان اساسي قانون په تصویب ورسېده، د صربستان خپلواکي د صربانو په لاس واخېستل شوه، او هغوی ترکانو ته د بلګراد د تصرف په اړه خراج ورکاوه، مولداوي او والاشي هم خپلواکه شوه، او دغه دوه ښارونه د روس د طرفدارانو لخوا اداره کېدل (دغه احکام چې د روس طرفداران وه د عثماني امپراطورۍ مخالف وه) چې دغې وضعې په خپله د بحران لپاره لاره هواروله.[1]

## سوسیالیزم او چارتیزم

د ۱۸۳۰ ز کال څخه وروسته سوسیالېزم په ډېر سرعت سره د کارګرو طبقو ترمنځ خپور شو. په فرانسه کې سوسیالېزم د جمهوري غوښتونکو انقلابي مسلک سره یو ځای شو. بیا ځلې د خلکو فکرونه د لوی انقلاب او د ۱۸۹۳ کال دیموکراتیک جمهوري په لور جلب شوه، د روبسپير ليکنې چې د رسالو په بڼه چاپ شوې وې د پاريس په کارګر مشېتو سيمو کې لاس په لاس ګرځېدلي او هغه مهال روبسپير د فرانسې يو له لويو اتلانو څخه شمېرل کېده، مثلاً لويي پلان چې يو سوسياليست وه، په ۱۸۳۹ ز کال يې خپل کتاب د کار تر عنوان لاندې خپور کړ او د هغې په څنګ کې يې د اجتماعي کار د کود(قانون) د ايجاد توصيه وکړه. او هم يې د فرانسې د انقلاب په اړه تاريخ نشر کړ او په هغه کې يې د دېموکراتيکو خيالاتو څخه يادونه کړې وه، چې د ۱۸۹۳ ز کال د ملي کنوانسيون الهام سرچېنه وګرځېده، په انګلستان کې چې د نورو تاريخي سوابقو څښتن وه د سوسياليستي عقايدو په تناسب د هغه نهضت سره يو ځای شو، چې مرام يې د پارلماني اصلاحاتو توسعه او انکشاف وه د دې نهضت د

---

[1]. مليحه حسن، لکچر نوټ تاريخ سياسی جهان، پوهنتون کابل.

پرمختنګ عامل د کارګرو دطبقې يوځای کېدل وه چې ځان يې چارتيستيان يا منشورين نومول، د تسميې وجه يې دا وه چې نوموړي جماعت په ۱۸۳۸ ز کال يو سند ترتيب کړ، چې د ملت د منشور په نامه يې شهرت درلود. د انګلستان د چارتيستيانو او د فرانسې د سوسيالستانو ترمنځ اړيکې بر قرارې وې، مثلاً ايرلندي برونبرا او برايان د فرانسوی ژبې څخه په انګليسي ژبه يو کتاب وژباړه د (بابف طوطي) په اړه چې خپله نوموړی کتاب د فرانسې د سوسيالېزم مترقي ماخذونو څخه حسابېده، چارتېزم د فرانسې د سوسيالېزم په قياس د فرانسې په هغه وخت کې په مراتبو د يو نهضت حيثيت درلود فقط يوه محدوده ډله چارتستيان د خپلو عقايدو پر بنا په ښکاره توګه سوسيالستان وه، اما ټول د سرمايه دارۍ د سيستم سره مخالف وه، او ټول په دې عقيده وه چې لومړنی اقدام به يې پارلمان ته د کارګرو طبقې د استازو لېږل وي، د ۱۸۳۸ ز کال منشور د شپږو فقرو څخه جوړ شوی وو.

۱- د مجلس د استازو ټاکنې به هر کال صورت نيسي.

۲- ټول بالغ خلک (نارينه او ښځينه) به په ټاکنو کې ګډون کوي.

۳- ټاکنې به سري او پټې وي.

۴- هېواد به په مساوي ټاکنيزو حوزو ويشل کېږي.

۵- تملک يې د عامه مجلس د شروطو څخه ونه شمېره.

۶- په بدل کې د دې غوښتونکي وه چې ټاکل شويو استازو ته دې مقرري ورکړل شي، ترڅو هغه کسان چې لږه سرمايه هم لري وکولی شي دولت د استازو په قطار کې خدمت وکړي، په ۱۸۳۹ ز کال يې د لندن په ښار کې يو کنوانسيون داير کړ، چې د کارګرو اتحاديو د لېږل شويو غړو د يو ډله وګړو د اجتماع او د ټول هېواد د راديکال انجمنونو څخه رامنځته شوې وه. د دې انګليسي کنوانسيون يوې ډلې غړو دا ډول مجموعي په واقعيت کې د ملت د استازو په توګه پېژندلي او د مسلحې قهريه قوي تثبيت يې جايز باله. په داسې حال کې چې يو شمېر يې دې ته مايل وه، چې په پارلمان معنوي فشار وارد کړي، د منشور د منلو په اړه يې د يو مليون وګړو د لاسليک سره عامه مجلس ته خبرتيا ورکړه افراطيان او انقلابيان يا چارتيستيان چې په (قهريه قوي) معتقد وه په ډېر سرعت سره د انقلاب سبب وګرځېدل چې په ډېره مؤثره توګه د

دولتي چارواکو لخوا خاموش شو. په ۱۸۴۲ ز کال بیا ځلي د منشور منلو پیشنهاد وشو، دا ځلې په دقیق براورد سره چې ۳۳۱۷۷۰۲ کسانو لخوا لاسلیک شوې وه وړاندیز شو. د دې لپاره چې د انګلستان د وګړو شمېر ۱۹ ملیونو ته رسېده د دغه منشور لاسلیک کوونکي چې هر څومره وه خو د انګلستان د نارینه افرادو نیم برابر یې جوړاوه، اما عامه مجلس نوموړی منشور په ۲۸۷ مخالفو او ۴۹ موافقو رایو رد کړ، د مجلس استازي د دې څخه ډارېدل، هسې نه چې د سیاسي دیموکراسۍ حقوق په خطر کې واچول شي او ټول مستقیم اقتصادي بنیادونه به متزلزل کړي او د هغوی ډار بې دلیله هم نه وه، د سوداګرانو او د کسب او صنعت څښتنانو د سختۍ یا فشار له امله د چارتست نهضت ورو، ورو د نابودۍ په لور ولاړ او د ډار او مخالفتونو په سبب چې د دې نهضت د پلویانو په منځ کې را پیدا شوې وه د چارتېزم مسلک ضعیف شو. اما د دې نهضت رامنځته کېدل بې ګټې هم نه وه په دې خاطر چې د وګړو د کوښښ او د کارګرانو د طبیعي غوښتونو ښکاره کولو څخه پرته داسې قوانینو تصویبول د امکان څخه لرې وه، دې اقداماتو په خپل وار سره هغه فشار چې د کارګرانو په غاړه وه تر یوه حده کم کړ او هغوی یې په خپل اقتصادي سیستم تر یوه حده باوري کړل.[1]

## پینځم) په فرانسه کې د ۱۸۴۸ ز کال انقلاب

د خلکو د غوښتنو منل د لوی فیلیپ او د هغه د وزیرانو لخوا چې د ټاکنو د قانون د اصلاح لپاره شوي وي. د دې سبب شوه چې د اصلاحاتو د طرفدارانو په شمېر کې ډېروالی راشي. په نتیجه کې یو لوی نهضت رامنځته شو. د دې په ځای چې د هر ۳۰ زرو کسانو څخه یوکس د رایې حق ولري باید یو زیات شمېر خلک د رایې حق پیدا کړي، رادیکالیانو د جمهوریت د اتحاد او د ټولو خلکو د ګډون په اړه په ټاکنو کې دلچسپي درلوده اما لیبرالیانو غوښتل چې مشروطه سلطنت باقي پاتې شي ولې د رایې حق باید عمومي شي.

د فبرورۍ د ۲۲ څخه ۲۴ پورې انقلاب په فرانسه کې پیل شو، دولت د پاځون د خاموشولو لپاره د ملي سپاهیانو څخه مرسته وغوښته اما د هغه لښکر هېڅ یو فرد هم د دولت د فرمان

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. تاریخ جهان نو، جلد دوم، مخ ۸۲۱ - ۸۲۳.

قانون اصلاح کړي، اما جمهوري غوښتونکو ځخه اطاعت ونکړ، پادشاه ناچاره شو، چې د ټاکنو قانون اصلاح کړي، اما جمهوري غوښتونکو
اخلال ګرانو خپلو تظاهراتو ته ادامه ورکړه، تر دې وروسته چې خو انقلابي کسان ووژل شول او
د ښار خلکو چې ځانونه یې مسلح کړي وه، د دې حالت په لیدو سره ډلې ډلې شول او لږ ځه
وخت لا تېر نه وه چې یوه لویه مظاهره په لاره واچول شو. په نتیجه کې د فبرورۍ په ۲۴ لوی
فیلیپ استعفا ورکړه او انګلستان ته وتښتېده مشروطه اصلاح غوښتونکي په دې آرمان وه چې
د لوی فیلیپ زوی به د هغه په ځای پادشاه کړي، اما جمهوري غوښتونکو چې اوس مهال یې
ځانونه مسلح کړي وه د نماینده ګانو مجلس ته ولاړل او جمهوریت یې اعلان کړ، فرانسې د
موسساتو د مجلس د تشکیل لپاره موقتي حکومت چې ۱۰ کسان یې غړي وه جوړ کړ، د دغو
۱۰ کسانو ځخه یې ۷ کسان مطلق جمهوري غوښتونکي وه چې مشهور کس یې (لامارتین) یو
شاعر وه ۳ نور جمهوري غوښتونکي سوسیالست کسان وه چې مشهور یې (لوی بلان) وه،
لوی بلان، موقت حکومت دې ته وهڅاوه چې ژرتر ژره خپله ټولنیزه اقتصادي برنامه په عمل
کې پیاده کړي، اما د هغه ځایه ځخه چې سوسیالست جمهوري غوښتونکي په مؤقت حکومت
کې لږ کسان وه، د لوی بلان عقاید عملي نشو هغه د ترقیاتو د یوې وزارت خانې غوښتونکي
وه، چې د یو سلسله ټولنیزو ورکشاپونو د تدارک او تهیې مسؤلیت ولري او یا د صنعتي
اشتراکي بنګاګانو او هغه دولت چې د ده د لیکنو ځخه منعکس شوي وي په غاړه ولري اما هغه
ځه چې د دې په بدل کې تاسیس شوه، د کار یو کمیسیون وه، هغه هم د محدود واکونو سره
په نهایت کې د هغوی وړاندیزونه عملي نشو او هېڅ کوم اقدام هغوی ته ونه سپارل شو، د دې
لپاره چې داسې ډار موجود وه چې نوموړي دستګاګانې به خصوصي دستګاګانو سره رقابت
وکړي او په پایله کې به د هېواد اقتصادي دستګاه د اخلال باعث وګرځي، د موسساتو د
مجلس نمایندګان چې د اپرېل په میاشت کې د عمومي ټاکنو په نتیجه کې وټاکل شو، او د
مۍ په میاشت کې یې مجلس ترتیب کړ، په سرعت سره موقت حکومت منحل کړ، او د اجرایه
قوې موقتي هئیت یې د ځان لخوا د هغوی په ځای مقرر کړ. د اجرایه قوې نوي موقتي هئیت
چې د مۍ په میاشت کې مؤسساتو د مجلس لخوا ټاکل شوې وه د سوسیالست جمهوري
غوښتونکو کسانو ځخه هېڅ یو هم پکې شامل نه وه. دغه هیئت د ۵ کسانو ځخه جوړ شوی

وه چې (مارتین) یې په راس کې واقع وه، د دې وروسته لوی بلان او نورو سوسیالستانو نشو کولی چې کوم امتیاز تر لاسه کړي چې د دې نېټې پورې هغوی ته ورکړل شوي وه.[۱]

## ۱. د۱۸۸۴ د جون د میاشتې پاڅون

وروسته تر هغه چې د انقلاب څخه ۳ میاشتې تېرې شوې، د جګړې دریځ د دواړه مخالفو ګوندونو ترمنځ څرګند شو، په یوه لوري کې د مؤسساتو د مجلس منتخب نماینده ګان واقع وه او په بل لوري کې هغه ملي ورکشاپونه واقع وه چې د کارګرو طبقه یې یو ځای کړې وه. د ورکشاپونو کسانو با افرادو سره ورو ورو داسې احساس پیدا شو چې سوسیالست جمهوریت باید په تدریجي ډول د هېواد د سیاسي صحنې څخه بهر کړي، او شاید نور داسې فرصت په لاس رانشي، د مۍ په ۱۵ ورځ یې د مؤسساتو په مجلس حمله وکړه د هغه مجلس نماینده ګان یې د مجلس څخه بیرون کړل او مجلس یې منحل کړ او د خپل ځان لخوا یې یو نوی موقت حکومت اعلان کړ. د هغه انقلاب په تعقیب چې د فبرورۍ په میاشت کې رامنځته شو او صرف سیاسي بڼه یې لرله ټولنیز انقلاب هم باید رامنځته شي اما ملي سپاهیان چې یو نوع غیر نظامي جګړه جویان وه، د شورشیانو پر ضد یې پاڅون وکړ د مؤسسانو د مجلس نماینده ګان یې آزاد کړل. مجلس د دې په مقصد چې سوسیالېزم د ریشو څخه له منځه یوسي د دې په فکر کې شو چې ملي ورکشاپونه ختم کړي هغه کسانو چې په ملي ورکشاپونو کې یې خپل نومونه ثبت کړي وه، هغوی ته داسې وړاندیز وشو چې یا باید په اوردو کې خدمت وکړي او یا دې خپلو ولایتي ورکشاپونو ته منتقل شي او د دې څخه پرته به هغوی د پاریس څخه بهر کړل شي. د پاریس د کارګرانو طبقو ټولو افرادو داسې تصمیم ونیوه، چې باید مقاومت وکړي دولت نظامي حکومت اعلان کړ د اجرایه قوې غیرنظامي هیت استعفا ورکړه او ټول اختیارات یې جنرال کاویناک او د اوردو دایمي قواوو ته وسپارل. د دې قضیې په تعقیب سره د جون خونباره ورځې راورسېدې د جون د میاشتې د ۲۴ څخه تر۲٦ پورې په ۱۸۴۸ ز کال کې د ۳ ورځو په جریان کې په پاریس کې طبقاتي وحشتناکه جګړې پېښې شولې. د ملي ورکشاپونو تقریباً ۲۰

[۱]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. تاریخ جهان نو، جلد دوم، مخ ۸۳۰ - ۸۳۳.

زره کسانو وسلې تر لاسه کړې لکه څرنګه چې دولت د دې شورش په جریان کې د ورکشاپونو کارګرانو ته معاش نه ورکاوه، بې له شکه د هغوی شمېر وخت په وخت زیاتېده او په زرګونو نور کسان هم د کارګرو له سیمو څخه ورسره یو ځای شول. وروسته د ۳ ورځو جګړو څخه څرګنده وه چې ۱۰ زره کسان وژل شوي او ژوبل شوي وه او په زرګونو کسان دستګیر شوي وه، د موسسانو مجلس په هېڅ صورت سره دې ته آماده نه وه چې مجرمین عفوه کړي او امر یې وکړ چې ژر تر ژره ټول اسیران مهاجر نشینه سیمو ته تبعید کړي او په همدې توګه په انګلستان کې د چارتستیانو لخوا ځینې حرکات ترسره شوه اما کومې پایلې ته ونه رسېدل. مخکې د دې څخه چې لاس په شورش پورې کړي د انقلابي کمېټو ټول افراد یې ونېول، په هر صورت اکثریت چارتستیان له دې پېښې څخه مایوسه شول او په لسګونو زره کسان د دې جملې څخه د امریکا متحده ایالاتو ته مهاجر شول.[1]

## ۲) د درېیم لویې ناپلیون رامنځته کېدل

په فرانسه کې وروسته د جون د خونباره ورځو څخه د موسسانو د مجلس د جمهوریت د اساسي قانون په لیکلو شروع وکړه. وروسته د هغو اغتشاشاتو څخه چې په هغه وخت کې رامنځته شوي وه، داسې پرېکړه وشوه چې یو کس باید د جمهور رئیس په توګه وټاکي چې د اجرایه قوې صلاحیت ورسره وي او نوموړي شخص ته باید ډېر اختیارات ورکړل شي او داسې پرېکړه هم وشوه چې پرته له ځنډ څخه، مخکې له دې چې اساسي قانون په تصویب ورسېږي د جمهور رییس په ټاکلو باید اقدام وشي. او څلور کسان د نوموړي مقام لپاره نومول شوي وه، مارتین، کاویناک، لدر او رولن اما بالاخره لوی ناپلیون بناپارت چې د ۱۸۴۹ کال څخه تر۱۸۵۲ کال پورې د فرانسې جمهور رئیس وه او د ۱۸۵۲ کال څخه تر ۱۸۷۰ کال پورې ځان د (درېیم ناپلیون) په نامه د دې هېواد د امپراطور په حیث ځان اعلان کړ. د رایو د یو لوی اکثریت سره د دسامبر په میاشت کې په کال ۱۸۴۸ ز کال وټاکل شو او په ډېر سرعت سره یې د هېواد اوضاع په خپل لاس کې ونیوه، د می میاشت په ۱۸۴۹ کال کې د نماینده ګانو د موسسانو

---

[1]. رابرت روزول پالمر، مترجم، ابو القاسم طاهري. تاریخ جهان نو، جلد دوم، مخ ۸۳۳ - ۸۳۶.

مجلس منحل اعلان شو. د اساسي قانون مطابق مقننه مجلس د هغه ځای ناستی شو دا دی
په دویم جمهوري کې هم د عمومي ټاکنو نتیجه هماغه وه، ۵۰۰ تنه نماینده ګان او یا دوه
ثلثه د هغوی څخه د سلطنت غوښتونکي وه اما په دوه برخو وېشل شوي وه، چې د خپلو
عقایدو په بنسټ یې یو ځای کېدل ناممکن وه، یوه برخه یې لژستي منتستیان یا(مشروعین)
وه چې سلطنت یې د لسم شارل د اولاد حق ګاڼه او بله برخه یې اورلتانستیان وه چې د لوی
فیلیپ اولادې سره یې دلچسپي وه او درېیمه ډله نماینده ګان جمهوري غوښتونکي وه، د
جمهوري غوښتونکو څخه هم تقریباً دوه ثلثه یا تقریباً ۱۸۰ کسان سوسیالست وه او پاتې کم
شمېر نماینده ګان چې ۷۰ تنو ته رسېدل مطلق جمهوري غوښتونکي وه چې عمده ستونزې
یې د حکومت جوړښت وه، جمهور رئیس او مجلس سره اتفاق وکړ ترڅو سوسیالېزم، چې اوس
مهال جمهوري غوښتونکي ورڅخه مخکې دي، له منځه یوسي. د هغه بې پایله شورش له
کبله چې په کال ۱۸۴۹ ز کال رامنځته شو، جمهوري غوښتونکو ته ښه فرصت په لاس ورغی
مقننه مجلس چې د جمهور رئیس طرفداري ورسره وه. ویې کولی شول چې ۳۳ سوسیالست
نماینده ګان د مجلس څخه بهر کړي او د عمومي مجموعو جوړول یې هم ممنوع اعلان کړل،
او جریدې یې د سخت نظارت لاندې ونیولې. په ۱۸۵۰ ز کال حتی کار تر هغه ځایه ورسېده
چې د ټاکنو عمومي قانون یې لغوه کړ، یعنې د یو ثلث په حدودو کې رایه ورکونکي چې د
درېیمې طبقې فقیر او سوسیالست کسان وه د رایې ورکولو له حق څخه محروم شوه، په هغه
وخت کې د مهمو موضوعاتو څخه یوه دا وه چې ټولې مدرسې یې د هېواد فرهنګي دستګاه
په پوړونو کې د کاتولیک روحانیونو د نظارت لاندې ونیولې، د فرانسې د جمهوریت په مهال
کې چې په واقعي توګه د جمهوریت ضد حکومت وه پاخون یې وکړ، د پاپ د حفاظت لپاره یې
خپلې نظامي قواوې روم ته ولېږلې، او دغه نظامیان ۲۰ کاله په نوموړي ښار کې پاتې شوه
ناپلیون وروسته تر دې چې خپل موقف یې مستحکم کړ، د اوردو اداره یې هم په خپل لاس
کې واخیسته، او د دسامبر په دویمه نېټه په ۱۸۵۱ ز کال یې د استرلیز جګړې په ورځ یې
کودتا وکړه په هغه وخت کې چې د مجلس نماینده ګانو غوښتل جلسه وکړي، سربازانو په
هغوی حمله وکړه، او هغوی یې تیت او یا هم ګرفتار کړل، هېواد پرته له جګړې څخه تسلیم

نشو د پاریس په ښار کې ۱۵۰ کسان مقتول وپېژندل شو او د فرانسې په ټوله خاوره کې تقریباً ۱۰۰ زره کسان ونیول شول ناپلیون د ملت رایو ته په مراجعې سره خپلو اقداماتو ته قانوني بڼه ورکړه او د دسامبر په ۲۰ نېټه لوی ناپلیون ځان د امپراطورۍ په توګه اعلان کړ او د درېیم ناپلیون لقب یې د ځان لپاره غوره کړ په دې ترتیب د فرانسې دویمه جمهوري دوره د یو لنډ عمر سره پای ته ورسېده اما دغه رژیم په هر حال ضعیف وه او د هغه تبلیغ له کبله چې د رادیکالېزم لپاره یې درلود له منځه ولاړ. لیبرالېزم او مشروطه غوښتنې هم له منځه ولاړې بوژوا سلطنت غوښتونکي د جمهوري غوښتونکو یا بناپارتستیانو او ښار نشینه کارګرانو او د باندو دهقانانو څخه ډېرې د مشروطه لیبرالېزم غوښتونکي وه، اما سلطنت غوښتونکو ترمنځ نفاق تر اخیره حده څرګند ؤ، دا ده د معرکې د میدان څخه بهر شړل شوي وه او د ۱۸۱۰ کال څخه دا لومړنی ځل وه چې د فرانسې د پارلمان څخه محروم شوه او د امورو اداره د دیکتاتور حکومت په لاس کې وه او په مراتبو ډېره دسیسه کاري کورنۍ تشوالي او د هغه څه څخه چې لومړي ناپلیون یې فکر هم نشوکولی، شتون درلوده.[۱]

## ۳) د ۱۸۴۸ ز کال انقلاب پایلې

د ۱۸۴۸ ز کال انقلابونه نه یوازې په فرانسه کې بلکې په ټوله اروپا کې له ماتې سره مخامخ شول. د ۱۸۴۸ ز کال په لومړیو کې شورش په میلان او سیسیل سیمو کې شروع شو او د فرانسې د انقلاب خبرونو په رسېدو سره دې شورشونو ټوله ایټالیا ونیوله د ساردني پادشاه شارل آلبر چې د وطن پاله وګړو څخه مرستې ته غوښتل شوې وه په پوره اطمینان سره یې د اطرېش دولت ته د جګړې اعلان ورکړ او د خپلو متحدینو په مرسته یې (توسکان) دواړه سیمې سیسیل او پاپ لمباردي او ونسي یې ونیول پارم او مودن هم خپله همکاري ومنله اما شارل آلبر د دې څخه وروسته کوم اقدام ونه کړ. او د اطرېش لښکر یې د مرستو په لاس ته راوړنه کې آزاد پرېښود، په اطرېش بیا ځلې حمله وکړه او د کوستوزا په جګړه کې بریالي شو او د لمباردي او ونسي سیمې یې د ایټالیا څخه بېرته ونیولې د وینو ډک شورشونه د سیسیل په

---

[۱]. رابرت روزل پالمر، تاریخ جهان نو، جلد دوم، مخ ۸۳۶- ۸۴۰.

دواړو خواوو کې رامنځته شول، په توسکان او روم کې جمهوري حکومتونه اعلان شول، پاپ کائت ته وتښتیده. او د ۱۸۴۹ ز کال په پسرلي کې هرج ومرج ټولې سیمې ونیولې، د اطریش سره جګړه چې د سولې له کبله متوقف شوې وه، د سره شروع شوه او په دې جګړه کې ساردني په یوازې توګه د جګړې میدان ته ودانګل شارل آلبر د نووا په سیمه کې ماته وخوړه او د خپل زوی دویم ویکتور امانویل په ګټه یې د سلطنت څخه استعفا ورکړه، او ویکتور امانویل د اطریش سره په سوله راضي شوه او د دې څخه وروسته د ارتجاع او محافظه کارو سلاطینو عکس العمل په ټوله سیمه کې بریالي شو، د سیسیل پادشاه ناپل چې لاس یې په شورش پورې کړې وه اطاعت ته اړ ویستل شو د توسکان پارم او مودن امیرانو د اطریش په مرستې بیاځلي خپل موقف ترلاسه کړ، د فرانسې اسپانیي او ناپل د قواوو څو کنډکونو د روم جمهوري ختمه کړه او پاپ یې د خلافت په مسند وګماره. په المان کې په ټوله سیمه کې شورشونه شروع شول او د اطریش سره تړلو هېوادونو ته یې هم سرایت وکړ. د پروس پادشاه چې د شک او تردد ښکار شوي وه، وي نشوه کړای چې کومې فیصلې ته ورسېږي، یعنې نه یې د شورشیانو د ماتولو لپاره اقدام وکړ او نه یې آزادي غوښتونکي عمل ترسره کړ، ولې د نوي اساسي قانون په اجراء راضي شو او وروسته یې په هغه کې ارجاعي تغیرات راوستل په اطریش کې مترنیخ د کار څخه ګوښه شو او د خپل ځان د ساتنې لپاره یې وین د لندن په قصد ترک کړ د هغه ماته د ۴۰ کلن کشمکش د پای لپاره یو څرګند عمل وه، د دې لپاره چې یو متحد او خود کفا نظام رامنځته شي، شورشیان په وین بوهم او هنګري کې بریالي شول نوي اساسي قانون د امپراطور لخوا خپور شو او په وین کې یې مجلس په کار شروع وکړه، چې اسلاویانو په کې اکثریت درلود چکیانو او مجاریانو مخکې له مخکې د سوسیالیزم پښېمانه شوی وه او د خپلواکۍ په لټه کې وه، د اطریش امپراطور چې د شورش په ولکه کې راګیر وه، د وین څخه بیرون ولاړ او وروسته یې تاج او تخت خپل وراره فراسو اژوزوف ته وسپاره، په ۱۸۱۸-۱۸۴۹ ز کلونو کې د اطریش د امپراطورۍ په دننه کې د بوهم او مجارستان ملي ګرایانو لاس په پاڅون پورې کړ او د خپلواکۍ غوښتونکي شول په ۱۸۴۸ ز کال په پراګ کې د پان اسلاوېزم یوه کنګره جوړه شوه ترڅو د چکیانو او اسلاویانو او د اسلاو نورو ملتونو لپاره په اطریش کې

خپلواک حکومت رامنځته کړي نوموړي حرکت په سرعت سره مات شو. او د ۱۸۴۸ ز کال په دوبي کې اسلاویان د کنترول لاندې ونیول شوه اما د مجاریانو پاځون چې اوږدې ریښې یې لرلې، تر ۱۸۴۹ کال پورې روان وه. د اطریش دولت یوازې د ایټالیا د شورشونو څخه وروسته په دې وتوانېده چې د ۱۸۴۹ ز کال د دوبي په موسم کې د روسیې په مرسته د مجاریانو پاځون مات کړي، د مجارستان د خلکو د پاځون د ماتې څخه وروسته د اطریش انقلاب پای ته ورسېده او د هابسبورګ سیمې د لاس وهنې څخه پاکې پاتې شوې د مترنیخ په تللو سره د هغه ځای ناستي د هغه سیاست تعقیب کړ، او په کې ټول رامنځته شوي اصلاحات او ورکړل شوي امتیازات له منځه ولاړل، او نوموړو انقلابونو د سلطنت پای سستي کړلې د اطریش تسلط او د پښې ځای په المان او ایټالیا کې څرګند وه، چې په وین کې د انقلاب د رامنځته کېدو او د اطریش د حکومت د له منځه تللو په صورت کې به په المان کې هم انقلاب رامنځته کېږي انقلاب د المان په مختلفو سیمو کې رامنځته شو او په ټولو سیمو کې انقلاب د لیبرالي اساسي قانون د تصویب او ملي وحدت غوښتونکي وه په دې وخت کې یو مجلس د المان د ټولو ایالتونو د نماینده ګانو لخوا په فرانګفورت کې جوړ شو د نوموړي المان غړي وټاکل شو او پارلمان د ۱۸۴۸ د مې په میاشت کې افتتاح شو د المان د دولتونو د نماینده ګانو شمېر په دغه پارلمان کې سره برابر نه وه. د بلې خوا هغو احزابو چې په دغه پارلمان کې ګډون درلود منظم جوړښت یې نه درلود، مباحثې او مذاکرې پیچیده او سختې وې، په هرحال نوموړي پارلمان په کار شروع وکړه، کوم اساسي قانون یې چې رامنځته کړ ډېری یې د اطریش ضد جنبه درلوده، او د بلې خوا د امپراطورۍ عنوان یې د پروس پادشاه څلورم فریدریک ګیوم ته ورکړ، اما فریدریک نه غوښتل چې خپل موقف د ازادۍ غوښتنې مدیون وګڼي. بناً د موقف د منلو څخه یې انکار وکړ ډېرو نماینده ګانو مجلس پرېښود یوازې جمهوري غوښتونکي په مجلس کې باقي پاتې شول. او وروسته هغوی هم د فرانګفورت څخه ووتل او په دې فکر یې کار شروع کړ چې په بله سیمه کې مجلس جوړ کړي، اما بالاخره ټول تیت او پرک شول په څو نورو دولتونو کې هم شورشونه رامنځته شول اما د پروس دولت هغه مات کړل نوموړي انقلابونه په انګلستان، روسیه، ایټالیا او ځینې نورو اروپایي هېوادونو کې هم رامنځته شوه اما هغه

موضوع چې د درېيمې طبقې په اړه ګېوره واقع شوه تر يوه حده څرګنده وه او هغه دا چې د المان په ايالتونو کې او د اطرېش په امپراطورۍ کې دهاقين خپلواک شوې وه، او اربابيت قيودات له منځته ولاړل او د انقلاب د ماتې څخه وروسته د دهاقينو د تهديد حق نه درلود دغه امر تر ټولو ښه پايله وه، چې د نوموړو حرکتونو څخه تر لاسه شوه. د دې څخه وروسته د مرکزي اروپا اکثريت دهاقين آزاد شول او هر ځای يې چې غوښته تللی شول، او نوي شغلونه يې د ځان لپاره غوره کولې شوه، ترڅو د کار بازار ته دننه شي، په اقتصاد کې چې تهداب يې پيسې جوړوي، ګډون وکړي. ډېر دهاقين د امريکا په لور ولاړل، اما کله چې دهاقين آزاد شوه نور يې مشروطه غوښتنې حرکت ته او بورژوازي عقايدو ته پاملرنه ونه کړه او په حقيقت کې د دهقانانو ازادي د انقلاب ضد لښکرو د تقويې سبب وګرځېده. شايد د ۱۸۴۸ ز کال انقلاب ناکامي د عامه حکومتونو د تکامل او رشد مانع په اروپايي هېوادونو کې ګرځېدلې وي او په قوي احتمال سره د انقلاب ناکامۍ اروپا ته له فنا څخه نجات ورکړ که چېرې انقلابونو بريا تر لاسه کړې وای داسې فکر کېږي چې د ديموکراسي تاسيساتو به ډېر رشد کړی وی، اما ددې ترڅنګ داسې احتمال هم شتون درلود چې د روسيې په څېر هېوادونه د جګړې په اور وسوزي او دغه کار طبقاتي اختلافاتو ته او سياسي کشمکشونو ته لاره هواروله او هغه يې په يوه اروپايي بين المللي جګړې بدلوله.[1]

## شپږم) د آزادۍ غوښتنې د پرمختګ په دوره کې بين المللي سياست

د بين المللي سياست له نظره اروپا د ۱۸۳۰ څخه تر ۱۸۴۸ ز کال پورې په يو دوه قطبي بين المللي نظام کې واقع وه، آزادۍ غوښتونکي د محافظه کارانو په مقابل کې واقع وه، فرانسې او بريتانيا کوښښ کاوه چې آزادۍ غوښتونکي اصول پرمخ بوزي. روسيې، پروس او اطرېش هم کوښښ کاوه چې اشرافي حکومت وساتي هر يو د طرفينو څخه غوښتل چې ټولنيز حوادث چې د فرانسې د انقلاب په واسطه رامنځته شوي وه د خپلو غوښتنو په لور هدايت کړي، لېبراليانو داسې نيت درلود چې په محافظه کارو سلطنتونو کې انقلاب نتيجې ته ورسوي، او

[1] رابرت روزل پالمر، تاريخ جهان نو، جلد دوم، مخ ۸۷۲-۸۶۶.

محافظه کارانو غوښتل چې د انقلاب ضد پروسه تکامل ته ورسوي، او مشروع سلطنتونه تثبیت کړي. په هر صورت په دغه دوره کې هېڅ یو لوری په پوره توګه بریالي نه وه، هر یوه لوري د دې څخه ډېر قدرت درلود چې مقابل لوری له منځه یوسي. د دوه قطبي نظام سره سره هم دومره بریالي نه وه، د مادي ګټې مربوط مسائل په نږدې ختیځ او نورو سیمو کې د ایدیالوژیکي اختلافاتو اهمیت راکماوه. انګلستان د فرانسې د مقابلې لپاره روسیې سره یوځای شو، فرانسه ځینې وختونه له اطریش سره ملګري وه د انګلیس او فرانسې د ملګرتیا هم نېمګړې او تل نه وه، دغو دوو دولتونو په غالب ګمان کوشش کاوه چې په اسپانیه کې د سیاسي رقابتونو څخه په خپله ګټه کار واخلي، له هغه ځایه چې په ډېری ځایونو کې یو د بل د ګټو پر ضد یې عمل کاوه او په خپل منځي اړیکو کې یې ستونزه درلوده، انګلستان د منځنی ختیځ د مسئلې په اړه زیاته پاملرنه کوله، په ۱۸۳۲ ز کال د علي پاشا او عثماني امپراطورۍ ترمنځ جګړه رامنځته شوه، علي پاشا له روسیې څخه مرسته وغوښته او په مقابل کې یې تعهد وکړ، که هر کله روسیه د یو بل دولت سره په جګړه کې واقع کېږي، د دردانیل تنګی چې سوق الجیشي اهمیت یې درلود، د روسیې د دښمن پرمخ به یې تړي، انګلستان وکولی شوه چې د دغسې معاهدې د انعقاد څخه مخنیوی وکړي او په دې ترتیب د عثماني امپراطوري ارضي تمامیت او د تور سمندر د تنګي ګانو طرحې چې د دې دولت د اصلي اهدافو څخه وه، وساتي. په دې دوران کې تر یوه حده د جګړې څخه مخنیوی کېده، د ناپلیون د حکومت د دوران له جګړو بدترینه کړنو وروسته د ۳۰ کلنې جګړې څخه شمېرل کېده. محافظه کار او آزادۍ غوښتونکي دې نتیجې ته رسېدلي وه چې کورنۍ بریاوې په نورو هېوادونو کې کولی شي پرته د نظامي جګړې څخه لاس ته راشي، د دې لپاره کله چې د آزادۍ غوښتنې نیالګي کېنول شي، خپله به خپل رشد کوي.

محافظه کاران هم چې په عین وخت د انقلاب سره په مقابله کې ښکیل وه د او د انقلاب د مخنیوي لپاره یې په اسانۍ سره په جګړه لاس نه پوري کاوه، هغوی پوهېدل چې ټولنیزه ګډوډۍ د اوږدې جګړې او انقلاب تر ټولو مهم عوامل دي، بناءً هغوی داسې وېره درلوده چې د کورنیو اصلاحاتو یا انقلابي جریانونو چې په ۱۸۳۰ او ۱۸۴۰ ز کلونو کې د اهمو موضوعاتو

شخه وه، صحیح پرېکړې وکړي د ۱۸۴۸ انقلابونو سره د بین المللي سیاست ثبات چې د ناپلیون د جګړو په تعقیب رامنځته شوی وو، له منځه ولاړ او د بلې خوا نوموړي انقلابونه په غالب ګمان د ماتې سره مخامخ شوه، اما د هغه ځایه چې د ۱۸۴۸ ز کال د انقلابونو په پوره توګه مات نه وه، قضیه یو طرفه او بین المللي نظام یوې خاصې مرحلې ته رسېږي، دغه ماته شوې ایدیالوژي د موقتي نفوذ په بې اعتباره کولو کې په بین المللي سیاست کې د دوه قطبي بین المللي نظام د له منځه وړلو سبب شو، همېشه داسې فکر کېده، چې د انقلاب په رامنځته کېدو سره یو طرف بریالي کېږي، انقلاب یا د انقلاب ضد د ۱۸۴۸ ز کال په انقلابونو کې که هر لوري کُلي بریا په لاس راوړي وي، شاید د اروپایي نظام لپاره د یو خاص لحاظه بهتره نتیجه وي، په دې معنې چې ایډیالوژیکي همغږۍ رامنځته کېدل او د ایډیالوژیکي جګړو خطر، د فرانسې د انقلاب د دوران او د ناپلیون د حکومت دوران د جګړو شخه له منځه تللو، اما هېڅ لوري بریالی نه شو، لوی بناپارت په دننه او بهر د انقلاب او انقلابي ایډیالوژۍ شخه پیروي ونه کړه. په مقابله توګه په اطرېش او پروس کې محافظه کاره رهبري داسې تر تهدید لاندې وه چې جرئت یې نه درلود، چې د آزادۍ غوښتنې د پاکولو لپاره په یو انقلابي ضد سراسري جګړې لاس پورې کړي اما پادشاهانو د خپلو موقفونو د ساتنې لپاره د هرې وسیلې شخه کار اخیسته، حتی که هغوی د ایډیالوژیکو اصولو د نقض سبب شوی وه او د جګړې یې پېښنه کړې وي، په همدې اساس د ۱۸۴۸ ز کال وروسته دوره د واقع ګرانه سیاست د دورې په نامه یادېږي. هغه دوره چې که د استفاده کوونکي لپاره خشونت مطلوب وي په هېڅ صورت یې ورشخه بې اعتنایي نه درلودله. په همدې ترتیب د آزادۍ غوښتنې ترقی او د نویو ټولنیزو لښکرو قدرت ترلاسه کول چې د هغه صنعتي انقلاب ترټولو مهم عامل وه، د ۱۸۱۵ ز کال د وین د کنګرې وروسته بین المللي نظام یې په کامله توګه ختم کړ، او اروپایي بین المللي ټولنه یې یوې نوې مرحلې ته ورننه کړه، چې په هغه کې ملي والی (ملي کېدلو) د پاملرنې وړ رول درلود.

# اووم فصل

## د آزادۍ رشد او د یو ملت د نظریې پربنسټ د لویو هېوادونو رامنځته کېدل

د دولسو کالو په اوږدو کې د ۱۸۵۹ ز کال څخه تر ۱۸۷۱ ز کاله پورې په آلمان کې لویه امپراطوري رامنځ ته شوه. ایتالیا متحده شوه، د هنګري او اتریش دوګونې پادشاهي منځ ته راغله او په روسیه کې هم تغیرات رامنځ ته شول د امریکا متحده ایالاتو مرکزي حکومت په کورنیو جګړو کې بری وموند. د کاناډا (دومینیون ) منځ ته راغی، او د جاپان امپراطوري هم دیو لړ تغیراتو شاهده وه نوموړیو تغیراتو چې د اورګاډي پټلۍ، د بخار ماشین کشف او تلګراف د ایجاد په اساس صورت ونیوه د خلکو ترمنځ د اصولو په تبادله کې له پخوا څخه ډیرې آسانتیاوې رامنځ ته کړې خو د سیاسي نقطه نظره دغه پیښې د قومیت او ملیت په اساس د هیوادونو رامنځ ته کېدلو بیانوونکی ؤو.

د ۱۸۶۰ز کال څخه مخکې یواځې دوه مهم هیوادونه (انګستان او فرانسه) ؤو، چې د یو ملت نظریې له مخې رامنځ ته شوي ؤو، سره له دې چې هسپانیه د نقشې له مخې متحده ښکاریده، اما د داخلي تنوع له مخې یې یوې بلې طبقه بندۍ ته اړتیا درلوده. سویدن، ډنمارک، ناروې، پرتګال، سویس او هالنډ ټول د یو ملت څخه جوړ شوي ؤو خو د غه ملتونه کوچني ؤو همدارنګه پراخه او بې تناسبه لوېې امپراطورۍ چې د مختلفو ملتونو ترکېب وه، هم شتون درلود. چې د هغې په رأس کې د پادشاهانو، منظم اداري تشګیلاتو لکه د رومانف،

هابسبورک او عثماني خلافت په څیر وجود درلود. چې په ډول ډول ملتونو یې حکومت کاوه. په شمالي او جنوبي امریکا کې چې په هماغه وختونو کې کوم تحولات رامنځ ته شو، د هغې څخه پرته نور د نړۍ په اکثرو ځایونو کې د کوچنیو ایالاتو یوځای والی، او همدارنګه کومې امپراتورۍ چې موجودې وې ټولې د یو ملت څخه جوړې شوې نه وې.

د ۱۸۶۰ ز کال څخه تر ۱۸۷۰ ز کال پورې د یو هېواد د جوړېدلو اساس واحد ملت وګڼل شو. د وخت په تیریدو سره په ورستیو پیړیو کې هم لوی ملتونه لکه د چېن، هندوستان، پاکستان او اندونیزیا هم د واحد ملت په اساس د هېواد جوړېدلو له نظریي څخه پیروی وکړه. کوچني او متوسط ملتونه دې نقطې ته ډېر متوجه شول او ځانونه یې جداګانه ملتونه ګڼل، او د ځان لپاره یې د حاکمیت او خپلواکۍ د حق غوښتنه کوله، چې په نتیجه کې په ورستیو پیړیو کې د چکوسلواکیا، د ترکیې جمهوریت، د ایرلینډ جمهوریت، یونان،صربستان، بلغارستان، رومانیې او اسرائیل هیوادنه په ۱۹ ز پیړۍ کې د عثماني امپراطوارۍ د تجزیې له مخې ایجاد شول. همدارنګه د عربو ملي جنبش هم پیل شو. د واحد ملت له مخې د هیوادنو د ایجاد نظریې د وړو هیوادونو پرځای لوی هیوادونه منځ ته راوړل.

د ملت د نظریې له مخې د هېواد د ایجاد توصیف هغه وخت کولې شو چې د سیاسي حاکمیت مطلق حق د هماغه هېواد د اتباعو په ارادې باندې متکي وي، او باید یو ملت ولري نه یوازې لویه بشري ټولنه. اصولاً ملت باید ګډ تمایلات او ارادې ولري، او په ټولنه کې داسې ژوند ولري چې په شکل د اشکالو په ټولنیز ژوند کې یو د بل سره شریک دي، او همدا راز دولت خپل دولت وګڼي. همدارنګه ملت د افرادو څخه ترکیب شوی دی، چې د یوې ژبې درلودونکي وي او د دې ترڅنګ ممکن د خپل ګډ نژاد په اړه د یوې عقیدی درلودونکې وي، او یا خپل ځانونه د یو ګډ تاریخ، ګډ راتلونګي، ګډ دیانت، مشترک جغرافیوي موقیعت او یا ځانونه د ګډ بهرني خطر سره مخامخ کیدونکي وګڼي.

په ۱۹ز پیړۍ کې حکومتونه دې ته متوجه شول چې د هېواد د چارو اداره په مؤثر ډول برابره نه ده او یا د پوره دولتي اختیاراتو پراخول د رعیت له پشتیبانۍ او ملاتړ څخه پرته ممکن ندي، او یا هم مؤثر واقع کېدای نشي. هغه هیوادونو چې یووالی یې د ملت په نظریې استوار

ژوو، د دوه مشخصو مرحلو درلودونکې ؤ. د ځمکې له لحاظه، د کوچنيو حکومتونو اتحاد ؤ، چې وجود يې درلود. بل د معنوي او روحي لحاظه د خلکو او دولت ترمنځ د نوي پيوندونو ايجاد، او په سياسي مشارکت کې د نويو خلکو ګډون، او دولت لخوا نويو افرادو تـه د چـارو پـرمخ بيولـو لپاره د چانس ورکړه وه، چې د ليبرالی تأسيساتو پذريعه ترسره شوی وو. نوموړی کار په جاپان او تزاری روسيه کې هم ژر واقع شو. او همـدارازد مشروطه حکومتـونـو د پرمختـک باعـث هـم وګرځيد. سره له دې چې د واقعي قدرت له مخـی د نـوی رامـنځ تـه شـويو سـياسي تأسيساتو ترمنځ فاحش اختلاف موجود ؤو. په نوې ايتاليا، نوي المان، نوي ښکاره شـوي جاپـان او ګانـاډا کې پارلمانونه رامنځ ته شول. همدا ډول په روسيه کې هم پارلمان ايجاد شو. په ۱۸۴۸ز کال په اروپا کې انقلابيان چې د کومو مقاصدو په لاسته راوړلو کې کامياب شـوي نـه ؤ پـه اوس وخـت کې د حکومت مقاماتو لخوا يې تحقق وموند.

مګر نوموړو لاسته راوړنو د يو لړ جګړو څخه وروسته د عمل جامـه واغوسـته، لکـه د ۱۸۴۸ز کال انقلابونو دا په اثبات ورسوله چې (د آلمـان او ايټاليـا ايجـاد، د اطـريش مـاتې، او د تـزاري روسيې مؤقتي بې اغيزې کول، او د المان هغه ايالتونو له منځه وړل يا تـهديدول، چې ايټاليا ته د خپلواکۍ ورکولو ته حاضر نه ؤو) د مهمو ضروريـاتو څخـه کـڼل کېـده. د ځلويښـت کـالو پـه اوږدو کې د ۱۸۱۴ ز کال څخه وروسته هيڅ ډول شخړه د اروپايې حکومتونو تـرمنځ تـرسره نـه شوې. تر څو په ۱۸۵۴ ز کال د کريمه جګړه، په ۱۸۵۹ ز کال کې د ايټاليا جګړه، ۱۸۶۴ ز کال کې د ډنمارک جګړه په ۱۸۶۶ز کال د اطريش، پروس جګړه او په ۱۸۷۰ کې د فرانسې او پروس جګړه، د ۱۸۷۱م کال څخه وروسته د ۴۳ کالو په موده هيڅ ډول جګړه د اروپايې هيوادونو تـر منځ صورت ونه نيوه.[1]

## لومړی) د کريمه جګړه (۱۸۵۴-۱۸۵۶ز کال)

د کريمه جګړه د اروپايې ملی نهضتونو د کاميابی باعـث وګرځيـد، او د دې جګـړې بارزترينـه نتيجه دا وه چې روسيې او اطريش هيوادونه يې ډېر ضعيف کړل، د بلی خوا د څو پيړيو څخه

[1]. رابرت روزل پالمر، تاريخ جهان نو، جلد دوم، مخ۸۹۹ - ۹۰۲.

وروسته دغه لومړۍ جګړه وه چې انګلستان او فرانسه یې یو د بل سره متحد کړل او د دې اصلي علت د دواړو هیوادونو نړیوالې ګټې وې چې ختیځې مدیترانې کې د روسېې لخوا د خطر سره مخ وې، او په دې ډول دغه جګړه کې مسلمانان د کاتولیک ډلې سره په متحد ډول د ارتودکس په مخالف قطب کې ظاهر شول.

د تزاری روسېې فشار په عثمانی امپراطورۍ باندې د تاریخې سابقې درلودونکې وو، چې هر وخت د روسېې او عثمانی امپراطورۍ ترمنځ د جګړه شاهد یو. ورستۍ جګړه چې دواړه هیوادونو ترمنځ په ۱۸۲۹ز- ۱۸۳۰ ز کال ونښته، لومړۍ نیکولای د تزاري روسیې امپراتور د یونان د تازه استقلال په ملاتړ یې د نمرې د انوب ساحل یې د روسېې خاورې سره منظم کړ.

په ۱۳۵۳ز کال کې روسېې د عثمانې امپراطورۍ د دانوب سیمې امیرشین والاشې، ملزوی چې وروسته یې د رومانی باندې شهرت وموندله، د بیت المقدس، فلسطین مسیحانو او هغه عیسویانو په مرسته چې د بیت المقدس څخه بیرون ژوند کاوه، لښکر کشي وکړه، فرانسویانو هم د دې عیسویانو د حقوقو ساتنه خپل خاص امتیاز ګڼلهو. روسانو په آوایلو کې د ترکانو وړه ډله په توره بحیره کې له منځه یوړله، او د ۱۸۵۴ ز کال په پسرلی کې د یو لوی فوځي قدرت سره د دانوب څخه واوختل او د عثمانی امپراطورۍ خاورې ته داخل شول، او لدی ځایه یې په سلیستریانو باندې خپلې حملې پیل کړې، وروسته یې عقب نیشنی وکړه، فرانسویان په اروپا کې مهمترین ملت ګڼل کېده. فرانسه چې له پخوا څخه یې د منځنې ختیځ سره تجارتی اړیکې لرلې، او پخوا یې هم عثمانی خلیفه ګانو سره نقدي مرستې کړې وې، ځکه چې د نکولای تزاری څخه متنفر ؤ. ځکه چې نیکولای به دریم ناپلیون ماجراجو ګڼلو، نو دریم ناپلیون عثماني دولت دې ته هڅولو چې د تزاري روسېې سره دعوه د حل لپاره د ترکېې مقیم عیسویان د روسېې په مخالفت وکاروي. په ۱۸۵۴ ز کال کې فرانسه د عثماني خلافت په ملاتړ جګړې ته داخل شوه، همدا ډول انګلستان د مدنیزی په مقابل کې د تزاری روسېې د نفوذ مخنیوی په موخه د عثماني امپراطورۍ په طرفدارۍ جګړه اعلان وکړ، سارداني هېواد هم د دوه ذکر شوو هیوادونو په نفعه جګړه پیل کړه، د ساردانی پادشاه په جګړه کې د مداخلت علت دا وو چې په مذاکرو کې د ایتالیا ملي قضیه هم مطرح کړي. عثمانی قواو روسان د خپل

توپخانو په مرسته د بخارت (رومانیې) په طرف عقب نیشنی ته مجبور کړل. چې وروسته والاشي او ملداوی د روسانو له تسخیر څخه خلاص شو. جگړه په توره بحیره کې پیل شوه، ځکه چې فرانسوي او بریتانوي فوځي ٦٥ زره قواو د روسېې په سباستوپول او ژرمالا خوف بندرونو باندې حملې شروع کړې وې روسانو مقاومت کاوه، لیکن د ترکانو ناسیونالیستی او مذهبی روحیې په وړاندی روسان دې ته مجبور شو چې د متفیقینو شرایط ومنی. اطریش هم دې ته زړه نه ښه کاوه چې روسیه دې د قسطنطینې او بالکان جزیره فتحه کړي، او یا انگلیستان دې د سیمې په اوضاعو حاکم شي. ځکه چې د خپلو قواو په بسیجولو سره یې والاشي او ملداوی د روسېې د تخلیې څخه وروسته د خپل تصرف لاندې راوستل.

په دې وخت کې لومړی نیکلای مړ شو او د هغه ځای ناستی دوهم الکساندر د سولې غوښتنه وکړه، په ۱۸٦۵ز کال کې د لویو هیوادونو یوه کنگره تشکېل شوه، چې د سولې یوه عهد نامه یې جوړه کړه، او د دې له مخې یې ځانونه د ترکیې امپراطورۍ د اراضي تمامیت حفظ باندې ځانونه مکلف گڼل.کوم خطر چې د روسېې لخوا ایجاد شوی ؤو، تحقیق وموند. روسیې د دانوب غربي ساحلي سیمه ملداوی ته ورکړه او ځان لپاره یې د مهمو عیسویانو د ساتنې خاص حق ادعا، ملغی اعلان کړه.

ملداوی او والاشي چې په ۱۸۵۸ ز کال یې په رومانیې شهرت موندلی و، د صربستان په انعام سره هر یو دوی خود مختاره امیر نیشن دولت په حیث رامنځ ته شو. په دې وخت کې داسې توافق رامنځه ته شو، چې توره بحیره کې د روسېې کشتۍ به موجودې نه وې او دانوب سیمې اوبو کې باید د ټولو ملتونو کشتۍ د تجارت په موخه آزاد وي، د پاریس په کنگره کې تقریباً د ټولو نظر موافق ؤ ظاهراً اوس وخت کې داسې اروپا وجود درلود چې مشترک تعهدات ورپه غاړه ؤ او د سولې او سیمې لارو باندې یې د ټولو موضوعات لپاره د حل لاره لټوله.[1]

---

[1]. رابرت روزل پالمر، تاریخ جهان نو، جلد دوم، مخ۹۰۲-۹۰۵.

## دویم) په ۱۸۵۹ز کال د ایټالیا جګړه (د ایټالیا وحدت)

څرنګه چې په یاد لرو، ایټالیا د شپږو لویو مستقلو او څو وړو ایالاتو څخه تشکېل شوې وه، دغه ټول د حکومتونه د لومړي ناپلیون لخوا (مترقی) شوي ؤ چې وروسته بیا د وین کنګرې هغه ټول لومړي حالت په خیر ترتیب کړل. په شمالی غربی سیمه کې ساردانی موقعیت درلود، چې د مساوي روپیه موقت په نوم هم یادیدلې. ایټالویان په دې سیمه حاکم ؤ، په ختیځ کې لمباردي ا و بنز قرار درلود چې دواړه د ۱۸۱۴ ز کال څخه د اطریش پورې تړلي وو.

بل هم دوک نیشن توسکاېې وو چې پایتخت یې فلوارنس ؤ. بل هم وړوکې نیشن مودنا، پارسا او لوکا د ناپلیون په اخر سلطنت کې قرار درلود، چې سیسل او سغلی یې په برکې نیوه. عموماً په ایټالیا کې خلکو له مرکزي حکومت څخه شکایت درلود، ډېر خلک د دې غوښتونکې وو چې د لیبرانی ملی حکومت لاندې ژوند تر سره کړي، چې د دې لپاره ملي احساس شتون درلود، چې د فرانسې انقلاب او ناپلیون په ظهور سره ډېر ښکاره شوه او د سازنی د لیکنو په اساس په یو مقدس هدف باندې تبدیل شو.

اما د ۱۸۴۸ ز کال د انقلاب له ماتی سره سم د مازینی ټولی آمیدونه په آوبو لاهو شو. د ۱۸۴۸ز کال د پېښو په نتیجه کې د پاپ دستګاه د جمهوري طلبې راډیکال او مازیني رومانیک څخه وویریده، او له دې امله نور د دې انتظار ناشونی ؤ چې د پاپ دستکاه د ایټالیا له آزادۍ څخه طرفداري وکړي.

له ۱۸۴۸ ز کال څخه وروسته د ساردنی حکومت په مشروطه ډول ازاد ؤ، او د هغه پادشاه ویکتور امانویل دوهم ؤ. د ساردنی پادشاه په ۱۸۴۹- ۱۸۶۱ کلونو کې او همدا ډول د ایټالیا پادشاه په ۱۸۶۱- ۱۸۷۸ز کلونوکې ؤ. د هغه څخه وروسته (کامیلودي کاوور) چې یو زیرکه سیاستمدار ؤ د دې صدراعظم ګټل کېده، کاوور یو لیبرالی شخص ؤ او کوښښ یې کاوه چې ساردنی د اروپاېې طرز سره عیار کړي، تر څو د ترقۍ په لور حرکت وکړي او د ایټالویانو د ستاینې وړ وي.

هغه غوښتل چې ایټالیا د آزادۍ غوښتنې یو نمونه وګرځي د هغه هڅه دا وه چې په ساردني کې مشروطه پارلماني حکومت ایجاد کړي. هغه د مذهبي خلکو په اړه له ځانکړي

کړې، او هغه ځمکې چې کلیسا ته سیاست څخه کار اخیسته او مذهبي رخصتي یې کمې کړې، او هغه ځمکې چې کلیسا ته ورکول کېدې محدودې کړې او کلیساېې محاکم یې منسوخ کړل. کاوور چې د مشروطه سلطنت طرفدار ؤ د ناسیونالیزم، جمهوري غوښتونکو او د مازینی د انقلابیانو له نظر سره هېڅ موافقه نه درلوده.

هغه د کریمه په جګړه کې د ساوني حکومت هم دخیل کړ، او په دې ډول یې روسیې ته فوځ ولیږه، له دې کار څخه د هغه موخه دا وه چې د ایتالیا موضوع د سولې په کنګره کې مطرح کړي. هغه د اطریش فوځیانو د بیرته ویستو ذریعه د فرانسې لښکریان ګڼل، او کله چې یې د فرانسې ملاتړ تر لاسه کړ، د اطریش سره یې جګړه پیل کړه. دریم ناپلیون یو مخفی عهدنامه کاوور ته په اپرېل ۱۸۵۹ ز کال واستوله، کاوور اطریش د جګړه اعلانولو ته واداره کړ، او په دې وخت کې د فرانسې لښکریان د آلپ د غرونو څخه راښکته او جګړه پیل شوه او ترمنځ یې دوه مهم جګړې وشوې چې د ماګنتها (magnata) او بل د سالفرینو (Salfarne) باندې مشهور دي، او دغه د فرانسویانو او ساردنی خلکو په ګټه تمام شو

پروسیان د فرانسویانو د پرمختک څخه په تشویش کې ؤ. او په سیمه کې د فرانسویانو له نفوذ څخه خوښ نه وو، د رن په سیمه کې په لښکرکشۍ ته یې مخه کړه. په ایتالیا کې د اطریش په ماتې سره د ایتالیا په ټول شبه جزیره کې انقلابیونو په شورش او لاسوهنه شروع کړه او د فرانسې امپراطور په هېڅ دلیل د دې انقلاب طرفدار نه ؤ.

انقلابیانو، حکومتونه تغیر کړل، او خپل تمایل یې د ساردنی سره په پیوستون کې اعلان کړ، په فرانسه کې د نورو سیمو په څیر کاتولیکان هم ویریده. او په دې ویره کې و چې د پاپ اختیارات د لاسه ورنکړي. د فرانسې امپراطور یې د جګړه څخه منع کړ، په عین وخت کې د فرانسې لښکریان د اطریش په شمال کې ګرځیده. د هغوی یوه ډله اوس هم په روم کې مستقر وه، چې دغه ډله لښکریان هغه خلک و چې په ۱۸۴۹ ز کال یې د پاپ د حفاظت په موخه د جمهوري غوښتونکو څخه روم ته لیږل شوی ؤ.

ناپلیون د دې لپاره چې خپل موقیعت په ایتالیا کې په ۱۸۵۹ ز کال له لاسه ورنکړي، د خپلو فتوحاتو په وخت کې د اطریش سره په جداګانه توګه د صلحی قرارداد ترسره کړ، دغه

عهدنامې د ایتالیاېې حکومت د فدرالي اتحادیې په بڼه جوړاوه چې په راس کې یې پاپ قرار ولري. اما دغې هڅې موخه او هدف ته ونه رسیده. انقلاب دوام پیدا کړ د نوسکانی، مودنا، پارسا، خلکو خپل پخواني حکمرانان وشړل. د عمومي انتخاباتو په نتیجه کې معلومه شوه چې اکثریت خلک د ساردنی سره د پیوستون غوښتنه لري، او خپل الحاق یې د ساردنی سره اعلان کړ. له هغه ځایه چې رومانیې تعلق د پاپې ایالت سره درلود، پاپ د ایتالیا ایجاد اعلان کړ.

انګلستان حکومت دغه حوادث (شور او تلفی) کم او دریم ناپلیون د(بنس او ساوی ) په ملحق کولو کې ( چې دغه خلک ټول د عمومي آراو په مراجعه کې، چې دوی خپل تمایل د فرانسې سره پیوستون اعلان کړی ؤ ) د ساردنی هېواد چې په مراتبو پراخه شوی ؤ، په رسمیت وپیژنده، اوس نو په ۱۸۶۰ز کال په شمالی ایتالیا کې یو هېواد رامنځ ته شوی، د پاپ پورې مربوط او په جنوب کې دوه سیسل سلطنت شتون درلود لیکن د شورشونو پذریعه دغه حکومت متزلزل شوی ؤ.

یو د جمهوریت غوښتونکو څخه د(ګیرۍ ګاریبالدي) کارونه یو طرفه کړی ؤ. ګاریبالدی په جنوبی سمت باندې یرغل شروع کړ،کاوور چې پیاوړی وو په واضحه ډول یې د همسایه ګانو په خلاف توطیې ترسره کولې، په مخفي ډول یې د ګاریبالدی قواو سره موافقه وکړه.

کله چې د سیسل حکومتونه د ګاریبالدی لخوا سقوط کړل شو نو ګاریبالدی د ناپلیون روم په طرف خپل یرغلیز تدارکات شروع کړل، په دې وخت کې دکاوور قواو باپې ایالات له خپل تصرف لاندې راوړ. د ایتالیا د ټولو نمایندګانو څخه مرکب پارلمان، پرته له روم اوولیز څخه په کال ۱۸۶۱ ز کې اجلاس دایر کړ، ایتالیا یې واحد سلطنت اعلان کړ، او دوهم ویکتور امانویل یې د دې ځمکې سلطان اعلان کړ. په ۱۸۶۶ز کال وینز د ایتالیا سره یو شو ځکه د پروس او اطریش په جګړه کې ایتالیا د پروس په کمک سر پورته کړی ؤ.

روم په ۱۸۷۰ ز کال کله چې فرانسه د پروس سره په جګړه کې ښکېل شوه، فرانسوی قواوې يې له هغه ښار څخه راوغوښتلې او د ايتاليا سره يې د الحاق اعلان وکړ.[1]

**دريم) د المان د امپراطورۍ بنسټ**

له پيل څخه د فرانسې سياستونه په مذهبي اصلاحاتو، او د روسيې سياستونه له کله نه چې د اروپا د ستونزو په حل او عقدونو په چارو کې شريک شوی، د المانيانو په منځ کې د شته ستونځو ته لمن وهل او د دوی ترمنځ په رقابت رامنځ ته کولو باندې، او بالاخره په بهرنيو دولتونو باندې اتکاء کول وؤ. لکه څرنګه چې پوهيږو د نوي عصر- تاريخ، په حقيقت کې د آلماني ژبو د عقل او تورې کارول يو منفي اساسي شرط ګڼل کيږي. ځکه له دې پرته مشکل وو چې اقتصادي او فرهنګی غوراه والی د اروپا او د اقيانوس اطلس په شا وخوا کې رامنځته شي. له دې پرته تر ډيره مشکله پريښېده چې په روسيه کې يوه لويه امپرطوري رمنځته شي چې د بالتيک له بحيرې څخه چې تر لهستان پورې امتداد ولري. لکه ليدل کيږي چې د وخت په تيريدو سره المانيان له هغه موقعيت چې په اروپا کې يې درلوه ناراضه وه، د ملت وينه په جوش راغله. ډېر شمېر الماني متفکرين په دې باور دي چې المان له غربي هېوادونو سره ډېر توپير لري، او ډېر ژر به د ځانګړي سياسي تګلارې او د خاص ژوند لرونکي شي، دوی ځانونه له اسلاو څخه ډېر زيات غوره ګڼل. د المانيانان فلسفه له هېګل او بيا وروسته مارکس څخه سرچينه اخېستې ده.

په ۱۸۴۸ ز کال په يو شمېر هېوادونو کې انقلابونو منځ ته راغلل، چې په المان کې يو شمېر شته هېوادونه يې متزلزل کړل. د فرانکفورت په مجلس کې يوه ډله چې له انفرادي اشخاصو څخه جوړه شوې وه، تعهد وکړ چې له قانوني لارو څخه به متحد المان رامنځ ته کړي، له همدې امله د ۱۸۴۸ ز کال څخه وروسته يې ټول فکر په آلمان کې قدرت ترلاسه کولو متمرکز

[1] . رابرت روزل پالمر، تاريخ جهان نو، جلد دوم، مخ۹۰۷ - ۹۱۴.

ؤ، او د فوځ غوړیدلو ته له حد څخه په زیات ارزښت قایل ول. مګر د فرانکفورت په دې چاره ځکه ونه توانیده چې له حده زیات انقلابیان وه.[1]

آلمانیان یو هوښیار، فرمانبرداره او با انظباطه قوم وو. لا هم د احساساتو له مخې خپل حکومتونو ته علاقمند وه. کوم څه چې په ایټالیا کې تر سره شول، یعنې له ساردني پرته د انقلابیانو په لاس د ټولو پخوانیو حکومتونو له منځه لاړل، چې دغه چاره بیا په آلمان کې نا ممکنه ؤ.

کله چې د ۱۸۴۸ ز کال انقلاب کومه پایله ورنکړه نو ملیون او لیبرال المانیان سخت مایوسه او خفه شول، تر څو په ۱۸۵۰ ز کال پورې چې پخواني حکومتونه بیرته اعاده شول، چې دغه پخواني حکومتونه عبارت دي له اطریش، پروس، هانور، ساکسوني، باویر، ورتمبرک څخه، او د ۳۰ نورو ایالاتونو په یوځای کیدو سره چې د پراختیا له مخې یې یو بل سره ډېر تفاوت درلود، او د ټولو څخه کوچنی یې د فرانکفورت او هامبورګ ښارونه وه. د المان د سست په ایالت کې پراخ اقتصادي او ټولنیز تغیرات رامنځ ته شول، لکه د ډېرو سکارو په تولید کې د ۱۸۵۰ او ۱۸۷۰ ز کلونو په منځ کې شپږ برابره ډیروالی راغی، همدا راز د اوسپنې حاصلات چې پخوا له فرانسې څخه لږ وه،ډېر شول. د پروس په وړاندیز یط په ۱۸۱۸ ز کال ګمرکي اتحادیې یې جوړې کړې، چې د ډېر اقتصادي یوالي باعث وګرځېده، الماني ښارونه د اوسپنېزو لیکو او تلګراف په واسطه سره په اړیکه کې شول. چې له همدې امله سره تر ډېره المان یو شو چې دا دوی د خپلو هڅو پایله وه.[2]

## له ۱۸۶۰ ز کال څخه وروسته پروس

د ټولو لویو اروپایې دولتونو په منځ کې پروس تل یو کوچنی او بې ثباته دولت ګڼل کېده، پروس یو داسې هېواد ؤ چې د ناپلیون په لاس ویجاړ شو خو بیرته یې سر پورته کړ، چې د دوی د خپلې اردوه څخه انګیه، ځکه د پروس اردو د ټولو اروپایي هېوادونو پر وړاندې د

---

[1]. رابرت روزول پالمر، تاریخ جهان نو، مخ۹۱۷ - ۹۱۸.
[2]. رابرت روزول پالمر، تاریخ جهان نو، مخ۹۱۹.

مبارزې میدان ښکته شوي وو. او د همدې اردو او دیپلوماسۍ په واسطه وتوانیدل چې خپلې خاورې ته پراختیا ورکړي. د ۱۸۵۰ ز کال څخه وروسته، هغه خلک چې د پروس قدرت یې په لاس کې درلود ویریدونکي او ناتوانه ؤ، ځکه چې د انقلابونو پذریعه یې هېواد متزلزل شوی ؤ. په ۱۸۵۰ ز کال د اولمو تز کې د ناچارۍ له مخې د اتریش امپراتور او تزاري روسیې ته تسلیم شول، همداراز د کریمه په جګړه او د پارس په کنګره کې یې تقریباً له نظارت څخه پرته یې بل کار نه درلوده. د ۱۸۱۵ ز کال څخه وروسته د پروس جمیعت د ۱۱ ملیون څخه ۱۸ ملیون ته ارتقاء کړې وه، لیکن د فوځ تعداد کې هېڅ تغیر نه و راغلی، خو که چېرې د عسکرو د جذب قانون مراعتولی نو د پوځ شمیر به یې دوه برابره شوی وای، خو دې چارې زیاتې بودیجې ته اړتیا درلوده چې د پروس له توانه وتلې وو. له ۱۸۵۰ ز کال څخه وروسته پروس د پارلمان درلودنکې شو. چې د متمولیانو په لاس کې وه چې یوه برخه یې شتمنۍ لرونکو او لیبرالانو په لاس کې وو، چې د حکومت پر سیاستونو د څارنې غوښتنه یې کوله. چې په دې توګه په نظامي برخه کې یې پرمختګ او پراختیا ونه شوه. له ۱۸۶۲ ز کال وروسته د پروس سلطان یو بل شخص قن رون په سپارښتنه د وزیرانو په ریاست کې د (اوتوفن بسیمارک) په نوم د یونکرانو له کورنۍ څخه چې د براندنبورک سیمې پورې تعلق درلود، وګماره.

بیسمارک سره له دې چې د ژوند تودې او سړې یې لیدلې وې، خو د دې سره سره په ظاهره په ادابو او رسومو کې د کلیو د دهقانانو په څیر قهرجن او خشن وو. د عقل په لحاظ د نورو شاهانو په نسبت چې دې له کومې طبقې څخه راپورته شوی وو، په کراتو غوره وو. سره له دې چې د دغه طبقې په وړاندې یې په ډېره بې حوصلګۍ سره نفرت درلوده. خو د هغوی پر وړاندې پورته نشو، نوموړی د یونکرانو له رایو سره هم نظری وو او پروتستانت مذهب ته په یو ځانګړي تقدس قانع وو او له هغې څخه پیروي یې تجویزوله، د بل چا انتقاد پرې اغېز نه کاوه. په خقیقت کې یو د سړې وینې لرونکی شخص وو، همداراز بیسمارک ناسیونالیت نه وو، د ټول المان خاوره یې د خپلو نیکونو زانګو نه ګڼله او دې اصلاً له پروس څخه وو، نو ځکه یې د المان د خاورې ډېره برخه نه پیژندله، نه یې هم ورسره کومه علاقه درلوده او نه یې د باور وړ ګڼله. د نوموړي په نظر کې د دغې سیمو خلک سرکښه، انقلابي، ازاد فکره او مادي ول. پارلماني

مجالس د ده له نظره جاهله او غیر مسوله ډله وه. د ده له نظره انفرادي ازادي، د ځان پالنې داسې ډول دی چې ګډوډي هم ورسره یوځای وي. لیبرالیزم، دیموکراسي او سوسیالیزم ده ته د منلو وړ نه وو. بیشمارک دې ته ترجیع ورکوله چې خلک خپلې وظیفه شناسۍ، خدمتګارۍ نظم او له خدای څخه ویره ولري او اهمیت ورکړي. د نوموړي فکر ته د الماني مېشتو ځمکو څخه د یو لوی اتحاد جوړول په ذهن کې وروګرځېدل چې دا کار یې د پروس په تقویه کولو همکار ګاڼه. د نوموړي له نظره د داسې اتحادیې جوړول چې په توله معنی ملي بڼه ولري، د اتریشي المان او بوهم څخه جوړه شوي وي، یو ناممکن کار پرېښوده.

بیسمارک د واقعیت د سیاست پلوی وو، داسې وخت راغی چې بیسمارک د خپلې طبقې له لوري د خیانتکار په عنوان وپېژندل شو، تردې چې خپله د پروس پادشاه ترې هم وویرېده، د بیمسارک څخه د هابسبورګ کورنۍ ته بې حرمتي وشوه، خپله خوښه یې وکړه، د لیبرالانو، دېموکراتانو او حتی سوسیالیستانو سره دوست شو. او بیا یې په ترتیب سره دوی ټول خپل دښمنان کړل. په ابتداء کې به یې جګړه پیل کړه او بیا به یې په سوله ټېنګار کاوه. د نوموړي له نظره دښمني او یا اتحادونه هغه څه دي چې د وخت د اړتیا له مخې منځته راځي، د نن ورځې دوښمن کیدلی شي د سبا ورځې دوست وي. نوموړي له هرڅه او هرې وسیلې څخه د هدف د ترلاسه کولو لپاره استفاده کوله. او هر فرصت به یې غنیمت ګاڼه. هڅه به یې کوله چې هر ډول حالت په ګټه وڅرخوي. د پارلمان سره یې هم د مالیاتو پر سره ستونزه راغله، او د پارلمان له تصویب پرته یې د مالیاتوو په راټولو پیل وکړ، او کالیه ورکونکو هم مالیات ورکړل توګه اوردو پراختیا وکړه، نظام نوی شو، خلکو ته یې نوی تعلیم ورکړ. لیبرالانو به ویل چې خپله حکومت پروس ته صدمه رسوي. او او سیاستونه یې غیرقانوني دي. هغه د خپل صدارت څخه تر ۱۸۹۰ ز کال پورې د اروپا یو قوي شخص ګڼل کېده. بیسمارک اعلان وکړ چې د

پروس حدود چې په ۱۸۱۵ ز کال ټاکل شوي دي سم ندي، او پروس باید خپلې ځمکنۍ پراختیا ته منتظر وي.[1]

### د بیسمارک جګړې

په ۱۸٦۲ ز کال پروس د اطریش سره په اتفاق په ډنمارک د شلسویک او هولشتاین د الحاق په موخه یرغل وکړ، او ډنمارک یې مغلوب کړ. د بیسمارک هدف دا ؤ چې هولشتاین او شلسویک دواړه پروس سره یوځای کړي، او د پروس سره چې هر ډول ستونزه په راتلونکې کې منځ ته راشي، له دې څخه استفاده وکړي. لیکن د جګړه څخه وروسته په موقت ډول شلسویک، اطریش، او هولشتاین یې متصرف کړلې. د وخت په تیریدو سره د پروس او اطریش ترمنځ اختلافات د حق العبور، داخلی نظم حفظ او نور و موضاعتو باندې زیات شول. بیسمارک تصمیم ونیوه چې اطریش بی اعتباره کړي ټولې اړیکې یې ورسره قطعه کړې. په دې وخت کې انګلستان د نورو هیوادنو په وړاندې د عدم مداخلې سیاست تعقیباوه، د روسیې امپراطور په خپل منځي تشنج کې قرار درلود. او د کریمه د جګړې له امله د اطریش سره خوندي اړیکې او د پروس او بیسمارک سره یې ښه روابط درلودل. ځکه چې بیسمارک په ۱۸٦۳ ز کال د تزاری روسیې په ملاتړ د لهستانی شورشیانو په خلاف ؤ د ایتالیا د ملاتړ د جلب په موخه یې ایتالیا ته وعده ورکړه چې ونیز په دې دولت پورې وتړي.

ناپیلیون هم په داخلي ناخوښیو کې ښکیل وو او پوځ یې په مکزیک کې په جګړو کې ښکیل وو. د بیسمارک او دریم ناپلیون له پټې لیدنې څخه وروسته چې په بیاریټس (Birarritz) کې صورت ونیوه، ظاهراً دواړو د فرانسې په ځمکنۍ پراختیا او د اروپا د نقشې په تجدید باندې موافقې ته ورسیدل او فرانسه د اطریش په تعقیب موافقه وه.

په دې وخت کې د پروس او اتریش ترمنځ هم د شلسویک او هولشتاین په سر اختلاف وو، بالاخره اتریش نوموړې موضوع رسماً په د المان په فدرال دیت کې (چې یو له وظیفو څخه یې د فدراسیون د غړو ترمنځ د اختلاف څخه مخنیوی وو) مطرح کړه، بیسمارک دیت د صلاحیت

[1]. رابرت روزل پالمر، تاریخ جهان نو، مخ ۹۲۲-۹۱۹.

لرونکې ونه ګڼله او اتریشیان یې په تیري تورن کړل او د پروس اردو ته یې امر وکړ چې هولشتاین ونیسي، اتریشیانو د فدراسیون له غړو وغوښتل چې د پروس سره د مبارزې لپاره د المان له ټولو ایالاتون څخه یو ګډ پوځ جوړ کړي. پایله دا شوه چې په ۱۸٦٦ ز کال پروس نه یواځې د اطریش سره، بلکې د ټول آلمان حکومت سره په جګړه کې ښکېل ؤ، لیکن د پروس قوي او مجهز پوځ خپل نفوذ ساتلی ؤ. د اطریش او پروس جګړه چې د ( اوه اونۍ جګړه) باندې هم مشهور ده، او د پروس فوځ د معروف سردار (فن موتلکه) په رهبری اطریش ته د سادوا په جګړه کې ماتې ورکړه، او ټول المان یې مغلوب کړ. پروس نه یواځې د سلشویک بلکې د هولشتاین، هانور، دوک میشتې سیمې ناسو، هس کاسل او د فرانکفورت آزاد ښار یې ټول په خپلې خاورې پورې وتړلې، په دې وخت کې د آلمان فدرالی اتحادیه له منځه لاړه. په ۱۸٦۷ ز کال بیسمارک د هغې پر ځای د شمالی آلمان کنفدراسیون رامنځته کړه، د اساسی قانون او پارلمان درلودونکې رامنځ ته کړ چې د پروس او ۲۱ نورو هیوادونو اتحاد ؤ.

د دې اتحادیې ریاست یې د دودمان په سلطنت کې موروثي وګرځاوه، دغه پارلمان دوه مجلسه پارلمان ؤ، پورتنی او ښکتنی مجلس. هغه هیوادونه چې د المان په جنوب من (Main)کې موقیعت درلود لکه اطریش، باویر، بادن، ورتمبرګ، هس دارمشتاد ټول له دې سازمان څخه بیرون ؤ. په دې وخت کې د هېواد نیم وګړی د نارینو څخه یې کولی شو چې په عمومی انتخاباتو کې شرکت وکړي، بیسمارک احساس کاوه چې عامه خلک به د هغه متفق وی او د هغوی په مرسته به وکړای شي یو قوی او مقتدر هېواد او دولت رامنځ ته کړي، او د خصوصي ګټو لرونکو سره به مبارزه وکړي، هغه حتی د سوسیالیستانو سره چې د تیرو لس کالو د وضیعت په اساس یې په آلمان کې ظهور کړی ؤ او د فردیناند لاسال پروان وه، مذاکرې وکړي. سوسیالیستان عمومی انتخابات چې په دې ذریعه نمایندګان وټاکې شمالی آلمان له کنفدراسیون سره موافقت کړ.[1]

## ۱. په ۱۸۷۰ ز کال له پروس سره د فرانسې جګړه

د شمالي آلمان د کنفدراسیون د ایجاد سره، بیسمارک د هغه رعب څخه چې په جنوبي آلمان بن ایالت کې د فرانسې په وړاندې شتون درلود، استفاده وکړه. سره له دې چې په پخوا وخت کې جنوبي آلمان د فرانسې له ملاتړ کوونکو څخه ؤ. لیکن به اوس وخت کې فکر کېده چې دواړه حکومتونه د پروس څخه ملاتړ کوي. بیسمارک فکر کاوه چې د پروس او فرانسې تر منځ جګړه به جنوبي آلمان ایالت دی ته مجبور کړي چې د پروس سره اتحاد وکړي. او په دې صورت کې به یواځې اطریش له اتحادیې څخه بهر وي چې په حقیقت کې دا هماغه هدف ؤ کوم چې بېسمارک درلوده.

په ۱۸٦۹ ز کال د هسپانیې خلکو خپله ملکه مجبوره کړه چې هسپانیه پرېږدي او په دې صورت کې هسپانیه د هرج مرج سره مخ شوه، او خپل پخوانی قدرت یې له لاسه ورکړ، او د هغه ځای زمامداري د فرانسې او پروس تر نظارت لاندې وه. د هسپانیې پادشاهۍ ته نامزد هو هترولرن وه چې د پروس سلطنتی نوزاده ګانو څخه وو. بیسمارک او مولتکه د پروس د فوځ کلي قوماندانو له دې څخه چې یو پروسی شخص د هسپانېې پادشاهۍ ته ورسیږي، استقبال کاوه، او دغه کار فرانسویانو په ډېره ویره کې اچولی ؤ، لیکن د فرانسویانو او پروسانو ترمنځ د مذاکراتو په اثر چې تر سره شو د فرانسې لخوا رسماً تقاضا وشوه چې د پروس شهزاده دې لدی مقام څخه منصرف شي، برس لنو پولد د خپل کاندیدۍ څخه منصرف شو. ظاهراً قضیه د فرانسې په نفعه حل شوه. لدی وروسته د فرانسې دولت وغوښتل چې د ډېپلوماسۍ له لارې بل اقدام ترسره کړي. نو سفیر ته یې آمر وکړ چې (اس) سره عملاً ملاقات وکړي، او د فرانسې لخوا دا غوښتنه ورته وړورسوي چې په راتلونکې کې د پروس سلطانه هېڅ یو شخص د هر هنر لرن د کورنۍ څخه د هسپانېې مقام ته کاندید شي. بیسمارک له موقع څخه په ګټې اخستنې نوموړی اقدام د پروس پادشاه په مقابل کې اهانت وګاڼه.په ۱۸۷۰ ز کال جولای کې ظاهراً د هسپانېې قضیه حل شوې وه، دریم ناپلیون غیر مسؤلانه او مفسدانه ډول د پروس سره د جګړې اعلان وکړ، بیسمارک غوښتل په هر ډول چې وي خپل حریف په سیاسي نقطه کې تعقیب کړي. د امپراطورۍ د تجدید په موخه انګلیستان او امریکا له فرانسې څخه خوښ نه ؤ

ایټالویان ډېر وخت په طمعه ؤ چې روم د فرانسویانو څخه آزاد کړي ، روسان د فرصت په طمعه ؤ چې د صلح عهدنامی په فتحه جګړه کې دخیل شي دکوم له مخې چې په توره بحیره کې د جګړې بیړیو له لرلو محروم شوی و.

یواځې اطریش چې په کال ۱۸٦٦ م کال کې ماتی خوړلی وه کومو هیوادو چې د فرانسې سره یې مرسته کولی شوه د ماری سلطنت د دورې څخه د اطریش نظامی قواو عمده برخه د مجاریانو په لاس کې وه. مجاریان هم د پروس او بیسمارک طرفدارن ؤ، هر څومره چې د هامبورک کورنی لاسونه په حکومت کې لنډ وه هغومره د دوی قوت زیاتیده.

د ۱۸۷۰ ز کال جګړه د نورو جګړو په څیر په اروپا کې بین الدولتی جګړه ونه ګرځیده، د جنوبی آلمان ایالت د پروس په ملاتړ ودریدل د همغه کال د جولای په ۱۵ جګړه پیل شو. فرانسه په میدان کې یواځې پاتې شوه، فرانسه په فني ډول د پروس د فوځ سره په مقایسې وروسته پاتې وه، د سپتمبر په دویمه د سادان د جګړه څخه وروسته زیاتره فرانسوي فوځیان آلمان ته تسلیم شول، دریم ناپلیون شخصاً با (اسارت) کې قرار ونیوه. د سپتمبر په څلورمه یو ډول د شورشیانو په پارس کې جمهوری حکومت اعلان کړ او آلمان او پروسي قواوې پاریس ته داخل او پاریس یې محاصره کړ.[1]

## ۲) د المان امپراطوري

کله چې فرانسې ماتې وخوړه نو د ۱۸۷۱ز کال د جنوری په ۱۸ نېټه بیسمارک د پرمختګونو څخه وروسته د آلمان امپراطوری اعلان وکړ. د آلمان امپراطوری عنوان د پروس په شاهي کورنی کې مورثی وګرځید، ټولو آلمانی حکمرانانو چې د بیسمارک په واسطه لیرې شوي وو، د آلمان امپراطوری ته په وفاداری سوګند یاد کړل. له ۱۰ ورځو څخه وروسته پاریس د آلمانی فوځیانو لخوا به تصرف کې راوړل شو. المانیان د حد څخه زیات د استیازاتو غوښتونکې ؤ د مثال په ډول پنځه میلیارده فرانګه د جګړې غرامت او هم باید الزاس او لورن عمده برخې د آلمان د امپراطوری برخه وکرځي. فرانسویان په هیڅ ډول د بیسمارک له دې فیصلې څخه

[1]. رابرت روزل پالمر، تاریخ جهان نو، مخ ۷۲۹-۷۲۷.

راضي نه ول. د آلمان یووالي د اروپا حالات بدل کړل، یواځې د وین عهدنامه بلکې د ویستفالیا عهدنامه یې هم معکوس کړه، آلمان په آروپا کې تر ټولو پیاوړی قدرت وگرځېد او هم په ۱۸۷۰ زکال کې د صنعت پرمختک دا هېواد نور هم قوی کړ. ټول پروس بیسمارک ته تسلیم شو. له بلې خوا د شمالي آلمان فدراسیون اساسي قانون آلمان پورې مربوط شو دغه فدراسیون د یو مرکب حکومتونو اتحاد هر یو سلطنتي حکومتونه چې الهي حقوقو درلودونکي گڼل کېده په عین وخت کې لایشناک چې نمایندگان یې عمومي انتخاباتو کې د اکثریت خلکو په حمایت باندې متکې ول. د حکومت وزیران د امپراطور په وړاندې مسول و.

پای